# تفسیر ایوبی حنفی

تالیف

علامۂ عصر وحید الدہر ابو الفضل مولانا محمد عبد الحمید الایوبی
القندھاری العلیا خیلی الحنفی النقشبندی عفی عنہ

الناشر
مکتبۃ القراءۃ والتجوید
کانسی روڈ شالمن کوئٹہ

بسم الله الرحمن الرحيم

په پښتو ژبه کښې اولنی او په افغاني تاريخ کښې بې ساری

په زرګونو جديدو مسئلو باندي مشتمل

# تفسير ايوبي حنفي

وَالْمُحْصَنٰتُ ❁ ❁ ❁ لَا يُحِبُّ اللّٰهُ

شپږم ټوک ٦

تاليف او تصنيف

د علامة العصر ابو الفضل شيخ التفسير والحديث فقيه دوران مفسر الزمان

## حضرت مولانا محمد عبيد الله ايوبي

الكندهاري السليمانخيلي الحنفي النقشبندي حفظه الله تعالى

مكتبة القرأة و التجويد

کانسي روډ شالدره کوټه

# د کتاب پېژندنه

د کتاب نوم ............ تفسیر ایوبي پښتو شپږم ټوک
مؤلف ............ الحاج مولنا محمد عبید الله الایوبي الکندهاري
السلیمانخیلي الحنفي حفظه الله تعالی بفضله الوهبي
کمپوزر ............ حبیب الحق حقاني (مینګل)
ټایپ ............ حقاني کمپیوټر اداره
نشر کوونکې اداره ............ مکتبة القراء ت والتجوید کانسي روډ کوټه
د چاپ ځای ............ لاهور پاکستان

# زیری

الحمدلله زموږ په دین اسلام کې علماؤ نه ستړي کېدونکې کوششونه کړي دي، چې د هرې ژبې علماؤ خپل د ژبې لپاره د قرآن عظیم الشان او احادیث مبارکه وو څخه ښه ښه مسائل د خپلو خلکو لپاره په خپله ژبه د قلم څوکې ته رسولي دي، نو زموږ اداره هم الحمدلله په دې ډګر کې شاته نه ده چې د نورو مسئالو د وړاندې کولو وروسته یې اوس یو نوی کتاب په نامه د

# تفسیر ایوبي

چې د مېرمنو لپاره یو دُر بې بها تحفه ده. ژبارلي دی الله تبارك وتعالی دې په خپل دربار کې قبول او مقبول کړي آمین

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمد لله وحده والصلواة والسلام
علی من لانبي بعده.
الله تعالى لره دي حمد وي چي د
قرآن مجيد د خدمت او چوپړ و هلو
لپاره يې مفسرين تيار کړي دي، او د
ليکلو او خپرولو لپاره يې هم خيل له
بندګانو څخه بعض خوش نصيبه بندګان
منتخب کړي دي لکه څرنګه چي وايي
اين سعادت بزور بازو نيست
تانه بخشد خدایٔ بخشنده
خو ښکاره خبره داده چي خوش
نصيبه دي هغه انسانان د کومو چي
د ژوند څو ګهوري شپې د قرآن
مجيد په خدمت کي تېري سي،
برعکس څه انسانان بيا داسي هم
سته چي هغه د دروغو قصي او
واقعات خپروي، صرف او صرف
خيالي تصوراتو ته وده ورکوي، او
يا لا دا چي د الله تعالى مخلوق
وداسي لاري ته رابولي کوم چي په
حقيقت کي هغه لاري د شيطان
لاري دي.




الطبعة الاولى

١٤٢٧ هجري — ٢٠٠٧ ميلادي

مكتبة القراءة و التجويد
شارع كاسي كوئته ـ پاکستان
رقم الهاتف ٠٨١-٢٨٨٥٥٢٥

MAKTABTUL-QIRRAT
WALTAJWEED
KANSI ROAD QUETTA
BALOCHISTAN

ISBN 2-7451-3140-0




نبي کريم ﷺ فرمايي! کوم چاته چې الله تعالی د خير اراده وکړي، نو هغه ته په دين کې پوهه ورنصيب کړي، په نړۍ کې دا يو منل سوی حقيقت دی چې د قرآني علومو خدمت په دنيا او آخرت کې د ښېګڼو سرچينه ده، او په ځانګړې ډول بيا که څوک د خپل ژوند اخيري شېبې د قرآن مجيد په خدمت کې تېرې کړي، نو د دنيا د ټولو پوهانو په اند هم تر داسې چا خوش نصيبه څوک نسته.

همدا رنګه نبي کريم ﷺ فرمايي! چې الله تعالی وايي چې که چېرې د قرآن مجيد تلاوت، تدبر، تفسير، تعليم او تعلم زما له ذکره څخه څوک مشغول وساتي، نو داسې چا ته به زه تر ټولو ښه هغه څه ورکړم کوم چې زما له لوري وسوال کونکو ته ورکول کېږي.

## آمدم بر سر مقصود

حضرت علامه ايوبي صاحب مدظله العالي هم د خپل ژوند اخيري شېبې د قرآن مجيد و تفسير ته وربخښلې دي، کوم چې په حقيقت کې د ژوند تر ټولو مقاصدو يو ستر مقصد دی، او د الله تعالی د کتاب براه راست يو لوی خدمت دی.

زموږ دعاء ده چې الله تعالی دې ده ته ښه ژوند ورکړي تر څو دا تفسير وټولو مسلمانانو ته ډالۍ کړي.

همدا رنګه زموږ د ټولو لوستونکو څخه هيله ده چې هغه دې د حضرت ايوبي صاحب د ښه صحت په اړه له الله تعالی څخه دعاوې ورته وغواړي، تر څو هغه پاته تفسير هم و اکمال ته ورسوي آمين، نور مو پر خدای سپارو

د دعاوو په هيله

**قاري فضل الحق حقاني**

باني مکتبة القراءت والتجويد

کوټه بلوچستان

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله رب العالمين. والصلوة والسلام على سيدنا و سيد المرسلين وعلى آله وصحبه اجمعين.

## شکریه

**درویش وایي:** چي زه د مکتبة القراءت والتجوید چي تر مشری د قاري مقري مجود اعظم خوشنویس بلا عدیل قاري فضل الحق حقاني چي په ښار کي د کوتې موجوده ده ډېر ممنون او شکر گذار یم چي د درویش مصنفات عدیده یا د قلم د کتابت له لاري او یا د کمپیوټر د صنعت له لاري و اعلی طباعت ته سپاري، او په ډېرو زیبا او ښکلو جلدونو کي یې و عالم اسلام ته وړاندي کوي، او په دې لار کي مالي او سفري کړاوونه پر ځان باندي وړي دي او وړي یې.

نو له دې کبله د درویش د هغو مصنفاتو چي طبع یې نامبرده پر غاړه اخستې ده اجازه خاص الخاص ودغه نامبرده ته هبه کړې ده. بل کتب فروش نه په تغیر د کتابت یا په بل عنوان حق د طبع نه لري، هو که نامبرده قاري صاحب اجازه ورته وکړي هغه بیله خبره ده.

محمد عبیدالله ایوبي

تفسیر ایوبي حنفي د نصیراحمد احمدي لخوا سکین او pdf سو. د دعا محتاج احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

## معذرت درویش

**پوه سه**: چي اهل عقل او نقل پر دې خبره متفق دي چي انسان لره سهوه او نسیان او تېروتل لازم لري الا من شاء الله. حتی چي قدماء د اهل تفسیر او مخور کسان د محدثینو او پر منابرو د تحقیق ناست رجال د فقهاؤ رح له دغه آفته خلاص نه دي کما یدل علیه اختلافاتهم في مصنفاتهم. نو چي سهوه او نسیان ودې حد ته د شیوخو ورسېدله. زه عاصي چي د سنه ١٤٠٠ را په دې خوا تر سنه ١٤٢٧ هـ په تصنیف د حواشیو پر درسي کتابونو د هر فن چي وي. او په تصنیف د غټو کتابونو لکه فقه، تاریخ او تفسیر القرآن بوخت یم. نو زما به څه حال وي په سهوه. خطاء او نسیان کي، نو له دې کبله زه له هم عصرو علماؤ او له نسل آتي له علماؤ څخه په ډېر عجز او انکسار عرض کوم چي زما په مصنفاتو کي کوم ځای زما خطاء وویني، نو دې پر قانون کلي انساني چي ذکر سو حمل کوي. او له حسد، غیبت او بهتان څخه دي ځانونه وژغوري، او خپلي سپېڅلي عمل نامې دي په دغو نجسو عملو نه توروي.

زموږ په اوسنی زمانه کي درې حسده روی کار دي (١) د هم عصری حسد (٢) د اختلافي قومي حسد (٣) او علمي حسد، تو له علماء بلکي عوام په دې بنه پوهېږي چي د چا په حسد خدای ﷻ خپل ورکړی نعمت وبېل چاته له هغه نه اخلي. او دا د حسد وظیفه یوازي زموږ په اوسني نسل پوري خاصه نه ده. بلکي تاسي د در مختار خطبه مطالعه کړئ چي څومره اندازه یې په نظم او نثر سره له حاسدانو څخه ژړلي دي.

**درویش وایي**: چي دا مقوله دي حاسدان خپل استاذې وګرځوي.

بنده راسه د خدای ﷻ خپل سه ‏ ‏ ‏ ‏ لکه پر ځان داسي پر بل سه

البته هر عالم حق لري چي یو ځای یې غلطي د اهل علم په کتابو کي ولیدل په ډېر انصاف او سهل عباراتو یې بیان کړي، دا وو عذر د درویش

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله والمنة والصلوة والسلام على خير البرية وآله وصحبه الكملة.

**اما بعد**: فهذه مقدمة لبيان الباعث على تصنيف تفسير القرآن العزيز باللغة الافغانية.

گرانو وطنوالو او پر دين او اسلام او قرآن شيدا مسلمانانو ورونو او خويندو د پښتو ژبې سره علاقه مندانو، السلام عليكم ورحمة الله وبركاته.

له ډېرې زمانې څخه د دروېش محمد عبيد الله سني حنيفي نقشبندي ايوبي قندهاري سليمانخيلي غفرله په زړه کي خدمت د خپلو پښتنو ورونو او خويندو و په اسلامي چارو کي، يعني په عقائدو کي د اهل سنة والجماعة، او په عملياتو کي چي ټوله فرائض او واجبات او سنن او مستحبات په بر کي ولري ځای پيدا کړی و. چنانچه د زړه له محبت څخه دروېش په عقائدو کي پر نور ظلم پښتو شرح وکړه چي په پښتو کي مقبوليت عامه پيدا کړي، او دې مقبوليت د دروېش همت افزائي وکړه، نو بيا يې شرحه د ابو المنتهى وکړه، او يو مختصر تاريخ چي د عقائدو سره يې تړاو درلودی "شهادت الحسنين" يې په دري ژبه تصنيف کړی، چي هغو دواړو کتابو هم شهرت عامه او مقبوليت عامه وموندی، نو نور يې د دروېش همت لوړ کړی او د مرزا غالب دا بيت مې رهنما وګرځاوه.

همت بلند دار که نزد خدا وخلق　　باشد بقدر همت تو اعتبار تو

نو شرح د شروط الصلوة مې تصنيف کړه رفته رفته شرح د قدوري د صلوة او نکاح حصه په دري جلدو کي، او شرح د نور الايضاح مې په دري جلدو کي وپای ته ورسول. او شرح د کنز الدقائق تر نکاح پوري په دوه جلده کي هم پايه تکميل ته ورسېده، خو اخير الامر ددغو کتابو مقبوليت عامه او د لقد احسنت پيغام له اطرافو څخه د پښتنو زما تر خوله په يوه مجلس کي دا خبره ووتله چي کاشکي مې د خدای ﷻ په توفيق د قرآن عظيم تفسير هم په پښتو ژبه کړی وای، خو دا خبره ماته باعث د شفامي او تحريري مطالباتو د ورونو له خوا او دروېش ته باعث د تحرير او اضطراب وګرځېدله. له دې کبله چي قرآن مبارک

بحر عمیق دی او په ژور دریاب درویش غوندي نا اوبازه سړي ګډېدل له خطره خالي نه وي. لکن دې خبرې دونده شهرت پیدا کړی، چي بعض کتب فروشانو او خوشنویسانو د خپلو کتابو په بعض فهرستو کي چي د درویش د مصنفاتو بیان به یې لیکی دا به یې هم لیکلي وه "تفسیر ایوبي حنیفي" او په دې ذریعه نور د تفسیر مذکوره خواهشمندان تر حد ډېر سوه، حتی چي بعض کسانو به ماته ویل چي تفسیر دي تر کومه ځایه رسولی دی او سره له دې چي ما شروع لا هم نه وه په کړې. او بعض کسانو به په کتب فروشانو کي پوښتني کولې چي د تفسیر ایوبي کوم جلد نه دی چاپ سوی، نو دورېش چي دا مجبوري محسوسه کړه، نو یې ددې تفسیر د تصنیف کول و عالم استخاراتو ته وسپارل په خپله او په نورو صالحانو شاګردانو یې په نتیجه کي د عالم استخارو ځخه ضمناً یا صراحةً اجازه د تفسیر مذکور عزم د دورېش یې نور هم ټینګ کړی، لکن وروښو سره د مامر ډېر او ښخي ډېر او تر اندازه تېر وارختا یم چي خپل کم علم ځان ته وګورم او بحر عمیق ته د قرآن وګورم دا تفسیر د ځان سره مناسب نه بولم لکن بیا مي هم پر توفیق د خدای ﷻ تکیه وکړه او په مذکوره تفسیر مي شروع وکړه.

ارشادات عاصي محمد عبیدالله قندهاري ایوبي نقشبندي از ابیات مثنوي معنوي للمولی جلال الدین الرومي قدس سره السامي.

چون لبسی ابلیس آدم روی هست	پس بهر دستی نباید داد دست
زا نکه صیاد اورد بانګ صفیر	تا فریبد مرغ را آن مرغ ګیر
بشنود آن مرغ بانګ جنس خویش	از هوا آید بیا بد دام پیش
حرف درویشان بدوزد مرد دون	تا بخواند بر سلیمی زان پسون
کار مردان روشنی و ګرمی است	کار دونان حیله وبی شرمی است
شیر پشمین از برای ګد کنند	بو سلیم را لقب احمد کنند
بو سلیم را لقب کذاب ماند	مر محمد ﷺ را اولوا الباب ماند
آن شراب حق ختامش مشک ناب	باده را ختمش بود ګند وعذاب

حافظ شيرازي عارف حقيقي در ضمن مجازات عشق خود ابراز نموده چنين ميفرمايند

نسبت رويت اگر ماه پروين كرده اند
صورت ناديده تشبيهی بتخمين ميكنند
شمه از داستان عشق شور انگيز ما است
آن حكايتها كه از فرها وشيرين ميكنند
نكهت جانبخش دارد خاک كوی گل رخان
عارفان ز انجا مشام عقل مشكين ميكنند
خاكيان بی بهره اند از جرعه كاس الكريم
اين تطاول بين كه باعشاق مسكين كرده اند
ساقيامی ده كه باحكم ازل تدبير نيست
قابل تغيير نبود آنچه تعيين كرده اند

**پوه سه:** چي مراد مرشدان د طريقت دي.

نصيحت:

هر كه آمد در جهان پرز شور
عاقبت ميبايدش رفتن بگور
در ره عقبی است دنيا چون پلی
بی بقاء جای و ويران منزلی
دل منه بر اين پل پر ترس بيم
برگ وه ساز مشو اينجا مقيم
نزد اهل معنی اين كاخ سپنج
هست چون ويرانه خالی زگنج
دور باش از دوستی مال وجاه
زانكه مالت مار وجاه هست چاه
گرنه كوری گوری بين گفتمت
يكزمان بيكار منشين گفتمت
هيچ كس را نيست اين منزل گذير
از گدا، شاه وبرنا وپير
ای كه بر ما بگذری دامن كشان
از سر اخلاص الحمدی بخوان

## نصیحت

فساد چرخ به بینم ونشنویم هنوز
چی چشمه ها کوراست وگوشها همه کر
بسا کسان که مه ومهر باشدش بالین
بعاقبت زگل خاک باشدش بستر
اگر از آهن وپولاد سورحصن کنی
حواله چون برسد ذود بکوبد در
بروشنی خوش وعیش ونوش غره مشو
که ظلمت ازپی نور است وزهر زیر شکر
دری که بر تو کشانید از هوا مکشای
رهی که بر تو نماینده هوس مپر
براه تو همه جاهست سر نهاده مرو
بجام تو همه زهر است ناچشیده مخر

خواجه عبدالله انصاري هروی قدس سره السامي چو خوش نصیحت وزیبا موعظت در ابیاتیکه از هر کلمه آن شکر میریزد فرموده وگفته

اگر در ظلمتی اینک سراجت | حساب امروز کن فردا چه حاجت
هم اکنون حکم کل من علیها | ستاند اینک از تو تخت و تاجت
بکنج تخته تابوت خسپی | بخواری کر بود تختی زعاجت
کنون از حق فراقت مینمایی | بگور آیی بدانست احتیاجت
ترا پرهیز باید چند کامی | که فاسد شد گشت از عصیان مزاجت
کسادی در فساد افگن زتوبه | که چون فردا شود بینی رواجت
زرنج وفسق وزرق ای پیر انصار | مگر فضل خدا باشد علاجت

وهم او رحمه الله میگوید

دلا در کار خود میکن نظرها | که در راه تو میبینم خطرها
کشا از خواب غفلت چشم بیدار | بگوش وهوش تو گویم خبرها

نګر درخلق ګورستان فګنده ز یک تیر فنا جمله سپرها
بسا شاهان مهرویان در خاک معاصی زیر قهر است ونموده
بکام نفس تو همچنون شکرها ګذرګاه است این دینایی فانی
نماند مرد عاقل در ګذرها چو درپیش است مرګ ای پیر انصار
تماشای جهان کن در سفرها

او د خدای ﷻ له لوی جناب څخه دا خواست په ډېر عجز او نیاز کوم چي ماته کمال صحت او عافیت راکړي او فراغ کامل راکړي او توفیق عاجل راکړي چي دا تفسیر زه وپای ته ورسوم. وما ذالک علی الله بعزیز

ورونو زما عمر اوس د شپږ اتیا (۸٦) کالو په شا وخوا کي دی د ژوند بقاء مي تر تفسیره پوري ډېر کم دی.

الهي یا الهي ماته دومره مهلت په عمر کي را نصیب کړې چي زه پکښي دا تفسیر وپای ته ورسوم، نور ارمان خدایه زما نه دی پاته، اې خدایه ﷻ تا ودرویش ته هغه تول نعمتونه ورکړي دي چي د درویش د حاله سره مناسب دي، اوس اې باداره جل سلطانک دا نعمت د تفسیر قرآني که څه هم زما عاصي جهول د شانه سره مناسب نه دی. لکن ستا قدرت تام دی او توفیق دي عام دی. وما درویش ته راکړه توفیق کامل ددې تفسیر قرآني.

قبول د دعاء په دربار کي د رب العزیز ﷻ ګرانو وطنوالو تر دي ځایه پوري د فقیر مقدمه وه لپاره د باعث کولو د فقیر په پښتو د قرآن کریم د تفسیر.

هم دا اوس بحمدالله تعالی تفسیر د پاره "الم" په دوه جلده کي چاپ سوی دی او پر دین مین مسلمانان یې له مکتبة القرائت څخه په ډېر شوق هدیه کوي. او تفسیر د پاره "سیقول" هم په یوه جلد چاپ سوی دی چي مکتبة القرائت ومسلمانانو ته پېش کړی دی، او پاره د "تلک الرسل" هم په یوه جلد کي چاپ سوې ده او په مکتبة القرائت کي پر منظرعام ده، او پاره د "لن تنالوا البر" په یوه جلد کي هم وچاپولو ته تیار او مکمل دی. اوس عاصي تفسیر د "والمحصنت" شروع کوي ان شاء الله تعالی. رب یسر ولا تعسر وتمم بالخیر وبک نستعین.

# وَّالْمُحْصَنٰتُ مِنَ النِّسَآءِ

**پوه سه**: چي "والمحصنٰت" عطف دی پر "امهاتکم" باندي، والمعنی حرامي کړه سوي دي پر تاسي باندي هغه ښځي چي مړونه لري، نو ددغو ښځو نکاح وبل چاته نه ده روا، البته که يې مېړه مړ سي او عده د وفات يې تېره سي، نو بيا يې نکاح روا ده د بل چا سره، او يا يې مېړه طلاقه کړي او عده د طلاق يې تېره سي، نو بيا يې هم وبل چا ته نکاح روا ده.

**فائده**: دا ښځي چي مړونه لري "محصنٰت" يې په دې بولي چي تزويج دوی ساتلې دي له زنی څخه.

**پوه سه**: چي محصن په باب کي د زنا و هغه چاته وايي چي په شرعي نکاح سره مع القيود المذکورة فيما قبل کي ماينه لري او يا مېړه چي حد د زنا يې نو رجم دی کمامر، او "المحصنٰت" و هغه ښځو ته هم وايي چي زانيات نه وي کما قوله تعالی "محصنات غير مسافحات ای عفيفات من الزنا" او محصنات په دې آيت کي په معنا د ذوات الازواج دي.

**فائده**: بغوي رحمه الله وايي چي له ابی سعيد الخدري رضي الله عنه څخه روايت دی چي دا آيت په هغو ښځو کي نازل سوی دی چي دوی به مدينې منورې ته هجرت وکړی او دوی به مسلمانان مړونه درلوده په مکه کي، نو دغه ښځي به بعض مسلمانانو په نکاح کولې، وروسته به يې مسلمان مېړه هم هجرت پسي راوکړی، نو د داسي ښځو له نکاح څخه مسلمانان خدای جل جلاله نهي کړه، له دې حديث څخه مراد دادی چي د مهاجرې ښځي مېړه چي مسلمان وي که څه هم په دار الحرب کي وي، نو ددې نکاح وبل چاته نه ده روا لعدم اختلاف الدين حقيقةً ولې خو دواړه مسلمانان دي وعدم اختلاف الدار حکماً، ولې چي ښځه خو هم هجرت کولای سي، او که چېري ښځه مسلمانه وي او هجرت وکړي او مېړه يې کافر په دار حرب کي وي، نو د هغې ښځي نکاح روا ده بدليل قوله تعالی "يا ايها الذين آمنوا اذا جاء کم المؤمنات مهاجرات فامتحنوا هن فاذا علمتوهن مؤمنات

فلا ترجعوا هن الی الکفار لاهن حل لهم ولا هم یحلون لهن الی ان قال ولا جناح علیکم ان تنکحوا هن" ترجمه! اې هغه کسانو چې ایمان یې راوړی دی چې تاسې ته راسي مؤمنات ښځې چې هجرت یې له دار حرب څخه کړی وي، کافر مېړه یې په دار حرب کې پرې ښې وي، نو تاسې امتحان ځندي واخلئ چې دوی د څه لپاره هجرت کړی دی، یعنې احتمال ددې سته چې د دار حرب مېړه به یې نه وخوښ، نو له دې کبله به یې هجرت کړی وي او د ایمان باعث به نه و، نو که ستاسې یقین و چې دوی مومناني دي یعني ایمان یې باعث د هجرت ګرځېدلی دی، نو بېرته یې د کفارو په لاس مه ورکوئ، ولې چې نه دا ښځې وکفارو ته روا دي او نه کافران ودوی ته یعنې په نکاح او جماعو سره، او حرج او ګناه نسته پر تاسې چې تاسې نکاح ورسره وکړئ.

**مسئله**: د امام ابو حنیفه رحمه الله او د یارانو په نېز د ښځې او د کافر مېړه تر منځ فرقت او جلا والی په صرف را وتلو سره د ښځې له دار حرب څخه واقع کېږي لاختلاف الدارین حقیقةً وحکماً، او د امام اعظم رحمه الله په نېز پر ښځه باندې د طلاق عده نسته او د یارانو په نېز عده پر سته، او د امام شافعي، امام مالک او امام احمد په نېز وروسته تر درې حیضه یې فرقت واقع کېږي که مدخول بها وه. او که مدخول بها نه وه سمدستي د اسلام سره یې فرقت واقع کېږي اختلاف دار ته نه ضرورت سته نه اعتبار.

**فائده**: د "نساء" لفظ په قرآن کریم کې د عموم لپاره دی یعنې هره ښځه چې ذات زوج وي وبل چاته یې نکاح نه ده روا ولیس للاحتراز عن الرجال کما لا یخفی.

**إِلَّا مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ**

مګر نه هغه مینځیانې چې ستاسې په ملک یمین کې وي.

**درویش وایي**: چې ما پېش ګویي کړې وه چې له انسان څخه ګاهي غلطي او سهوه او نسیان پېښېږي الا من شاء الله. هغه اوس داده چې په تفسیر کې ددې آیت عطاء رحمه الله چې ناموری قدیم استاذ دی چې ددې استثناء معنا داده چې یو سړی خپله مینځه وخپل مریي ته په نکاح ورکړې وي هغه بادار کولای سي چې

هغه مينځه بير ته ور ځخه وګرځوي او ملک يمين ته يې رد کړي. او دا خبره داسې
چا چې د عطاء رحمه الله په صف النعال کې نه دی داسې رد کړې ده وهذا القول
مردود بالاجماع آه. لکن صحيح خبره داده چې مسلم، ابو داؤد، ترمذي، او
نسائي د ابي سعيد الخدري رضي الله عنه روايت کړی دی. دی وايي چې موږ مينځيانې
راوستلې د اوطاس د سبي، او هغو کافران مړونه درلوده، نو موږ دا بده نه ګڼل
چې موږ ددوی سره وطي وکړو، نو موږ د عليه الصلوة والسلام ځخه پوښتنه
وکړه فنزلت "والمحصنت الا ماملکت ايمانکم" يعني مړوښې ښځې وتاسي ته نا
روا دي مګر نه چې ستاسي په ملک کې وي چې سبايا د اوطاس دي، يعنې که څه
هم هغه کافران مړونه لري تاسي ته يې وطي په ملک يمين روا دي، او دا حديث
په مختلفو رواياتو او عباراتو په کتابو کې د احاديث شريفه وو راغلي دی.

نو حاصل ددې آيت دادی چې ښځې چې په سبي را وستل سي که د مېړه
سره وي او که بېله مېړه وي ددې ښځې له مېړه ځخه علاقه د زوجيت قطع سوه،
او روا ده ومن ملکها ته چې وطي ورسره وکړي پس له استبراء يعني يو حيض
دی ورته وګوری دا چې دا معلومه سي چې له کافر مېړه ځخه خو حامله نه ده.
ولې چې د بل پر کښت اوبه لګول شرع حرام بولي، وری في الحديث الصحيح
چې نعره کونکي له جانبه ځخه د عليه الصلوة والسلام داسې اعلان وکړی په
ورځ د اوطاء د سبي، الا لاتنکح الحبالى حتى يضعن حملهن ولا الحيالى حتى
يحضن، ترجمه خبر اوسی چې ځوک دې وطي نه کوي د اميدواره ښځو سره د
سبي، تر هغو چې لنګې سوي نه وي، نو په حديث مذکوره کې مراد له نکاح
ځخه وطي دي، او نه دي وطي کوي هغه ښځې چې مېندواري نه وي تر هغو چې
يو حيض نه وي ورغلي چې دې ته د شرع په اصطلاح استبراء وايي.

**مسئله:** مالک د سبي دا کولای سي چې خپله مينځه وبل چاته په نکاح
ورکړي، نو حاصل دادی چې د سبي ځښتن هم مالک د رقبې ددې دی او هم مالک
د بضع ددې دی. که يې مېړه د ماينې سره په سبي راوستلي وي او که يوازې
ښځه سبي وي، دا مذهب د امام شافعي رحمه الله دی، او امام مالک او امام احمد

وايي چې د سبايا وو د اوطاس سره مړونه ورسره وه، او امام اعظم رحمه الله وايي چې د ماينې او د مېړه تر منځ فرقه په نفس سبي سره نه راځي الا اذا سبي احد الزوجين بدون الآخر. امام عليه الرحمة وايي چې موجب او سبب د فرقت اختلاف الدارين حقيقةً وحكماً دون السبي، ولې سره د اختلاف الدارين مصالح د ازواج نه پر ځای کېږي، او امام عليه الرحمة وايي سبي سبب د ملک د رقبې ده ملک د بضع نه ده، مظهري رحمه الله په خوله د بيضاوي رحمه الله د امام اعظم رحمه الله مذهب په داسې الفاظو رد کړی دی وهذا استدلال في مقابلة النص.

**درويش وايي:** چې ابن الهمام صاحب د فتح القدير وايي چې په سبايا وو کې د اوطاس داسې راغلي دي ان النساء سبين وحدهن يعني بدون الازواج ورواية الترمذي يفيد ذالک روی عن ابي سعيد رضي الله عنه قال اصبنا سبايا ولهن ازواج في قومهن يعني في دار الحرب. نو دا معلومه سوه چې سبايا د اوطاس بېله ازواجو سبي سوې وې، قد ذکر ذالک لرسول الله ﷺ فنزلت الآية.

**درويش وايي:** چې مظهري رحمه الله په ډېره دلاورۍ سره ددې جواب ورکړی دی، ځان يې داسې ګرځولی دی لکه دی چې حنيفي المذهب نه وي، بلکې تصريح يې په دې سره کړې ده حيث قال والظاهر فيه قوله الشافعي رحمه الله، او مظهري ځان ته ګويا مجتهد وايي وليس کذالک لان ابن الهمام رحمه الله اعلی کعباً من المظهري في علم الاحاديث، او حنيفيان وايي چې دا آيت يعني "الا ماملکت ايمانکم" پر عموم باقي نه دی بالاجماع فان مقتضی اللفظ حل المملوکة سواء ملکت بالسبي او الشراء او الارث او نحو ذالک، ولا شک المشتراط المتزوجة خارجة من هذا الحکم اجماعاً يعنې هغه مينځه چې مېړه لري او بل سړی يې رانسي، نو مشتري ته يې وطي بالاتفاق نه دي روا. نو حنيفيان چې مسبيات مع الازواج يې هم ځندي تخصيص کړه ولې قانون شرعي دادی چې آيت قطعي ته لا رد تخصيص خلاصه سي نو د بل شي تخصيص هم ځندي روا دی، وان کان المخصص الآخر ظنياً.

**درويش وايي:** چې دا مسئله پر مذهب د ابو حنيفه رحمه الله فقيه ابو جعفر الطحاوي شارح معاني الآثار چې هم محدث دی او په ډېرو درجو تر مظهري لوړ

دی او هم اعلم الناس بمذهب ابي حنيفه رحمه الله منل سوی دی په خپل کتاب معاني الآثار کي یې د ډېره ښه څېړلې ده، او د ابو حنیفه رحمه الله مذهب یې په احادیث مرویه بالاسانید سره ثابت کړی دی، نو مظهري کـه څه هم ځان ته د مجتهد گمان کوي دونده قدر مو نه ورکوو چي دی په مقابل کي د علامه ابن الهمام او د فقيه ابو جعفر الطحاوي رحمه الله ومنو، او دا مشكوک الحنيفية ته مو اجازه د رد د امام ابي حنیفه رحمه الله د مذهب نه ورکوو، البته مظهري شروح د بیضاوي چي مصنف یې شافعي المذهب دی مطالعه کوي او د هغو ردونه پر مذهب د ابي حنيفه رحمه الله په خپل تفسیر کي رانقل کوي، دا وه د درویش محمد عبيد الله الحنيفي نظريه والعلم عند الله العزيز العليم.

## كِتَٰبَ ٱللَّهِ عَلَيۡكُمۡۚ

روح البیان وايي چي کتاب الله مصدر مؤکد دی ای کتب الله تحريم ماذكرن كتاباً وفرضه فرضاً.

## وَأُحِلَّ لَكُم مَّا وَرَآءَ ذَٰلِكُمۡ

او حلاله کړل سوي ده یعني له جانبه څخه د خدای جل جلاله نکاح د ماسوی له محرمات مذکوره وو څخه انفراداً وجمعاً ای الی اربع.

**پوه سه:** چي "احل آه" عطف دی پر "حرمت علیکم امهاتکم" باندي او په منځ کي یې "کتاب الله" راوړی دی ددې لپاره چي مسلمان باید محافظت وکړي پر محرماتو باندي د خدای جل جلاله.

**سوال:** "ذالک" خو اشاره ومحرماتو ته ده او محرماتي ښځي خو ډېري وي، نو څرنگه اشاره په لفظ د "ذالک" مفرد ورته روا ده؟

**ځواب:** د ما د اشاره په تاویل د ما ذکر ده.

**پوه سه:** چي قرائت د "احل" په مجهول صیغه قرائت دی د جعفر وحمزه والکسائي وحفص رحمهم الله نور قاریان له قراء سبعه څخه یې په صیغه د معلوم وايي، او ضمیر د فاعل یې راجع وخدای جل جلاله ته دی چي په "کتاب الله" کي ذکر سو.

**پوښتنه**: پر قرائت د معلوم څه سِر دی چې معطوف علیه یعنې "حرمت" یې مجهول راوړې او معطوف یعنې "احل" یې پر قرائت د معلومې یې معلوم راوړی؟

**ځواب**: تحلیل د نکاح انعام دی، نو ځکه یې نسبت وخدای ﷻ ته وکړی بخلاف التحریم، نو ځکه یې مجهول راوړی.

**پوه سه**: چې لفظ د "ماوراءٔکم" که څه هم عام دی لکن په سنت نبوي ﷺ سره محرمات د رضاع او جمع په منځ کې د عمه او وریرې یا جمع په منځ کې د خاله او خورزې او فوق الاربع ځنې خارج دي فافهم.

## أَن تَبۡتَغُواْ

چې تاسې غواړئ.

**پوه سه**: چې د "تبتغوا" ضمیر راجع دی و مخاطبینو ته، او مفعول یې محذوف دی "تبتغوهن" یعنې دغه ماوراء ذلکم من النساء.

## بِأَمۡوَٰلِكُم

پخپلو مالو سره چې ولور دی په نکاح کې یا قیمت دی په شراء کې د مینځې.

## مُّحۡصِنِينَ

محصنین حال دی له ضمیر څخه د فاعل "تبتغوا" یعنې په داسې حال کې چې تاسې به عفت کوئ یعنې فرج به ساتئ له فاحشه څخه د زنا، او یا به ځان ساتئ له عقاب او عذاب څخه د خدای ﷻ چې مربوط په زنا پورې دی.

## غَيۡرَ مُسَٰفِحِينَۚ

حال بعد حال والسفاح الزنی یعنې د زنا لپاره به مال نه ورکوئ.

**پوه سه**: چې "غیر مسافحین" حال مؤکد دی لان المحصن یکون غیر مسافح.

**حکایت**: یو وخت یو لوی مجلس د ښوښو علماؤ په قندهار کې د یوې دستاربندۍ لپاره جوړ و، درویش څه وځند بدی، نو ورغلې علماء د پر وه ما ورته

وویل چې تولو ستړي مه سئ د ټولو روغبړ کول او ولاړ سره کښېنه تکلیف دی، یو سپین ږیری کم علمه ملا را ولاړ سو او وه یې ویل مولوي صاحب راسره مسافحه به سره وکړو "په سین سره" ما ورته وویل ما خو تر اوسه مسافحه نه ده کړې او نه به یې وروسته وکړم، دی نه سو پوه او وه یې ویل چې ما څه درته وویل ما ورته وویل تا څه راته وویل، د بیرته د مسافحه لفظ ووایه "بالسین" ما بیرته هغه دمخه عبارت ورته ووایه، دی حیران پاته سو علماء حاضر خو وپوهېدله، اخیر ما ورته وویل چې عربي الفاظ مه استعمالوه او که یې استعمالوې صحیح یې استعمالوه، اسانه خبره دا وه چې ویلي دي وای راسره روغبړ سره وکړو، تا مسافحه وویل "په سین سره" چې د هغه معنا زنا ده، نو ځکه ما درته وویل چې مامسافحه نه ده کړې گویا تا راته وویل راسره زنا سره وکړو، نو زه خو پوه سوم چې ستا مراد روغبړ دی، نو به دي داسي ویلي وای که د عربي عبارت شوقي یې چې راسره مصافحه سره وکړو "بالصاد".

**درویش وایي**: چې ددې حکایت بنه مطلب دادی چې پښتون دې په پښتو کې عربي الفاظ نه ورگډوي، او که یې خپل مهارت في العربیه مقصود وي، نو الفاظ عربیه دې په صحیح ډول وایي د سین او د صاد فرق دې وکړي کما في نحن فیه.

**پوه سه**: چې "سفح" په اصل لغت کې تویول د مني ثم سمي به الزنی لان المقصود في الزنی هو اخراج المني دون بقاء النسل کما في الجماع بالنکاح.

**فائده**: په علم نحو کې وایي چې څوک چې داسې ووایي "اعجبني زید علمه" چې لفظ د علم بدل اشتمال دی د زید، ولي چې زید خو محل د تعجب نه دی بلکې محل د تعجب یې علم دی، نو بناءً علی هذا ان تبتغوا باموالکم محصنین آه بدل اشتمال دی من قوله ماراء ذالکم څخه، ولي چې اصل مقصود له حل څخه د ماوراءکم الا ابتغاء هن، بالاموال حلالاً لان ماوراء المحرمات المذکورات لاتحل لاحد مطلقاً بل مقیدة بنکاح صحیح او بملک یمین وهو المراد بالابتغاء بالاموال، نو ابتغاء د ښځې په ورکړه سره د مال د زنی لپاره لیس من الابتغاء المراد ههنا.

**فائده:** له دې آیت څخه دا معلومه سوه چې مهر له لوازمو څخه د نکاح دی او تسمیه د مهر له لوازمو څخه د نکاح نه ده چې نکاح بېله تسمیه د مهر هم روا ده لکن که تسمیه نه وي بیا لازم مهر مثل دی که څه هم قیاس ددې مقتضي دی چې تسمیه د مهر چې نه وي نکاح دې صحیح نه وي قیاساً علی البیع لکن دا قیاس مونږ پرېښو په نص د قرآن، قال الله لاجناح علیکم ان طلقتموا النساء مالم تمسوهن او تفرضوا لهن فریضةً چې چونکه په دې آیت کې مراد له "فریضة" څخه مهر دی، نو له دې آیت څخه دا معلومه سوه چې نکاح بدون تسمیة المهر هم صحیح ده، نو مونږ دا وایو چې مهر خو له لوازمو څخه د نکاح دی ولیس من شرائط النکاح ذکره وتسمیته وعلیه انعقد الاجماع.

**فائده:** اقل د مهر په نیز زمونږ لس درهمه دی قیاساً علی قطع الید في السرقة بهذا المقدار ولا تعیین في اکثر مقدار المهر اتفاقاً.

**مسئله:** نکاح بېله مهره له خواصو څخه د نبي ﷺ ده لقوله تعالی "وامرئة مؤمنة ان وهبت نفسها للنبي ان اراد النبي ان یستنکحها خالصة لک من دون المؤمنین، او د عین دغه آیت څخه دا هم معلومه سوه چې مؤمنانو ته نکاح بېله ولوره نسته یا مهر مسمی یا مهر مثل کما نص علیه في الآیة السابقة "ان تبتغوا باموالکم"

**مسئله:** که یو چا ښځه په نکاح کړه او دا یې شرط کړی مهر به یې نه وي، امام مالک رحمه الله وایي چې نکاح یې صحیح نه ده لان النکاح عقد معاوضة کالبیع فکما لایصح البیع بشرط عدم الثمن لایصح النکاح بشرط عدم المهر ایضاً. مونږ وایو چې نکاح معاوضه نه ده. ولې چې جزء د انسان چې بضع نه خرڅیږي. البته مهر چې مونږ لازم بولو شرعاً اظهاراً لشرف المحل وهو البضع البته شرطول د عدم مهر شرط فاسد دی والنکاح لایفسد بالشروط الفاسدة بل یبطل الشرط ویصح النکاح بخلاف البیع بشرط عدم الثمن فان البیع یفسد بالشروط الفاسدة، راجع کتب الفقه.

# فَمَا اسْتَمْتَعْتُمْ بِهٖ مِنْهُنَّ فَاٰتُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ

**یوه سه:** چي روح البیان ددې آیت داسې ترجمه کړې ده، هغه شی چي تاسې نفع واخلئ په هغه شي سره یعني الجماع او الخلوة الصحیحة له دغو ښځو څخه یعني مایني بالنکاح الصحیح. نو تاسې ورکوئ ودوی ته مهرونه ددوی په مقابل کي د استمتاع یعني ټوله مهر.

**یوه سه:** چي نفس وجوب د مهر په ذمه کي د زوج په نفس عقد د نکاح دی او وروسته تر استمتاع ټوله مهر واجب الاداء دی.

**یوه سه:** چي بعض مفسران له استمتاع څخه عقد د متعه مراد بولي چي شیعه گان یې صیغه بولي.

**یوه سه:** چي متعه مصطلح عقد دی د نر او ښځي تر منځ چي مراد له هغه څخه ملک د بضع وي تر یوه مده معینه پوري بمهر معین که څو ورځي وي او که میاشت وي چي هغه مده تېره سي، نو ښځه له مېړه څخه پخپله بائنه کېږي بېله طلاقه. او استبراء د رحم یې په یوه حیض سره کېږي چي نبایید حمل یې نه وي اخستی، او د متعې د مېړه او مایني تر منځ میراث هم نسته او نه منکوحه د متعې د سړي ماینه بلل کېږي او نه یې نر مېړه بلل کېږي.

**درویش وایي:** چي که مراد متعه مصلحه وي نو دا آیت منسوخ دی لان الائمة الاربعة اجمعوا علی عدم المتعة الآن عند جمیع علماء الامصار الا طائفة من الشیعة. او نسخ یې په دې آیت سره ثابت دی "والذین هم لفروجهم حافظون الا علی ازواجهم او ما ملکت ایمانهم فانهم غیر ملومین. فمن ابتغی وراء ذالک فاولئک هم العادون" او مور دمخه وویل چي د متعې ښځه ماینه نه بلل کېږي لعدم التوارث کما مر. نو د متعې ښځه په ماوراء ذالک کي داخله ده.

**درویش وایي:** چي ټوله علماء پر دې متفق دي چي متعه یو وخت په عصر نبوي کي روا وه لکن بیرته حرامه سوه. ولې چي مسلم له ربیع بن سبرة رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چي دده پلار یعني سبرة رضي الله عنه چي دی د علیه الصلوة والسلام په

حضور کي وچي علیه السلام وویل "یا ایها الناس" ماتاسي ته اجازه کړې وه په استمتاع کي یعنې په عقد کي د متعه "وانه قد حرم ذالک الی یوم القیامة فمن عنده شیئ منهن" یعنې که د چا سره اوس هم ښځي د عقد متعه وي، نو هغه دي ایله کړي او هغه مهر چي مو ورکړی دی بیرته یې مه څندي غواړئ، او ابن ماجه په صحیح سند سره داسي روایت له عمر رضی الله عنه څخه کړی دی چي ده په خطبه کي وویل چي علیه السلام موږ ته درې واره د متعې اجازه کړې ده ثم حرمها، عمر رضی الله عنه زیاته کړه که چا اوس متعه وکړه او دی محصن و رجمته بالحجارة" یعنې په ډبرو یې سنګساروم کما هو حکم المحصن في الزنا.

**درویش وایي:** چي خدای جل جلاله دي رحم وکړي پر مظهري رحمه الله چي مسئله د متعې یې دونده څرګنده کړې ده چي مره فتنه یې بیرته را ژوندۍ کړېده یعنې دده څرنه چي څوک مطالعه کړي د بعض ناپوهانو به اوس هم د متعې پر جواز یقین سي فطالع تفسیره او دا به یې خیال سي چي مذهب د شیعه ګانو حق دی.

## فَرِيْضَةً ۭ

**پوه سه:** چي لفظ د "فریضة" حال دی له "اجور" څخه او فعیل په معنی د مفعول دی مفروضة من جانب الله، او یا مصدر مؤکد دی ای فرض فریضة.

## وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيْمَا تَرٰضَيْتُمْ بِهٖ مِنْۢ بَعْدِ الْفَرِيْضَةِ ۭ

او ګناه نسته پر تاسي چي استمتاع په نکاح صحیح سره وکړئ چي تاسي په راضي سئ په هغه شي سره یعنې چي ماینه بعض مهر او یا ټول له مهر و مېړه ته ورو بخښي او یا مېړه تر مفروض مهر بالا بود ماینې ته ورکړي وروسته له فریضه څخه د مهر.

**پوه سه:** چي زیاتوب په ولور او کم والی په مهر کي ملحق په اصل عقد سره ګرځي ګویا عقد پر زیات ولور سوی دی، نو ښځه له مېړه څخه د زائد طلب هم کولای سي لکه د اصل مهر طلب چي کولای سي. او په صورت کي د کم والي چي ټوله مهر ښځي د مېړه ته بخښلی وي ملحق په اصل عقد سره نه ګرځي لان المهر

من لوازم عقد النكاح الشرعي. وهذا الذي قلنا حاصل الآية المتلوة فافهم.

**مسئله**: كه ښځي تر نيم مهر كم مهره ته بخښلي و او مهره قبل الدخول دا طلاقه كړه رجع الزوج عليها الى تمام النصف عند ابي حنيفة رحمه الله و عند ابي يوسف و محمد رحمهما الله يتنصف المقبوض فقط.

إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴿٢٤﴾

په تحقيق خداى پاک ښه خبر دى په مصالحو د بندګانو او حکمت لري په هغو احکامو چي خداى ﷻ وخپلو بندګانو ته مشروع کړي دي. فلا اعتراض عليه تعالى في الشرائع.

وَمَن لَّمْ يَسْتَطِعْ مِنكُمْ طَوْلًا أَن يَنكِحَ الْمُحْصَنَاتِ الْمُؤْمِنَاتِ

**پوه سه**: چي د "يستطع" معنا "يجد" ده اى من لم يجد كما يقول الرجل لا استطيع ان احج اى لا اجد مالا احج به او لفظ د "منكم" حال دى له فاعل مستتر څخه د "يستطع" اى حال كونه منكم والطول القدرة. او نصب يې بناء پر دې دى چي مفعول د "يستطع" دى، او "ان ينكح" محلاً منصوب دى چي مفعول دى د قدر. او مراد له "محصنات" څخه حراتي ښځي دي په دليل د دې چي مقابل يې مينځيانې راغلي دي. وانما سميت الحرات محصنات له دې سببه چي حريت دوى ساتلي دي له ذلت څخه د مينځي توب او له صفات رزيله وو څخه د رقيت كما لا يخفى. ومعنى الآية كه چا نه درلودى قدرت مالي د نكاح د حري ښځي.

**پوه سه**: چي "من" موصوله دى متضمن معنى لره د شرط مبتداء ده خبر يې په وروسته آيت راځي.

**پوه سه**: چي مظهري رحمه الله "طولاً" منصوب بولي على انه مفعول مطلق دى د "يستطع" والاوجه ماقلنا آنفاً.

فَمِن مَّا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُم مِّن فَتَيَاتِكُمُ الْمُؤْمِنَاتِ

دا جمله خبر ده د "من" موصوله سابق وتقدير الكلام فلينكح امرئة كائنة من جنس الاماء. يعني مينځه د بل سړي، ولې چي د خپلې مينځي سره خو نكاح

نه ده روا لعدم الحاجة لانه يجوز له وطيها بملك اليمين، چې هغه فتيات مؤمنات دي.

**پوښتنه**: د "فتی" معنا ځوان نر دی او د "فتاة" معنا ځوانه ښځه ده، نو څه سبب دی چې مربی که څه هم سپین ږیری وي فتی یې بولي او مینځه که څه هم سپین سرې وي فتاة یې بولي؟

**ځواب**: هو! معنا د فتی او فتاة خو هغه ده چې سائل ذکر کړه، لکن مربی او مینځه که څه هم سپین ږیری یا سپین سرې وي لکن مولی او بادار یې په طور د ځوانانو استعمالوي یعنې خدمت په کوي او احترام د سپین ږیرتوب یا سپین سرتوب یې نه کوي کما في الاحرار.

**فائده**: امام شافعي او امام مالک رح په دغه آیت سره دلیل وایي پر دې چې نکاح د مینځې سره د قدرت پر نکاح د حرې ښځې نه ده روا، او نکاح د کتابیه مینځې مطلقاً نه ده روا. دوی وایي هغه امر چې مقدر و د "فمما ملکت آه" یعنې فلینکح کما مر آنفاً لپاره د اباحت دی کما لایخفی، او دوی وایي چې وصف یعنې المؤمنات په معنی د شرط دی، نو اباحت د نکاح د مینځیانو مشروط دی په عدم طول سره د نکاح د حرې صراحةً، او بل په ایمان سره د مینځې په اعتبار د وصف، دوی وایي چې په عدم د شرط مشروط چې اباحت د مینځیانو وهم نیستي کیږي. نو چې اباحت نفي سو، نو تحریم ثابت سو لانهما في حکم النقیضین وان کانا ضدین فتدبر او ددې مذهب روایت د جابر بن عبدالله رضي الله عنه څخه او د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه هم مروي دی.

**پوهه**: چې موږ حنیفیان په ځواب کي د شافعي او مالک رح چې دلیل په مذکوره آیت سره وایي داسې وایو "اولاً" چې استدلال په مفهوم مخالف سره لکه دوی چې ووایه زموږ په نېز اعتبار نه لري، مثلاً یو سړی ووایي چې زه د شپې بیرېږم ددې دا معنا نه ده چې زه د شپې تهجد نه کوم، او موږ وایو چې عدم د شرط نه واجبوي نفي د حکم. ولې چې اخیري درجه د شرط داده چې علت به وي او علماء متفق القول دا وایي چې عدم د علت عدم د حکم نه واجبوي لجواز

وجوده بالعلة الاخرى لان تبادل العلل جائز عند العقلاء، نو يو حكم چي مشروط په شرط سره وګرځي او يا مقيد په يو وصف پوري ددې معنا داده چي دغه حكم په نېز او وخت كي د شرط يا وصف موجودېږي، و اما عدم تقدير د الشرط والوصف فمسكوت عنه. نو عدم د حكم پر تقدير د عدم الشرط او الوصف پر عدم اصلي پاته دی عدم شرعي نه دی.

**پوښتنه**: حنيفيه جواز د نكاح د مينځيانو مطلقاً كه مؤمناتې وي او كه كتابياتې وي خواه زوج يې قادر پر نكاح د حرې وي او كه نه وي، په څه دليل يې روا بولي؟

**ځواب**: په عموم ددې آيت "فانكحوا ماطاب لكم الآية" او په عموم ددې آيت واحل لكم ما وراء ذالكم، والحاصل دا چي قيد د مؤمناتو دلته يا قيد د عدم طول د حرې جاري مجرى العادة. ولې چي عادةً نر چي حر وي نكاح د مينځي يې نه ده خوښه الا عند الضرورة وهي عدم طول د نكاح د حرې ښځي، او داغه رنګه عادت د مسلمان دادی چي په معاشرت د كافرې ښځي كه څه هم كتابيه وي نه راضي كېږي او خپل د ځان پېغور يې بولي او دغه نكاح د مينځي چي ضرورت نه وي خلګ يې پېغور بولي، قال الله تعالى "لا تتخذوا اليهود والنصارى اولياء" يعني دوستان او د مېره او د ماينې تر منځ خواه مخواه محبت وي ومزيد التحقيق في المظهري وروح المعاني وغيرهما.

**يوه سه**: چي امام مظهري په خپل تفسير كي صرف دا بيان كوي چي ابو حنيفه داسي وايي او شافعي داسي، او د نورو امامانو مذاهب بيانوي نه دی ترحم و يو صاحب المذهب ته كوي او نه داسي كوي چي خپل ځان دي يو مذهب ته منسوب كړي لكه په كتابو كي د فقهي حنيفي چي وايي ولنا. ګويا دی صرف بيان المذاهب كوي او د هغو دلائل او نقض او ابرام بيانوي ولله در صاحب روح المعاني حيث يقول وجوزهما الامام الاعظم رحمه الله فيفهم منه السامع انه حنيفي المذهب او د امام مظهري تفسير يوه خواته مېلان نه ښيي بلكي په بعض ځايو كي د امام شافعي رحمه الله ته مائل سي، وهذا ليس صنع المقلد لمذهب خاص.

شعر

ومن مذهبي حب الديار لاهلها وللناس فيما يعشقون مذاهب

په مسلم الثبوت کي وايي ودليل المقلد مذهب امامه لاقوله فافهم.

## وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِاِيْمَانِكُمْ

او خدای ﷻ خبر دی ستاسي په ایمانو سره، یعني فضیلت د یوه پر بل ایمان او عمل صالح سره دی، په حدیث شریف کي راغلي دي چي روایت یې ترمذي او ابو داؤد کړی دی له حضرت ابو هریره ﷜ څخه چي علیه الصلوة والسلام وویل "ان الله قد اذهب عبیة الجاهلیة وفخرها بالآباء انما هو مؤمن او فاجر شقي الناس کلهم بنو آدم وآدم من تراب"

## بَعْضُكُمْ مِّنْ بَعْضٍ

یعني بعض ستاسي که احرار وي او که ارقاوي من جنس بعض آخر، کما مر في الحدیث المذکور آنفاً.

## فَانْكِحُوْهُنَّ بِاِذْنِ اَهْلِهِنَّ

نو تاسي په نکاح کوئ دغه مینځیاني په اجازه د اهل ددوی یعني د مالکانو ددوی.

**پوښتنه**: امر چي مطلق ذکر سي خو لپاره د وجوب وي نو نکاح د مینځیانو واجبه ده او که څه رنګه؟

**ځواب**: وجوب راجع وقید ته یعني باذن اهلهن یعني اذن د ماکانو په وخت کي د نکاح د مینځیانو واجب دی فلا یجوز نکاح الامة الا باذن سیدها.

## وَاٰتُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ

تاسي ورکوئ ودغو مینځیانو منکوحاتو ته مهرونه ددوی.

**پوښتنه**: چي ظاهر ددې آیت خو دادی چي مهرونه حق د مینځیانو دی، او جمهور علماء پر دې دي چي مهر د مینځي ملک دبادار ددې دی فما التوفیق؟

**ځواب**: آلوسي ﷫ په روح المعاني کي ددې آیت ترجمه داسي کړې ده ای

ادوا الیهن مهورهن باذن اهلهن وحذف هذا القید لتقدم ذکره، او الوسي رحمه الله
بل ځواب داسي ورکړی دی چي په کلام کي حذف د مضاف سته ای آتوا اهلهن او
ما تقدم علیه قرینه ده پر دې حذف، او بل ځواب یې داسي ورکړی دی چي آتوهن
په ځای کي د آتوهم یعنې الموالي نکته داده چي اصل مهر خو حق د مینځیانو
دی. ولي چي محل د وطي دوی دي مولی چي اخلي هغه په سبب د ملک یمین.

**درویش وایي:** چي معنا د معروف دلته مفسرانو دا کړې ده چي ولور ددوی
دي نه ځنډوي او نه دي قصد د ضرر رسانۍ ودوی ته کوي.

مُحْصَنٰتٍ غَيْرَ مُسٰفِحٰتٍ وَّلَا مُتَّخِذٰتِ اَخْدَانٍ ۚ

چي دوی به پاک دامنې وي او زانیاتې به نه وي یعنې جهاراً او نه به دوی
اخستونکي وي د پټکي یارانو د زنی لپاره.

**فائده:** محصنات حال دی له مفعول څخه د "فانکحوهن وآتوهن علی سبیل
التنازع. او حسن بصري رحمه الله وایي چي مسافحه هغه زنی ته وایي چي هر چا
چي د زنی دعوت ورکړی دا زنی ورسره کوي، او ذات خذن هغه زانیه بولي چي د
یوه سړي سره زنی کوي، اهل جاهلیت اوله زنی ناروا بلل او دویمه یې روا ګڼل.

**فائده:** غیر مسافحات ولا متخذات اخذان بیان د محصنات دی.

**مسئله:** نکاح د مینځیانو چي یې مقیده کړه په قید د احصان لبیان الافضل
عند الامام الاعظم رحمه الله والشافعي رحمه الله که نه نکاح د غیر محصنت هم روا ده.

فَاِذَآ اُحْصِنَّ

**یوه سه:** چي دا لفظ په صیغه معلوم بعض قراء وایي یعنې بفتح الالف
والصاد، نو یې معنا داده چي دوی ساتلي وه خپل فروج په نکاح کولو سره له
زنی څخه. او په معنی د ازدواج او د اسلام راغلی دی او په هره معنی کي منع
لغوي موجوده ده، او په آیت مذکوره کي معنی د تزویج مراد ده.

فَاِنْ اَتَيْنَ بِفَاحِشَةٍ فَعَلَيْهِنَّ نِصْفُ مَا عَلَى الْمُحْصَنٰتِ مِنَ الْعَذَابِ ؕ

نو که راتګ وکړی دې مینځیانو مسلماتو متزوجاتو په زنی سره. نو پر

دوی باندې نیمې د هغه عذاب سته چې پر محصنٰت یعنې حرائر ابکار یعنې پې مېږه چې زنی وکړي، یعنې پنځوس درې.

**پوه سه**: چې تفسیر د محصناتو دلته په حرائرو متزوجاتو چې زنی وکړي نه دی صحیح. ولې چې د هغو حد خو رجم او رجم خو تنصیف نه قبلوي کما لایخفی.

**فائده**: حد د زنی د حُر که نر وي او که ښځه چې شادي شده نه وي په نېز د امام اعظم رحمه الله سل (۱۰۰) درې دی لقوله تعالی "الزانیة والزاني فاجلدوا کل واحد منهما مائة جلدة".

**پوښتنه**: په حدیث کې د عبادة بن صامت رضي الله عنه چې روایت یې مسلم کړی دی "البکر بالبکر جلد مائة وتعزیب عام" یعنې حد یې سل درې او یو کال فرار کېدل دي. وعن زید بن خالد رضي الله عنه قال سمعت رسول الله ﷺ یامر فیمن زنی ولم یحصن جلد مائة و تغریب عام" رواه البخاري، والیه ذهب الشافعي رحمه الله. نو خبره اوس داده چې حنیفیه رحمهم الله خو تغریب عام نه وایي، نو ددې دوو صحیح حدیثو په جواب کې دوی څه وایي؟

**ځواب**: امام مظهري رحمه الله خو فقط دا دوه حدیثه راوړي دي او دا یې هم ویلي دي والیه ذهب الشافعي رحمه الله او په تغریب عام کې د حنیفیه رحمهم الله له خوا هیڅ جواب نه دی ویلی فکانه رجح الحدیث علی المذهب کما هو ضیع اصحاب ظواهر الحدیث، و الفقیه ابو جعفر الطحاوي حمل الحدیثین المذکورین علی السیاسة دفعاً للفتنة. نو که اوس هم سیاست د امام المسلمین ددې تقاضاء وکړي چې تغریب عام به فائده وکړي نو تغریب د کال دې هم وکړي.

**مسئله**: حد د مریې او مینځې که متزوج وي او که غیر متزوج وي پنځوس درې دی، د مینځې دا خو په عبارة النص سره ثابت دی یعنې الآیة المذکورة او د مریې دا په دلالت النص سره.

**پوه سه**: چې امام اعظم رحمه الله د تغریب زیاتول زیادت بولي پر نص القرآن باندې باخبار الاحاد وهي لاتجوز ومقصود الامام الاعظم رحمه الله ان زیادة التغریب علی الجلد بطریق الحد لا تجوز لعدم ذکر التغریب في نص القرآن، واما بطریق

السياسة فيجوز التغريب كمامر آنفاً.

ذٰلِكَ لِمَنْ خَشِيَ الْعَنَتَ مِنْكُمْ ۚ

دا وهغه چاته مباح ده چي پر ځان بېرېږي له زنئ ځخه كه دى مينځه په نكاح نه كړي، روح البيان "ذالک" اشاره بولي ونكاح ته د مينځي په نېز د عدم قدرت د نكاح د حرې ښځي.

**يوه سه:** چي د عنت لغوي معنى داده چي د سړي هډوكي مات سي وروسته بيا هر مشقت ته استعاره سو وروسته په عرف كي زنئ ته وايي، ولي چي زنى سبب دى د مشقت په دنيا كي په حد سره او په اخرت كي په عقوبت سره.

وَأَنْ تَصْبِرُوا خَيْرٌ لَكُمْ ۗ

او كه تاسي صبر وكړئ له نكاح څخه د مينځيانو يعني د شهوت د زنى علاج په بېرې د خداى ﷻ وكړئ او يا په نفلي روژو كما جال في الحديث النبوي المشهور الذي رواه البخاري وغيره تاسي لره بهتره ده تر نكاح د مينځيانو، ولي چي په نكاح كي د مينځي وراندي كول دي خپل د اولاد ومريتوب ته، ولي چي اولادونه د مينځي خو مريان دي د بادار د هغې، او بل دادى چي مولى د مينځي خو حق د خدمت لري پر مينځه، نو دا ومېړه ته د وطي لپاره چندانې نه فراغه كېږي لكه حره ښځه، او بله داده چي مولى خپله مينځه په سفر كي بېولاى سي د خدمت لپاره، نو مېړه به يې څه كوي، او بل دادى چي مولى خپل مينځه پر حاضر او غائب دوارو خرڅولاى سي، نو په صورت كي د غائب به مينځي مېړه څه كوي، او بل دادى چي مينځه د مولى په امر دباندي وبازار ته د يو كار لپاره وتلاى سي په دې تولو كي خو اهانت او ذلت د ناكح دى ولذا ورد في الحديث النبوي الحرائر صلاح البيت والاماء هلاک البيت.

وَاللَّهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ ﴿٢٥﴾

او خداى ﷻ بخښونكى د ګناه كارانو دى او مهربان دى، يوه له مهربانى څخه يې داده چي په نېز د ابو حنيفه رحمه الله سره له قدرته پر نكاح د حرې يې د

مينځي روا کړې ده که څه هم خلاف الاولیٰ د لماذکرنا من الوجوه لکن په شرط ددې چې سړی به حره ماینه نه لري. ولې چې نکاح د مینځې پر حرې ناروا ده بالاجماع.

**پوښتنه**: په آیت شریف کې خو "مؤمنات" لفظ راغلی دی، نو د کتابیانو مینځیانو نکاح باید نه سي روا؟

**ځواب**: نکاح خو يې روا ده، مګر ابو حنیفه رحمه الله محمول پر ندب بولي يعنې تر نکاح د کتابیه نکاح د مؤمنې مینځې افضله ده لاختلاف المعاش اللائق بالزوجية بيه المؤمن والکافرة الکتابية کما لايخفی.

**درویش وايي**: چې مظهري رحمه الله سره ددې چې دغه تفسير چې وړاندي تېر سو مختاره د اکثره مفسرينو بولي بيا هم خپل په رايه يې داسې تفسير کړی دی، "ذالک" ای شرع الحد "لمن خشي العنت" ای لمن خاف مشقة الضرب. منکم حتی لا تقربوا الزنی.

**فائده**: امام اعظم رحمه الله د مينځې نکاح سره د طول د نکاح د حرې مکروه بولي.

**فائده**: حر سړي ته د څلورو ښځو نکاح روا ده بالا نه ده روا کمامر. او مريي ته تر دوو ښځو بالا نکاح نه ده روا لان النکاح نعمة والرقية منصف لنعمة البشرية.

**فائده**: طلاق مغلظ د حر سړي درې دی او د مريي طلاق مغلظ دوه دي لان الثلثة لاتحتمل التنصيف الحقيقي فافهم.

**تنبيه**: پوه سه چې نکاح له سنتو څخه د رسولانو ده او طريقه د مخلصو بندګانو ده وقد صح عن النبي ﷺ النکاح سنة من سنتي فمن رغب عن سنتي فليس مني او کما قال. وروی البخاري وغيره قال رسول الله ﷺ يا معشر الشبان من استطاع منکم الباءة ای النکاح فليتزوج فانها غض للبصر" يعنې سترګې پټونکې ده له نظر څخه د شهوت و اجنبي ښځو ته "واحصن للفرج" او ساتونکې ده د فرج له زنی څخه "ومن لم يستطع فعليه بالصوم" يعنې نفلي روژې دي ډېرې نيسي "فانه له وجاء. هو نوع من الخصاء." لکن په اختلاف سره د طبائعو د انسانانو احکام د نکاح مختلف کېږي، يعنې که يو سړی په حال کې د توقان و يعنې غلبة الشهوة پر هغه نکاح واجبه ده او که يو سړی په حال کې د اعتدال و هغه ته نکاح مستحب ده،

او مکروه ده هغه چا ته چي له جماعو او نفقې څخه عاجزه و، او که دی په ځان پوهېدی چي زه عنين يم وهغه ته نکاح حرامه ده، په شرعه او شرح کي د شرعه وايي چي دي کوشش کوي چي دين داره او صالحه ښځه دي په نکاح کړي، ولي چي علما، وايي چي صالحه ښځه د دنيا ښه متاع ده. ولي چي د صالحې ښځي سره د سړي زړه فارغه وي له تدبير څخه د کور. او صالحه ښځه ډېر زيار باسي په پخولو کي د ډوډۍ او د ديگ او د سرای په جارو کولو کي او د کور د مفروشاتو په صفا کولو کي، او د ژوندانه د نورو اسبابو په برابرولو کي.

**فائده:** انسان که څه هم ډېر شهوت د جماعو نه لري لکن بيا هم ماينه په کار ده، ولي چي انسان يوازي په کور کي گزاره نه سي کولای، ولي که دی د کور کار په مخه واخلي نو ډېر وخت به پر دي تېر سي نه به علم يا تعليم يا تجارت يا دوکان يا روزانې مزدورۍ ته فارغه وي فالمرئة الصالحة معينة للشخص في الامور الدنياوية والامور الدينية بهذا السبب. له دې کبله ابو سليمان داراني رحمه الله وايي چي زوجه صالحه ليست من الدنيا فانها تفرغک لامور الآخرة سعدي شيرازي رحمه الله وايي.

| | |
|---|---|
| زن خوب و فرمان برد پارسا | کند مرد درويش را پادشاه |
| سفر عيد باشد بر آن کتخدای | که يار زشتش بود در سرای |

**فائده:** که امکان و پېغله ښځه دي په نکاح کړي فانها تکون لک" او په جماع وغيره کي يې د مېړه سره محبت وي، ولي چي څوک يې نه وي ليدلی، او کونده ده که يې اولاد نه و، نو نيمې ستا ده، او که يې له زاړه مېړه څخه عيال و، نو ټوله د بل چا ده رزق ستا خوري او محبت يې د زاړه مېړه سره وي او هر گړی وايي چي زما د زامنو پلار ډېر ښه سړی و خدای ﷻ دې وبخښي او نوی مېړه په خار وهي.

**درويش وايي:** چي حاصل د ټوله مامر من جواز نکاح المملوکات دادی چي نکاح د مينځيانو رخصت دی او صبر کول څندي عزيمت دی، والعلماء متفقون على ان العزيمة اولى من الرخصة.

يُرِيدُ اللَّهُ لِيُبَيِّنَ لَكُمْ

اراده لري خدای ﷻ تا چې بیان وکړي وتاسي ته یعني شرائع د اسلام او مصالح ستاسي د دنیوي او اخروي چارو.

**پوه سه:** چې چونکه په قانون د نحاتو حرف جر پر فعل نه سي داخلېدای، نو ځکه وروسته تر لام جاره "ان" مقدر دی ای لان یبین لکم او دا خو د ظاهري اعراب مقتضی وه. او دا معنی په حیث لام زائد لپاره د تاکید مقتضی ده معنی د استقبال.

وَيَهْدِيَكُمْ سُنَنَ الَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ

او لارښوونه وکړي وتاسي ته د شرائعو د هغو کسانو چې تر تاسي دمخه تېر سوي یعني الیهود والنصاری.

**پوه سه:** چې شرائع د من قبلنا چې منسوخ نه وي زموږ په شریعت کي یې پر موږ اتباع واجبه ده لکن په دې شرط چې خدای ﷻ په قرآن کي بیان وکړي او یا په سنت نبوي سره ثابت وي لکن پس له بیانه انکار پر ونه کړي او د یهود او نصاری وو نقل ته اعتبار نسته لانهم حرفوا کتابیهما بالزیادة والنقصان مګر نه لکه مثل د عبدالله بن سلام رضي الله عنه او یا کعب احبار یې نقل وکړي.

وَيَتُوبَ عَلَيْكُمْ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿٢٦﴾

**پوه سه:** چې "ویتوب" عطف دی پر "یبین" یعني اراده لري خدای ﷻ چې تاسي ته بخښنه وکړي یعني د هغو ګنهو چې تاسي تر بیان د خدای ﷻ دمخه کړي. او بعض مفسران وایي چې معنا د "یتوب" داده چې تاسي ته توفیق درکړي د توبې، او خدای پاک خبر دی په مصالحو د بندګانو او د حکمت څښتن دی چې بېله فائدې حکم نه کوي.

**درویش وایي:** چې آلوسي بغدادي رحمه الله وایي چې مثل ددې ترکیب یعني "یرید الله لیبین لکن آه" په کلام کي د عربو قدیماً وحدیثاً راغلی دی، او د نحاتو په دې ترکیب کي اختلاف دی، سیبویه او جماهیر د اهل بصره وایي چې

مفعول د "یرید" محذوف دی، ای یرید تحلیل ما احل وتحریم ما حرم، او لام لپاره د تعلیل دی ای الارادة المذکورة لاجل بیان لکم چي په سبب د ان مقدره "یبین" په مصدر سره چي تبیین دی بدل سو، نو پر دې تقدیر تعلق د ارادې غیر له تبیین څخه دی بلکې معلول او علت دی، باعث د بصریانو پر دې ډول ترکیب دادی چي "یرید" او مفعول متاخر ته چي "لیبین" دی په لام سره متعدي نه سي چي په نېز د بعض نحاتو ممتنع دی او بعض وايي چي ضعیف دی که څه هم روح البیان او مظهري وايي چي لام د تعدیه نه دی بلکې لام زائد دی لپاره د تاکید د استقبال چي په "یرید" کي سته چي دې لام ته صاحب اللباب لام د تکمله وايي مقابل د تعدیه. او بعض بصریان وايي چي مفعول د "یرید" محذوف نه دی کما في قبل هذا البیان بلکې "یرید" بېله ان مصدري مبتداء ده کما في قول الشاعر "تسمع بالمصیري خیر جن تراه" ای سمعک بالمعیدي خیر من رؤیته. وقصة هذا البیت طویلة مذکورة في بعض کتب النحو والتفاسیر. نو دوی وايي چي "یرید" مبتداء ده او جار ومجرور یې خبر دی. فالمعنی ارادتي کائنة للتبیین وفیه تکلف کما لا یخفی انتهی کلام العلامة البغدادي الآلوسي رحمه الله بحذف کثیر وزیادة کثیرة من جانب العاصي. بیت

تروم العز ثم تنام کیلاً　یغوص البحر من طلب اللالي.

**وَاللّٰهُ يُرِيدُ أَنْ يَتُوبَ عَلَيْكُمْ** وقف

**پوه سه:** چي مظهري رحمه الله وايي چي کرره للتاکید والمبالغة.

**درویش وايي:** چي په تکرار ددې عبارت علاوه پر مبالغې بیان دی د بلاغت فائقه د قرآن عزیز، ولي دغه عبارت چي دمخه ذکر سو یعنې "یرید الله لیبین لکم" ځو مره چون وچرا قیل وقال په اعتبار د اعراب کي و کما نقلناه عن الآلوسي رحمه الله. وهذه العبارة لا اشکال بل لا اخفاء في ترکیبه لان لفظ "الله" مبتداء و "یرید" خبره و "ان یتوب علیکم" مفعول "یرید" فتدبر هداک الله لدرک بلاغات القرآن العزیز.

وَيُرِيدُ الَّذِينَ يَتَّبِعُونَ الشَّهَوٰتِ أَنْ تَمِيلُوا مَيْلًا عَظِيمًا ﴿۲۷﴾

او اراده لري هغه کسان چې متابعت د خواهشاتو نفسانيه وو کوي. يعني الفجار. بعض وايي چې مراد ځيندې زانيان دي. او بعض وايي چې مراد ځيندې مجوسيان دي چې: خور او ميرې نکاح روا بولي. او بعض وايي چې مراد ځيندي يهودان دي چې هغه د اخوات من اب فقط او د بنات الاخ والاخت نکاح روا بولي. چې تاسي مؤمنان لوی ميل وکړي ددوی ومذهبو ته. يعني تاسي هم حلال وګنئ خپل د شريعت محرمات ددوی په متابعت.

**يوه سه**: چې د توصيف د ميل په عظيم سره داده چې يو خو ګناه کول دي سره له اعتقاده په حرمت سره دا خو ميل عظيم دی. او ګناه کول په اعتقاد د روا والي هغه ميل اعظم دی کما لا يخفى.

يُرِيدُ اللّٰهُ أَنْ يُّخَفِّفَ عَنْكُمْ ۚ وَخُلِقَ الْإِنْسَانُ ضَعِيفًا ﴿۲۸﴾

اراده د خدای ﷻ چې پر تاسي امت محمديه باندي تخفيف وکړي يعني په امور شرعيه وو کي . ابن المنذر په تفسير کي له مجاهد رحمه الله څخه روايت کړی دی چې يوه له تخفيف څخه د خدای ﷻ پر دې امت نکاح ده د مينځي، نصرانيه او د يهوديه ښځو سره، او تفسير مدارک وايي چې دا قول د ابن عباس رضي الله عنه دی، و ورد في الحديث بعثت على الشريعة الحنيفية. السمحة البيضاوي ليلها كنهارها او کما قال. واحل لهذه الامة بعض ماحرم على من كان قبلكم. او پيدا کړه سوی دی انسان ضعيف يعني صبر نه سي کولای له شهواتو څخه او تحمل د سختو عبادتو هم نه سي کولای او هر څو چې زمانه و قيامت ته نږدې کيږي ضعف د انسانانو زياتيږي، او له هم دې سببه چې پر دې امت محمديه چې اخير الامم دی آساني يې زياته کړې ده، کلبي رحمه الله وايي چې انسان ضعيف دی چې صبر له ښځو څخه نه سي کولای. نو ځکه خدای پاک فراخي د ښځو په نکاح کي ورته ورکړه، سعيد بن المسيب رحمه الله وايي چې شيطان چې له بلې خوا د يو چا څخه عاجزه سي، نو د ښځو له خوا يې په فتنه اخته کوي. دی وايي چې زه د اتيا کالو

یم او یوه سترګه مي بالکل ړنده سوه وان اخوف ما اخاف علی نفسي فتنة النساء.

**درویش وایي**: چي زه د نیوي کالو یم اوس هم له فتنې څخه د ښځو تر هرې ګناه بېرېږم. ابو هریرة رضي الله عنه وایي اللهم انی اعوذبک من ان ازنی واسرق. فقیل له کبر سنک وانت صاحب رسول الله ﷺ اتخاف علی نفسک بالزنی والسرقة؟ قال کیف آمن علی نفسي وابلیس حي.

## يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَأۡكُلُوٓاْ أَمۡوَٰلَكُم بَيۡنَكُم

ای هغه کسانو چي ایمان یې راوړی دی تاسي مه خوری مالونه خپل یعني یو د بل مسلمان مال مه خوری او د هغو کسانو مالونه هم مه خوری چي ستاسي تابع وي یعنې اهل ذمه.

**مسئله**: لاباس باکل مال الحربي الغیر المعاهد من غیر عذر.

## بِٱلۡبَٰطِلِ

په وجه باطل سره یعنې چي ممنوع وي شرعاً لکه په غصب سره او یا په سرقه یا خیانت سره یا په قمار سره یا په سود سره او یا په عقود فاسده سره. او یا بیع د نقود په نقود سره چي یو ظرف یې مؤجل وي او بل ظرف یې معجل وي کما في حوالات التجار فافهم.

## إِلَّآ أَن تَكُونَ تِجَٰرَةً عَن تَرَاضٖ مِّنكُمۡۚ

مګر نه دغه اکل الاموال یو د بل چي تجارت وي ستاسي په منځ کي په رضا د جانبینو.

**یوه سه**: چي "تجارت" کوفیان قرا، په نصب وایي چي خبر د "تکون" یې بولي او اسم د تکونوا مضمر بولي والتقدیر الا ان تکون جهة الاکل تجارة. او نور قاریان یې په رفع سره وایي او "تکون" تامه بولي او "تجارت" یې فاعل بولي.

**یوه سه**: چي دا استثناء منقطع ده په معنی د لکن په. یعني کلوا وقت کون لاکل تجارة. او وقت کون التجارة الموجودة صادرة عن تراض منکم وقد صح عن النبي ﷺ کما رواه ابن ماجه عن ابي سعید الخدري رضي الله عنه اما البیع عن تراض

یعنې بیع صحیح شرعي د بائع او مشتري په رضا باندې وي.

**پوه سه:** چې تجارت بیعه ده یا په خبرو سره لکه بعت واشتریت او یا په تعاطي یعنې لاس په لاس بېله خبرو مثلاً د ډوډۍ نرخ معلوم و لکه اوس چې په شلور روپۍ ده نو یو سړی نان وای ته شلور روپۍ کښېږدي او ډوډۍ راواخلي هیڅ خبره ورسره ونه کړي.

**درویش وایي:** چې تخصیص د تجارت چې په ذکر سره وکړي له دې سببه چې اغلب او انفع د مال د خوړلو د چا تجارت دی. ورنه اسباب د خوړلو د بل د مال ډېر دي لکه د یو چا میراث چې ورپاته سي او یا څوک په بخښنه مال ورکړي او یا یې په زکوٰة کې ورکړي الی غیر ذالک. وعن رافع بن خدیج ﷺ ده وویل چې چا پوښتنه وکړه له رسول الله ﷺ څخه "ای الکسب اطیب" کوم کسب ښه دی "قال عمل الرجل بیده" یعنې د سړي عمل په خپل لاس سره. لکه روزانه والا یا نجاري والا یا بنایي والا وغیرها من اکساب الید "وکل بیع مبرور رواه احمد.

**پوه سه:** چې بیع مبرور هغه ده چې خیانت او دروغ او شروط فاسده نه وي پکښې الی غیر ذالک من الخبائث.

## وَلَا تَقْتُلُوٓا۟ أَنفُسَكُمْ ۚ

او تاسي مه وژنئ خپل ځانونه په هره توګه چې وي. یعنې خود کُشي مه کوئ.

**درویش وایي:** چې خود کُشي په جاهلانو کې د هند رواج وه اخیر الامر وتېولې نړۍ ته د مسلمانانو هم پیل سوه په نرو او ښځو کې قسم قسم خودکُشي رواج سوې بعض ځوانان چې پر یو شي یې طبیعت خراب سي او مرانده په یوه تیر یا ګاړډر باندې وخېږي او سر ته د مراندې برابره خپل د غاړې لوپکه ورکړي او یو شی تر پښو لاندې کړي چې لوپکه یې غاړې ته واچول هغه تر پښو لاندې شی په پښه پرې وهي او ځان په دار کړي یو ګړی وروسته په خپله مړ سي. او بعض ځوانان چې د کور د ژوند انه چارې پر تنګې سي خپل ځان په توپنچه وغیره وولي. او بعضې ښځې چې په کور کې یې له یوه سببه ژوند تنګ سي. پر ځان ګاسلېټ وپاشي او کالو ته ورلګیت ووهي ځان سره لمبه کړي. او بعض ښځې بیا د موږکانو د وژنې دوا وخوري.

بعض مفسران وايي چي مراد له آيت څخه دادی چي ځان وهلاکت ته مه ىبشوه لکه د عمر ابن العاص ﷺ څخه چي روايت دی چي يو وخت دی جنب سو او ډېر سخت يخ و. نو لپاره د سهار يې تيمم ووهی او لمونځ يې وکړی، نو موضوع چي و عليه الصلوة والسلام ته پېش سوه، نو عليه والصلوة والسلام انکار نه پر وکړی. او بعض مفسران وايي چي دوند معاصي دي مسلمانان نه کوي چي سبب د هلاکت دده په دنيا او اخرت کي وي لکه يو سړی چي عمداً قتل کړي فانه القتل الحقيقي لنفسه يعني قصاصاً، او بعض مفسران وايي چي مراد له قتل څخه د ځان قتل د بل ورور مسلمان دی لان جميع المسلمين کنفس واحدة. او بغوي رحمه الله روايت کړی دی چي رسول الله ﷺ وويل که چا په يو شي ځان مړ کړی په دنيا کي عذبه يوم القيامة. او په يوه روايت کي د ابو هريره ﷺ داسي راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام وويل که چا له غره څخه ځان را وه غورځاوه او ځان يې مړ کړی. نو دی به په دوږخ کي هم ځان له يو غره څخه راغورځوي خالداً مخلداً فيها ابداً. او که چا په وسپنه يعني چاړه وغيره ځان ووژني هغه وسپنه به يې په دوږخ کي په لاس کي وي ځان به په وهي خالداً مخلداً فيها ابداً رواه البخاري ومسلم والترمذي.

**درويش وايي:** چي امثال ددغو احاديثو ښېخي ډېر دي او په صحاح سته وو کي مذکور دي.

**فائده:** علماء حضرات توجيه د خلود في النار چي په دغو حديثو کي مذکور دی دوه ډوله کوي، يو دا چي دا احاديث محمول پر مستحل دي يعني چي قتل ځان ته روا بولي. نو په استحلال دی کافر دی، نو ځای يې ابدي دوږخ دی. او بعض وايي چي دا احاديث محمول پر تشدد او تغليظ دي کما في قوله عليه الصلوة والسلام لاصلوة لجار المسجد الا في المسجد، وقوله عليه السلام من لا زکوٰة له لا صلوة له" يعني چي زکوٰة پر فرض وي او نه يې ورکوي، نو لمونځ يې هم نه دی صحيح او کما قال.

إِنَّ اللَّهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيمًا ﴿٢٩﴾

خدای ﷻ پر تاسي مهربان دی ځکه يې تاسي امر کړلاست په حسناتو سره او نهي يې کړلاست له اعمال قبيحه وو څخه لفرط رحمته تعالی. او بعض مفسران وايي چې رحمت الهي پر دې امت دادی چې بني اسرائيل يې امر کړي وه په قتل نفس سره توبةً او تاسي يې له هغه څخه نهي کړلاست يعنې بقوله تعالى "ولا تقولوا انفسكم" بلکې ستاسي توبه يې پښېماني د زړه او استغنا. د ژبې وګرځوله كذا في روح البيان والمظهري وروح المعاني وغيرها.

وَمَن يَفْعَلْ ذَٰلِكَ عُدْوَانًا وَظُلْمًا فَسَوْفَ نُصْلِيهِ نَارًا ۚ وَكَانَ ذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرًا ﴿٣٠﴾

او که څوک فعل وکړي ددغه يعنې مال د غير وخوري، او يا معصوم نفس ووژني په سبب د تجاوز پر بل چا. او ظلم وکړي پر خپل ځان چې ځان يې د خدای ﷻ وعذاب ته پېش کړی، نو ژر دی چې موږ به دی داخل کړو اورته يعنې په ورځ د آخرت. او دا کار د دخول و اورته خدای ﷻ ته اسانه دی.

**يوه سه**: چې "عدواناً او ظلماً" منصوب دي على الحالية. نو په معنی د متعدياً وظلماً دي ليصح الحمل. او يا يې نصب په سبب د مفعول له والي دی، اى لاجل العدوان والظلم.

**يوه سه**: چې امام رازي ﷫ په تفسير كبير كي وايي چې ممكنات ټوله نسبت و قدرت ته د خدای ﷻ يو ډول دي، نو څرنګه به بعض افعال اسانه وي وخدای ﷻ ته تر بعض؟ بيا امام جواب داسي ورکړی دی چې دا کلام مبني دی پر عرف، مثلاً يو سړی وايي چې فلانی کار ما ته اسانه دی. ددې معنا دا نه ده چې بل کار نو ماته ګران دی يعنې مفهوم مخالف نه لري.

**فائده**: علماء ټوله په يوه خوله وايي چې خوړل د مال د غير که څه هم اهل ذمه کافر وي حرام دی لکه وينې تويول چې حرام دی، قال عليه الصلوة والسلام كل المسلم حرام دمه وماله وعرضه" او په بل حديث کي راغلي دي لا يحل مال

امرئ مسلم الا بطيبة نفس منه.

**فائده**: یو خیاط بعض علماؤ ته ورغلی چي زه چي د ظالم کالي ورجوړ کړم، نو زه دده معاون په ظلم کي ګڼل کېږم؟ هغه عالم ورته وويل چي په تاکي خبره نسته بلکې خبره په حداد کي ده یعنې آهنګر چي ظالم ته اصلحه ورجوړوي یعنې هغه معاون د ظالم دی.

## اِنْ تَجْتَنِبُوْا كَبٰٓىِٕرَ مَا تُنْهَوْنَ عَنْهُ

که تاسي پرهېز وکړئ له غټو څخه د هغو ګنهو چي تاسي ځيندي منع سوي یاست.

**پوه سه**: چي دا شرط دی جواب یې وروسته راتلونکی دی.

**درویش وایي**: چي په کبیره ګنهو کي په عقائدو کي قديماً او حديثاً عظیم اختلاف دی، امام واحدي رحمه الله وايي چي صحيح داده چي کبیره ګناه حد معلوم نه لري چي بندګان دي په پوه سي، له دې کبله چي که حد معین ولري، نو عوام پر صغائرو ګنهو دلاور کېږي او لکه مباح داسي به يې استعمالوي، ولي چي دوی به وایي چي خدای ﷻ خو داسي ويلي دي چي که تاسي پرهېز وکړئ له کبیره ګنهو څخه "نکفر عنکم سيئاتکم" یعنې صغیره ګنهونه زه مفت دربخښمه، نو له دې کبله خدای ﷻ پټ ساتلي دي کبیره ګنهونه چي بندګان له هرې ګناه څخه پرهېز وکړي چي نبایده کبیره نه وي، لکه صلوة وسطی په هغه آيت کي "حافظوا على الصلوة والصلوة والوسطى" خدای ﷻ پټ ساتلی دی تاچي بندګان پر ټولو لمونځو محافظت وکړي په ګمان ددې چي دا به صلوة وسطی وي، او داغه رنګه لیلة القدر یې پټه ساتلې ده تاچي روژیاتیان په هره شپه کي د میاشتي د روژې کوشش په طاعت او دعاء کي وکړي په ګمان د لیلة القدر، او دغه ساعت د اجابت د دعاء په ورځ کي د جمعې خدای ﷻ پټ ساتلی دی.

له ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی چي ګناه کبائر هغه دي چي له اول څخه ددې سورت تر دې ځایه خدای ﷻ بیان کړي دي، او بعض علماء وايي چي کبائر اووه دي او دلیل په هغه حدیث د بخاري او مسلم وايي "اجتنبوا السبع الموبقات

"ای "المهلکات" (١) الشرک بالله (٢) السحر (٣) قتل النفس التي حرمها الا بالحق لکه قصاص (۴) اکل مال الیتیم یعني ظلماً (۵) اکل الربوا (٦) والتولي یوم الزحف. یعني شاه ګرځول په ورځ کي د جنګ د کافرانو سره (٧) وقذف المحصنات المؤمنات الغافلات، او په بعض روایاتو کي د بخاري او مسلم داسي راغلي دي "الکبائر الاشراک بالله، والسحر، وعقوق الوالدین، وقتل النفس. وزاد البخاري والیمین الغموس. او مسلم په بل ځای کي د یمین غموس په ځای کي قول الزور راوړی دی. وفیه ان ذالک محمول علی انه علیه الصلوة والسلام ذکرها لبیان المحتاج منها وقت الذکر لا لحصره الکبائر فیما ذکره، او امیر المؤمنین علي رضي الله عنه او عطاء رحمه الله او عبید بن عمیر رحمه الله ودې ته تللی دی چي ګناه کبائر اوه دي. او بعض علماء وایي چي نهه دي. استدلال په حدیث د ابن عمر چي دده څخه پوښتنه وکړه چي کبائر ګنهونه څو دي؟ ابن عمر رضي الله عنه ورته وویل چي ما د علیه الصلوة والسلام څخه داسي اورېدلي دي وه یې ویل چي ګناه کبائر نهه دي (١) الاشراک بالله تعالی (٢) وقذف المحصنة (٣) وقتل النفس المؤمنة (۴) والفرار من الذحف (۵) والسحر (٦) واکل مال الیتیم (٧) واکل الربوا (٨) وعقوق الوالدین (٩) والالحاد في بیت الحرام چي ستاسي قبله ده احیاءً وامواتاً او له ابن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دی چي ګناه کبائر لس دي. او بعض صحابه وایي څورلس دي او بعض وایي چي پنځلس دي، او عبد الرزاق له ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چي دی وایي چي ګناه کبائر و اویاوو ته نژدې دي، او ابن جبیر له ابن عباس رضي الله عنه څخه داسي روایت هم کړی دی چي ګناه کبائر اووه سوه ته نژدې دي لکن ابن عباس رضي الله عنه وایي لا کبیرة مع الاستغفار ولا صغیرة مع الاصرار، او بعض وایي چي په ګنهو کي صغیره ګناه نشته بلکې هره ګناه کبیره ده دا مذهب دی د استاذ ابو اسحاق الاسفرائني، او د قاضي ابوبکر الباقلاني او د امام الحرمین ابو المعالي عبد الملک په کتاب کي چي ارشاد یې نوم دی او د ابن القشري په مرشد کي چي دده تصنیف دی بل حکاه ابن فورک عن الاشاعرة واختاره في تفسیره فقال معاصي الله کبیرة عندنا آه.

**درویش وایي:** چې ظاهر ددې آیت بلکې د احادیثو شریفه وو پر دې دلالت کوي چې گنهونه دوه قسمه دي صغیره او کبیره. او ابن فورک ددې آیت دالسې تاویل کړی دی چې ظاهر د آیت اباء څندي کوي. علامه ابن حجر رحمه الله وایي چې جمهور علماء د مذاهبو اربعه وو پر دې متفق دي چې انقسام د گناه وصغیره او کبیره ته حق دی. وقال انه لا خلاف بین الفریقین في المعنی ومراده بالفریقین الفریق القائل بالانقسام والفریقین القائل بان کل المعاصي کبیرة کمامر. ابن حجر رحمه الله وایي صرف اختلاف په تسمیه کې دی. نو فریق ثاني له دې څخه احتراز کوي چې اطلاق د صغیره دې پر معصیت د خدای ﷻ وکړي نظراً الی عظمة الله وشدة عقابه. واجلالاً له عزوجل عن تسمیة معصیة صغیرة لانها اي المعصیة بالنظر الی باهر قدرته تعالی وعظمته تعالی کبیرة ولم ینظر جمهور العلماء الی ذالک ای ملاحظة جلالته تعالی لانه معلوم للکل بل قسموها الی القسمین ای الصغائر والکبائر کما یقتضیه صرائح الآیات القرآنیة والاحادیث النبویة خصوصاً دا آیت "ان تجتنبوا" تر پایه پوري وقال الامام حجة الاسلام ابو حامد محمد الغزالي لا یلیق انکار الفرق بین الصغائر والکبائر، وقد عرفنا ذالک من مدارک الشرع نعم قد یقال لذنب واحد کبیر وصغیر باعتبارین لان الذنوب تتفاوة في ذالک ای في الصغر والکبر باعتبار الاشخاص والاحوال ولهذا قال علیه الصلوة والسلام للجاهل ویل وللعالم سبعین ویلاً، ومن ههنا قال الشاعر.

لا یحقر الرجل الرفیع دقیقةً	في السهو فیها للوضع معاذر
فکبائر الرجل الصغیر صغائر	وصغائر الرجل الکبیر کبائر

والی هذا اشار من قال حسنات الابرار سیئات المقربین. وقال سید العشاق سیدي ابن الفارض قدس سره.

ولو خطرت لي في سواک ارادة	علی خاطري سهواً حکمت بردتي

**درویش وایي:** چې اکثرو صحابه وو او تابعینو رضي الله عنهم د صغیرې او کبیرې یو مفهوم او تعریف جامع او مانع بیان کړی دی. امیر المؤمنین علي رضي الله عنه وایي الکبیرة کل ذنب ختمه الله بنار او غضب او لعنة او عذاب. او ضحاک رحمه الله وایي

چي كبيره ګناه هغه ده اوعد الله عليه حداً في الدنيا او عذاباً في الآخرة وماقاله الضحاک قريب الى ماقال امير المؤمنين ﷺ.

**دروېش وايي:** چي بعض علماء كبيره ګنهو لره عدد وايي يعني تعريف نه ورلره وايي وعددها عندهم ماجاء. في الاحاديث النبوية كمامرت. او بعض صحابه او تابعين كبائرو ګنهو لره حد او تعريف وايي. نو تر دې مفهوم او حد چي هر څو او كوم ګنهونه لاندي سوي هغه كبيره دي وما عداها صغيرة وهو الصحيح عند اكثر الصحابة والتابعين. او په نېږ ددغو علماؤ هغه چي په بعض احاديثو صحيحه وو چي عدد د كبير ګنهو بيان سوى دى محمول دى پر اقبح د ګناه كبيره وو او يا مروج في الناس او يا متعلق بحقوق العباد دى.

**بوه سه:** چي اجتناب د كبيره ګنهو تكفير د صغيره ګنهو لازمه وي كماهو نص هذه الآية الى تمامها. او كه يو چا لره صغيره او كبيره دواړه ګنهونه نه وي يمكن له الدخول في المدخل الكريم وهو حضرت اكرم الاكرمين. قال بعض المفسرين وجملة الكبائر مندرجة په درې شيه كي.

(۱) اتباع الهوىٰ، والهوىٰ هو ميلان النفس الى ما يستلذ به من الشهوات. نو ګاهي انسان په اتباع سره د هوىٰ يقع في كثير من الكبائر، مثلاً البدعة والضلالة والارتداد الشبهة في امور الدين واللذات المحرمة وحفوظ النفس بترک الصلوة والطاعات كلها وعقوق الوالدين والاساتذة وقطع الرحم وقذف المحصنات وامثالها. ولهذا قال الله تعالى "ولا تتبع الهوى فيضلک عن سبيل الله. وقال عليه الصلوة والسلام "ماعبد آله ابغض على الله من الهوىٰ" قال السعدي الشيرازي

غبار هوا چشم عقلت بدوخت سموم هوس كشت عمرت بسوخت
بكن سرمه غفلت از چشم پاک كه فردا شوى سرمه درچشم خاک

(۲) حب الدنيا، فانه مطية كثير من الكبائر مثل قتل المسلم لاخذ ماله والظلم على عباد الله لاخذ الرشوة مثلاً والغصب والنهب والسرقة واكل الربوا، واكل مال اليتيم، ومنع الزكوة وشهادة الزور، كتمان الشهادة واليمين الغموس

والحيف في الوصية والرشوة، واستحلال الحرام ونقض العهد وامثالها. وقال عليه الصلوة والسلام حب الدنيا راس كل خطيئة. وقال عليه الصلوة والسلام اتاني جبرئيل وقال ان الله قال وعزتي وجلالي انه ليس من الكبائر كبيرة هي اعظم عندي من حب الدنيا.

(۳) وغیر ته د خدای ﷻ کتل. ولې چې له دې څخه شرک هم پیدا کیږي، والنفاق والرياء والكذب على الله وعلى رسوله وامثاله. قال الله تعالى "ان الله لا يغفر ان يشرك به ويغفر مادون ذالک لمن يشاء." وقال عليه الصلوة والسلام اليسير من الرياء شرک ای خفي" بيت

بروی وریاء خرقه سهلست دوختن وگر برخدا درفروشی نکوست
گر چه زندانست بر صاحب دلان هر کجا بوی ز وصل یانیست
هیچ زندان عاشق محتاج را تنگ تر از صحبت اغیار نیست

وما سوی الله اغیار.

**پوښتنه**: بعض علماء وایي چې بنده ګاهي داسې درجې ته رسیږي چې وده ته هیڅ ګناه تاوان نه رسوي، ددې عبارت معنا څه ده؟

**ځواب**: ددې عبارت دا معنا نه ده چې بعض خلګ وداسې درجې ته رسیږي چې تکالیف الٰهیه څیندې پورته کیږي او محرمات شرعیه تهوله تهوله ورته حلال ګرځي لان هذا کفر بواح وزندقة ظاهرة، بلکې ددې عبارت معنا داده چې بعض اهل الله دونده قرب الٰهي او مراقبه د خدای ﷻ حاصلیږي چې اول خو له ده څخه ګناه نه صادریږي او که احیاءً او نادراً له ده څخه ګناه صادره سي کبیرةً او صغیرةً دونده لوی غم او بار یې پر زړه واقع کیږي ګویا دده اهل، اولاد او اموال تهوله هلاک سوه حتی چې دونده اوښکې تر ستر ګو تویې کړي او زړه یې له غمه ډک سي او ندم، حسرت او پښېماني ورته حاصله سي چې اندازه یې نه وي، نو دغه مذکوره شیان سبب د نزول د رحمت الٰهي وګرځي ګناه خو عفوه سي ومع هذا درجه یې په نېز د خدای ﷻ ډېره لوړه سي تر هغې درجې چې ده ګناه نه وه کړې کریمه "اولئک يبدل الله سيئاتهم حسنات" بعض عارفان وایي

تانه گرید ابر کی خندد چمن — تانه گرید طفل کی جوشد لبن
هر کجا آب روان سبزه شود — هر کجا اشکی روان رحمت شود

**فائده:** له سیدتنا عائشة رضي الله عنها څخه روایت دی چې علیه الصلوة والسلام وویل الدواوين ثلثة" یعني عمل نامې د بندګانو درې قسمه دي "فديوان لا يعبأ الله به شيئاً" یوه داسې عمل نامه چې خدای جل جلاله هیڅ پروا نه کوي یعني بمافیه "وديوان لايترك الله منه شيئاً" او بله داسې عمل نامه وي چې له هغې څخه خدای جل جلاله هیڅ شی وبنده ته نه عفوه کوي "وديوان لايغفر الله" یو داسې دېوان دی چې خدای جل جلاله يې هرګز نه بخښي "اما الديوان الذي لايغفر الله فهو الشرک"

**درویش وايي:** چې شرک له ملحقاتو څخه دی یعني خدای جل جلاله يې نه بخښي، چې څوک تکذیب وکړي د ماجاء به رسول الله صلی الله علیه وسلم او په قطعي توګه ثابت وي، نو که دا تکذیب صریحاً او بېله تاویله وُ، هغه خو کفر دی او که په تاویل سره هغه ته هوا او بدعت وايي لکه اقوال د روفضو او خوارجوا او قدریه و او مجسمه وو وامثال ذالک. اما الديوان الذي لايعبأ الله به شيئاً هغه هغه دېوان د ګنهو دی چې په منځ کې د خدای جل جلاله او د بنده وي لکه لمونځ چې يې قضاء کړې وي او یا يې فرضي روژوه بېله عذره نه وي نیولي الی غیر ذالک من العبادات فان الله تعالی يغفر ذالک لمن يشاء. واما الديوان الذي لايترک الله شيئاً فظلم العباد بعضهم بعضاً مثلاً د چاوینه يې عمداً توی کړې وي، او یا يې د چا مال غصباً یا سرقةً یا په حلف کاذب وغیره ذالک سره خوړلی وي. مطلب دا چې بېله اجازې د شرع شریفي يې د چا مال خوړلی وي فيدخل فيه الربوا او الخيانة ففي مثل ذالک القصاص یعني حسنات د جاني ومجني علیه ته ورنقل کوي او که حسنات د جاني خلاصي سوې د مجني علیه سیئات پر جاني حمل کوي ثم يجره الی النار کما جاء في الحديث الصحيح الذي رواه البخاري وغيره.

له حضرت ابوبکر رضي الله عنه څخه روایت دی چې یوه ورځ علیه الصلوة والسلام وویل چې زه تاسې خبر نه کړم په اکبر د کبائرو، درې واره يې دا خبره مکرره کړه: نو اصحاب کرامو رضي الله عنهم ورته وویل بلی یعني خبر مو کړه، نو علیه الصلوة والسلام

ورته وویل چي اکبر د کبائرو اشراک باالله دی، وعقوق الوالدین وجلس وکان متکئا الا وقول الزور الا وقول الزور الا وقول الزور الا وقول الزور صحابه وو ته یې دا خبره مکرره کړه چي موږ وویل لیلته سکت کاشکي دی ساکت سوی وای ددې خبري له تکرار څخه یعني شفقةً علیه.

**پوښتنه**: علیه الصلوة والسلام ولي قول الزور دونده مکرر کړی؟

**ځواب**: سبب یې دا و چي قول الزور اشراک بالله ته هم شامل و. او شهادات الزور قذف ته هم شامل و، او دعوه باطل ته هم شامل و، او کذب علی النبي ﷺ ته هم شامل و، نو له دې سببه قول الزور ډېرو ګنهو ته شامل و. نو علیه الصلوة والسلام یې مبالغه په نهي کي د قول الزور مبالغه په تکرار د سره وکی والله اعلم

**درویش وایي**: چي بعض علماء وایي چي کبیره او صغیره له اسماء اضافیه وو څخه دي، ولي چي هر ذنب و مافوقه صغیره ده او و ماتحته کبیره ده. لیس بشئ لانه ح، ما معنی قوله تعالی "ان تجتنبوا کبائر ماتنهون عنه الی اخیرها لانه حینئذٍ اما یلزم مغفرة بعض الکبائر التي هي ادون من غیرها من الکبائر او یلزم عدم مغفرت بعض الصغائر التي تحتها صغائر اخر" وکلا الازمین باطل کما لایخفی فتدبر.

## نُكَفِّرْ عَنْكُمْ سَيِّاٰتِكُمْ

موږ به وبخښو وتاسي ته صغیره ګنهونه. مثل القبلة واللمسة بالشهوة للمرئة الاجنبیة کما ورد في الحدیث الصحیح العینان تزنیان یعني په شهوت و اجنبي ښځي ته وګوري "والیدان تزنیان" لکه په شهوت چي بېګانه ښځه مسحه کړي "والرجلان تزنیان لکه د زنا لپاره چي د ښځي کور ته ور روان سي "ویصدق ذالک الفرج وکذبه" که زنا وکړي او که یې نه وکړي "کلها یکفرها الصلوات والصیام والاذکار وغیر ذالک. قال علیه الصلوة والسلام الصلوات الخمس والجمعة الی الجمعة ورمضان الی رمضان مکفرات لما بینهن اذا اجتنب الکبائر، رواه مسلم.

**درویش وایي**: چي مغفرت د صغائرو ګنهو مشروط دی په اجتناب د کبائرو ګنهو یعني که دا اجتناب د کبائرو ګنهو ونه کړي صغائر یې بخښل کېږي والصحیح

ان ایراد هذا الشرط لاجل ان الکبائر اذا کانت ای وجدت لا الصغائر بالافعال المذکورة یعني الصلوة الخمس والجمعة الی الجمعة وغیرها مماذکرت. ودلیل مغفرة الصغائر بتلک الافعال قوله تعالی "ان الحسنات یذهبن السیئات"

وَنُدْخِلْكُم مُّدْخَلًا كَرِيمًا ﴿٣١﴾

او مونږ به دوی داخل کړو ښه ځای ته یعنې الجنة او القرب الی حضرت الرب جل سلطانه. بر کریمان کارها دشوار نیست.

**پوهه**: چې بعض قاریان د "مَدخَلاً" لفظ په ضمه د میم وایي او بعض یې په فتحه د میم وایي. پر هر تقدیر دا لفظ یا ظرف مکان دی. نو مفعول به د "ندخلکم" وي. نو معنا یې داده چې مونږ به دوی داخل کړو هغه ښه ځای ته د دخول. او یا "مدخلاً" مصدر میمي دی والمفعول علی هذا محذوف والمعنی ندخلکم الجنة دخولاً حسناً ای بلا تبعة ولا ملامة. قال مجاهد قالت ام سلمة رضي الله عنها الرجال یغزون ولا نغزوا" نران غزاوي کوي او مونږ ښځي يې نه کوو یعنې اجازه د غزاء خدای ﷻ نه ده راکړې "ولهم ضعف مالنا من المیراث یعنې سره ددې چې قرابت و میت ته مو یو دی کالابن والبنت والاخ والاخت الی غیر ذالک. نو کاشکې مونږ نر وایي، نو به مو غزاء کولای لکه نران او د نرو سره برابر به مو حصه د میراث وړلای، نو دا آیت نازل سو.

وَلَا تَتَمَنَّوْا مَا فَضَّلَ اللَّهُ بِهِ بَعْضَكُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ

او تاسې اې ښځو تمنی مه کوئ د هغه شي چې په هغه شي سره خدای ﷻ تفضیل ورکړی بعضو ته ستاسې یعنې الرجولیة پر بعض باندې یعنې الانوثة.

**درویش وایي**: چې وجه د نهي له تمنی مذکور څخه داده چې دا تفضیل قضاء الهي ده. نو باید په قضاء الهي راضي اووسي، او د خدای ﷻ کارونه له حکمت او تدبیره خالي نه دي. مثلاً ښځه چونکه عورت ده نو په شمول کې ددې غزواتو کې لامحالة کشف العورة لازمیږي، او بل داده چې له ورته متنی څخه حسد پیدا کیږي مع ان الحسد لا یفید شیئاً.

**فائده:** زه وبعضو ملايانو ته حيران يم چي په دې خو ښه پوهېږي چي حسد ماته هيڅ فائده نه کوي بلکې تاوان راته کوي ولي چي حسد گناه کبيره ده بيا هم حسد کوي. وهکذا الغيبت والبهتان. او پر منبر د وعظ چي دغه حاسد يا غيبت کونکي د حسد او غيبت قبائح په احاديثو سره بيانوي، نو ددې ملا علم حجت دی عليه لاله. لنعم ماقيل.

واعظان کين جلوه در محراب ومنبر ميکنند
چون به خلوت ميروند کاري ديگران ميکنند
توبه فرمايان چرا خود توبه کمتر ميکنند

بلکې هر سړي لره په کار ده چي حتى الوسع والطاقة بذل د جهد خپل وکړي هغه عبادات او حسنات يې سبب د قرب الهي لپاره سي.

**لِلرِّجَالِ نَصِيبٌ**

نرو لره خپله برخه ده چي خدای ﷻ دوی ته ليکلې ده من الفضل والثواب والاموال.

**مِّمَّا اكْتَسَبُوا ۖ**

**پوه سه:** چي "من" مدغمه لپاره د سببيت دی ای بسبب "ماکسبوا من الجهاد والتجارة من العبادات المختصة بهم وغير المختصة ومن الغنيمة والارث بقدر ما قدرلهم في كتاب الله وسنة رسول الله ﷺ.

**وَلِلنِّسَاءِ نَصِيبٌ**

ښځو لره هم برخه سته مکتوب عند الله من الثواب والاموال.

**مِّمَّا اكْتَسَبْنَ ۚ**

په سبب د کسب ددوی من اطاعة الازواج وتدبير الاولاد وحفظ الفروج وغير ذالک ممايختص بهن ومالا يختص بهن من العبادات والارث وغير ذالک حسب ما قدر لهن الله ورسوله.

**وَسْئَلُوا اللَّهَ مِن فَضْلِهِ ۚ**

**پوه سه:** چي مخاطب نر او ښځي دواړې دي يعنې تاسي سوال کوئ له خدای ﷻ څخه ثواب الدنيا والآخرة له فضله څخه د خدای ﷻ چي پر پوه

حسنه لس مثل ثواب ورکوي الی سبعمائة ضعف بل الی ماشاء الله.

إِنَّ اللَّهَ كَانَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمًا

نو خدای ﷻ هر چاته وظیفه ټاکلي ده کالجهاد للرجال وحفظ البیت وتربیت الاولاد للنساء. او نرو ته یې ضعف د میراث د ښځو ورکړی دی. وکل ذالک مبني علی حکم ومشتمل علی المصالح فلا ینبغي للنساء ان یطلبن وتمنین غیرما قدر لهن الله العزوجل. په حدیث قدسي کي راغلي دي "من استسلم لقضائي وصبر علی بلائي وشکر علی نعمائي کتبته صدیقاً وبعثته یوم القیامة مع الصدیقین ومن لم یرض بقضائي ولم یصبر علی بلائي ولم یشکر علی نعمائي فلیطلب رباً سوائي. وفي الحدیث الصحیح لن یزال الناس بخیر ماتباینوا ای تفاوتوا یعني في الفقر والغنی وغیر ذالک فاذا تساؤا هلکوا. وذالک لاختلاف النظام المرتبط بذالک یعني بعض الناس به سلطان وي بعض به وزیران وي بعض به قاضیان وي بعض به فقیران وي بعض به عالمان وي بعض به جاهل وي بعض به مجاهد وي بعض به قاعد البیت وي الی غیر ذالک.

**درویش وايي:** چي ابن سرین ﷫ له ابو هریره ﷺ څخه داسي روایت کړی دی چي رسول الله ﷺ وویل "لایخطب الرجل علی خطبة اخیه" مرکه دي نه کوي یو سړی یعني یوې ښځي ته پر مرکه د ورور دده یعني چي بل مسلمان وهغې ښځي ته مرکه کړې وي یعني تر هغو پوري چي هغه سابق مرکه والا خپل مرکه قطع کړي "ولایسوم علی سوم اخیه" او د راتیولو د شي طلب دي نه کوي چي بل ورور د هغه په سودا بخت وي یعني تر هغو چي هغه ورور یې پریږدي. نو وروسته تر هغه که طلب د راتیولو وکړي بیا ورته رواده الی اخیر الحدیث.

**یوه سه:** که مقصود په دې حدیث کي مبالغه ده په منع کي د حسد د چاسره.

**مسئله:** که مقصود د سړي حسد نه وي بلکې غرض یې حصول د نعمت وي په مثل د نعمت د بل چا. نو بعض علماء وايي چي دا روا ده لکن محققین علماء وايي چي داسي تمنی هم نه ده روا. ولي چي حصول د هغه نعمت د بل سړي چي دی تمنی کوي مفسد به وي دده په حق کي په دین کي او ضرر به وي دده په حق

کي په دنيا کي، نو له دې سببه محققين د علماء وايي چي داسي خواست دي سړی نه کوي چي خدايه ماته داسي سرای راکړې لکه د فلاني سړي او يا داسي ماينه راکړې لکه د فلاني سړي وامثال ذالک بل ينبغي ان يقول اللهم اعطني مايکون صلاحاً في ديني ودنياي ومعادي ومعاشي.

**درويش وايي:** چي که سړی ښه غور او فکر وکړي تر هغه دعاء چي خدای ﷻ په قرآن کريم و مسلمانانو ته ښوولې ده ښه دعاء او جامع او مختصره دعا به نه کي پيدا يعني ربنا آتنا في الدنيا حسنة وفي الآخرة حسنة وقنا عذاب النار، که څه هم ځينې علماء ترجمه د حسنةٌ په زوجه سره کړې دی لکن تقصير دی په عمومي دعاء کي فلا يسمع قول ذالک البعض. او له حسن بصري رحمه الله څخه روايت دی چي داسي خواست دې څوک نه کوي چي خدايه ماته ډېره دنيا راکړې فلعل هلاکه في ذالک المال الکثير کما في حق ثعلبه، وقصة مشهورة وفي الحديث والتفاسير مذکورة.

**وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ**

اى لکل ترکة الميت ومال، موږ ګرځولي دي وارثان چي متفاوت دي په درجه کي د ميراث او هر يو خپله حصه اخلي سره له تفاوته بحسب القرب الى الميت والبعد عنه کما بين في آية المواريث والاحاديث الصحيحة واجماعات الامة المرحومة.

**مِمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ**

له هغه مال څخه چي پرې ايښی وي يعنې وروسته مور او پلار او نورو قريبانو

**پوه سه:** مما" بيان دی د "کل مع الفصل بالعامل وهو جعلنا لان لکل مفعول ثاني دی د "جعلنا" قدم عليه لتاکيد الشمول ودفع توهم الجعل بالبعض دون البعض.

**درويش وايي:** چي دا تفسير مختاره د روح البيان دی، او قاضي پاني پتي يو ګډ وډ تفسير کړی دی چي ښېله تشويشه د ذهن د متعلم بله فائده نه لري.

ع..... وللناس فيما يعشقون مذاهب.

**وَالَّذِينَ عَقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ**

او هغه چي عقد ورسره کړی وي ستاسي رسته لاسو.

**پوه سه**: چي دا موصول مبتداء او متضمن معنی لره د شرط ده، نو ځکه يې په خبر کي فای جزائيه راوړه.

فَاٰتُوْهُمْ نَصِيْبَهُمْ

ورکوي ودوی ته خپله برخه له ميراث ځخه يعني السدس.

**فائده**: په ابتداء کي د اسلام چي دوو کسانو به عقد سره وکړی او دا به يې سره وويل چي هر يو چي په ما او تا کي مړ سي هغه ژوندی به يې شپږمه د مال ميراث وړي چي دې ته يې مولی موالات وايه او حليف يې هم بولي، نو سدس د مال د ميت وده ته ورکول کېدی، او دا مولی موالات تر ذوی الارحام مقدم و، وثم نسخ ذالک بقوله تعالی "واولو الارحام بعضهم اولی ببعض"

**مسئله**: د امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله مذهب دادی که د يو مسلمان پر لاس يو کافر مسلمان سو، او دا يې عقد سره وکړی چي نو مسلم ورته وويل که زه مړ سوم ميراث مي ستا دی او که زما ځخه قتل خطاء وسو ديت به ته ورکوې، امام اعظم رحمه الله وايي چي دا عقد صحيح دی وعليه عقله وله ارثه، لکن دا هلته چي دغه نومسلم هيڅ وارث نه لري، نو امام اعظم رحمه الله وايي چي دا ميراث تر ذوی الارحام وروسته دی.

**فائده**: اسناد د عقد يې و ايمانو ته وکړی که ځه هم عاقد خو سړی دی بناء دی پر عرف قديم د عربو، چي په وخت کي د ورته عقد به دوی رسته لاسونه سره ونيول، نو گويا عقد رسته لاسو کړی دی.

اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدًا ﴿۳۳﴾

په تحقيق خدای جل جلاله پر هر شي شاهد دی، ومنها ايتاء الميراث المذکور ومنعه، نو په دې آيت کي ترغيب دی په ورکړه کي د ميراث د مولی موالات او تهديد پر منع د ميراث ددوی.

**فائده**: بعض مفسرين وايي چي مراد د "الذين عقدت ايمانکم" ځخه حليفان دي چي په عربو کي به دا دستور هم و، او پر دې تقدير مراد له "آتوهم نصيبهم" ځخه کومک يو له بله سره او يو د بل خير خواهي ده او اخلاص دی يو له بل سره د ژوندانه په چارو کي.

**نصیحت عام**: پر هر مسلمان لازمه ده "ان ینصر اخاه المسلم ویخالطه علی وجه الخلوص النصیحة لاعلی وجه النفاق والعدواة. قال رسول الله ﷺ "مثل المؤمنین في توادهم وتراحمهم وتعاطفهم مثل الجسد الواحد اذا اشتکی عضو تداعی له سائر الجسد بالسهر والحمی" سعدي شیرازي رحمه الله چه خوش گفته

بنی آدم اعضای یکدیگرند — که در آفرینش زیک جوهرند
چو عضوی بدرد آورد روزگار — دیگر عضوها را نماند قرار
تو کزمحنت دیگران بیغمی — نشاید که نامت نهند آدمی

**فائده**: پر مسلمان دا واجبه ده چي د مسلمان ورور لپاره هغه خوښ ولري چي د ځان لپاره یې خوښ لري، په پښتو کي وایي "بنده راسه د خدای خپل سه" لکه پر ځان داسي پر بل سه" او مسلمان باید د بل مسلمان په حاجاتو کي مرسته او کومک ورسره وکړي. او په حدیث صحیح کي راغلي دي چي له اسبابو څخه د مغفرت د گناه ادخالک السرور علی قلب اخیک المسلم. داخلول دي د خوشحالی په زړه کي د مسلمان ورور، یعني مسلمان د مسلمان سره داسي خبره یا داسي عمل وکړي چي د هغه زړه په خوشحاله سي.

**درویش وایي**: چي داسي کړه وړه په اوسني زمانه کي لکه عنقا چي نوم یې سته مسمی یې نسته اللهم الافي بعض خواص المؤمنین والاولیاء الکاملین.

**یوه سه**: چي یوه ښځه مېړه په چپلاخه پر مخ وهلې وه، نو هغې ښځي و علیه الصلوة والسلام ته شکایت وکړی، نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل "القصاص" یعني ته یې هم په چپلاخه ووهه. فنزلت هذه الآیة.

## اَلرِّجَالُ قَوّٰمُوْنَ عَلَى النِّسَآءِ

نران یعني مرونه مقرر دي پر ماینو لکه ولات الامر پر رعیتو باندي، او خدای ﷻ مسلط کړي دي نران پر ښځو او ماینو باندي، نو خود به نر ماینه په چپلاخه د تادیب لپاره وهي، نو دآیت چي نازل سو علیه الصلوة والسلام اردنا امر آ رمورد خو اراده وه د یوه شي یعني قصاص او د خدای پاک د بل شي اراده وه یعني چي د تادیب د چپلاخي وهل د ماینې روا دي، او آنحضرت ﷺ زیاته کړه والذي اراد الله خیر، نو مېړه او ماینه یې رخصت کړه او د قصاص حکم نبي علیه السلام بېرته واخستی.

# بِمَا فَضَّلَ اللّٰهُ بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ

**پوه سه:** چي کلمه د "با" سببیه ده او کلمه د "ما" مصدریه ده. ای بسبب تفضیل خدای ﷻ بعض د انسانانو چي نران دي پر نورو بعضو چي ښځي دي لکه په اصل خلقت کي لکه آدم او حوا. او په کمال د عقل د نرو تر ښځو لانه قد ورد في الحديث الصحيح "هن ناقصات عقل ودين" او نر ښه تدبير د کور کولای سي تر ښځه او نر فراخي د علم لري او قوت د بدن لري تر ښځي، او اعمال شاقه کولای سي چي ښځه يې نسي کولای، نو هم دا سبب دی چي نبوت په نر پوري خاص دی او دغه رنګه امامت صغری وکبری د نرو خاصه ده او قضاهم په نرو پوري خاصه ده او شاهدي په حدود او قصاص کي په نرو پوري خاصه ده، او وجوب د جهاد في سبيل الله او وجوب د جمعې د لمانځه او د اخترو د لمانځه او آذان او خطبه او جماعت په نرو پوري خاص دی، او په ميراث کي د نر برخه د ښځي تر برخي ډېره ده، او مالکيت د نکاح او د طلاق د نرو خاصه ده او تعداد د زوجاتو ونرو ته روا دی دون النساء، او روژه د نرو پوره ده او د ښځو دا ګاهي په سبب د حيض او نفاس کمه سي، او داغه رنګه لمونځونه د نرو ډېر دي تر ښځو بسبب عوارض الحيض والنفاس، او داغه رنګه نر حج ته بېله ملګري تلای سي او ښځه بې محرمه حج ته نه سي تلای او يا به يې زوج ورسره ملګری وي. ولهذه الکمالات اللهية للرجال قال عليه الصلوة والسلام لو امرت احداً ان يسجد لاحد لامرت المرئة ان يسجد زوجها رواه احمد عن معاذ ﷺ.

# وَبِمَآ اَنْفَقُوْا مِنْ اَمْوَالِهِمْ

او بل له دې سببه چي نرانو ډېر مالونه صرف کړي دي، اول په ولور کي د ښځو او وروسته په نفقاتو کي د دوی تر توله ورځ، او په جامو کي د دوی که څه هم مړونه تو له ورځ مزدوري کوي خو ماينو ته نفقه برابروي وهذا امر کسبي.

**پوه سه:** وبما انفقوا آه" عطف دی پر بما فضل الله ﷻ عطف الامر الکسبي على الموهبي وقدم الموهبي لشرفته ولتقدمه طبعاً. اوس نو خدای ﷻ ښځي پر دوه قسمه وېشي او وايي.

## فَالصّٰلِحٰتُ قٰنِتٰتٌ حٰفِظٰتٌ

نو صالح ښځې فرمانبرداره د خدای ﷻ وي په امور شرعيه وو کې او بيا حقوق د ازواجو هم پر ځای کوي يعنې په کامله توگه سره، او ساتونکې وي د فرجو له اغيارو څخه وكذا من لمسهم وقبلتهم. او د غه رنگه اموال د مېړه ساتي او د غه رنگه ساتي پټ اسرار د مړو.

## لِّلْغَيْبِ

**بوه سه**: چې "لام" په معنی د "في" دی والمعنی في غيبة الازواج. او يا "لام" صله ده د "حفظت" لپاره والمعنی حافظات لماغاب عن الناس من اسرار الازواج واموالهم الخفية.

## بِمَا حَفِظَ اللّٰهُ

په سبب ددې چې خدای ﷻ دوی ساتلي دي.

**پوښتنه**: ددوی ښه خويونه خو خدای ﷻ بيان کړه لکن ددوی ثواب يې نه کړي بيان؟

**ځواب**: ددوی جزاء محذوفه ده چې عقل سليم دلالت پر کوي ای احسنوا ايها الازواج معهن ولاتؤذوهن.

**درويش وايي**: چې د ابن مسعود ؓ قرائت دلالت کوي پر ماقلنا بانلدي رواها طلحة بن مطرف حيث قر، ابن مسعود ؓ في اخير الآية فاصلحوا اليهن او په بل روايت کې فاحسنوا اليهن.

**درويش وايي**: چې په صحيح حديث کې راغلي دي چې عليه الصلوة والسلام وايي "خير النساء امرئة ان نظرت اليها سرتک" ښه د ښځو يعنې ماينو هغه ښځه ده چې که ته دې ته وگورې دا روښه يې تا خوشحاله کوي يعنې په ښه خندا او ورين تندي خبرې درسره کوي "وان امرتها اطاعتک" او که ته دا امر کړې په يو شي سره ستا اطاعت کوي يعنې په خوله دې کوي "واذا غبت عنها حفظتک في مالها ونفسها" او که ته غائب سې او له کوره ووځې او يا مسافر سې، دا ستا ساتنه کوي په مال کې ددې يعنې هغه ستا مال چې ددې په لاس کې دی. فالاضافة لادنی ملابسة او په خپل ځان کې يعنې د چا سره زنی وغيره نه کوي.

**بوه سه**: چې کلمه د "ما" يا مصدريه ده ای بحفظه تعالی اياهن ای بالامر

بحفظ الغیب، او دوی یې باعثه کړې دي پر حفظ الغیب بانديې په وعد او وعید سره او دوی ته یې توفیق د حفظ الغیب ورکړی دی. او یا کلمه د "ما" موصوله ده ای بالذي حفظ الله لهن علیهم من المهر والنفقة وحسن المعاشرة معهن الی غیر ذالک من حقوق الزوجیة.

له انس بن مالك رضي الله عنه څخه روایت دی چې علیه الصلوة والسلام وویل ښځه چې پنځه وخته لمونځ کوي او د میاشتې د روژې روژه نسي او فرج یې له زنې څخه ساتلی وي او فرمانبرداري د مېړه کوي "فلیدخل الجنة من ای ابواب الجنة شائت" رواه ابو نعیم في الحلیة. او له ام سلمة رضي الله عنها روایت دی چې مرفوع دی و علیه الصلوة والسلام ته دي وویل چې هره ښځه چې مړه سي او مېړه څُنې راضي وي دخلت الجنة رواه الترمذي.

## وَالّٰتِیْ تَخَافُوْنَ نُشُوْزَهُنَّ

**یوه سه**: چې خطاب د "تخافون" ومړو ته د ښځو دی، او له "التي" څخه مراد زوجات دي. او "التي" مبتدا، ده متضمن معنا لره د شرط او "فعظوهن" یې خبر دی یعني هغه ماینه چې تاسي ببرېږئ له عصیان او تکبر څخه ددې.

**یوه سه**: چې اصل معنا د نشوز ارتفاع ده. نو ځکه مکان مرتفع ته نشز وایي.

**یوه سه**: چې ځینې مفسران معنی د "تخافون" په تعلمون سره کوي. یعني چې ستاسي یقین سي پر نشوز د دوی استدلالاً بما في القاموس جعل من معاني الخوف العلم. او ځینې مفسرین "خوف" پر خپله معنا پرېږدي او عبارت په حذف سره د مضاف بولي یعني دوام نشوزهن واصرارهن علیه. یعني اصل نشوز او تکبر خو متیقن وي تاسي له دوام څخه ببرېږئ. لکن دې توجیه ته ضرورت نسته. ولې چې نفس خوف د نشوز کافي دی لپاره د وعظ. او علامه برسوي رحمه الله وایي الخوف حالة تحصل في القلب عند حدوث امر مکروه او عند الظن او العلم بحدوثه والانسب ان یفسر بالظن ای تظنون نشوزهن وتکبرهن وترفعهن علیکم بان ظهر بعض امارات النشوز علیهن بان یتکلمن مع الازواج بصوت عال والاباء عن المضاجعة في بعض الاوقات والعبوس (یعني تریو تندی) عند التکلم مع الازواج الی غیر ذالک من امارات النشوز.



Scanned by CamScanner

فَعِظُوهُنَّ

نو اول خو په قول لین نصیحت ورته وکړئ او له خدای ﷻ څخه د بېرې خبرې ورته وکړئ او د مېړه حقوق ورته بیان کړئ، او د جنت په ترغیب او له دوزخ څخه د ترهیب خبرې ورته وکړه، نو که وعظ فائده وکړه او ښځې له نشوز څخه توبه وکښل، نو خبره خلاص سول او که وعظ فائده ونه کړه.

وَاهْجُرُوهُنَّ فِي الْمَضَاجِعِ

بیا نو هجران څنډي وکړه په ځای کي د بیدېدو ځوک وایي که پخوا ته په یوه تلتک کي ورسره بیدېدلې اوس مه ورسره بیدېږه یعنې ځای ځیندي جلا کړه، او بعض مفسران وایي په یوه ځای کي لکه پخوا چي ورسره بیدېدلې اوس هم ورسره بیدېږه خو شا ورگرځوه، پاني پتي دا تفسیر مختار کړی دی په قرینه ددې چي في المضاجع عبارت په قرآن نو په ځای کي د بیدېدلو هجران کول دغه شا ورگرځول دي، ولي که مراد ځای بدلبدل وای، نو داسي عبارت مناسب و عن المضاجع، او بعض مفسرین وایي چي دا عبارت کنایه ده له عدم الجماع څخه یعنې عادي جماع مه ورسره کوه، او که دې هجران هم فائده ونه کړه بلکې ښځي ونشوز ته دوام ورکړی نو بیا.

وَاضْرِبُوهُنَّ

بیا یې ووهه، لکن اکثره مفسران پر دې رایه دي چي ضرب به مبرح یعنې سخت نه وي بلکې یو څو سپکي چپلاخې یې پر مخ ووهه، او یا یو څو سخت سوکان یې پر کوناټو ووهه. لکن په قرآن مجید کي لفظ د ضرب مطلق راغلی دی، نو باید سیاست د ضرب دې پر قدر او اندازه د ماینې د نشوز وي، نو که ښځي فاحشه وکړه او یا یې فرضي لمونځ نه کاوه، او یا یې فرضي روژې نه نیولې او یا یې غسل د جنابت نه کاوه، نو مېړه دې کلکه وهي او په خونه کي دې بندي کړي دونده قدر چي د مېړه دا خیال سي چي اوس به نو دا دغه اعمال سیئه پرېږدي او توبه به هم وکاږي.

**درویش وایي:** چي دا وروسته څو کارونه یعني د فاحشي را شروع کارونه که څه هم د نشوز د ښځي له مېړه څخه نه دي بلکي د ښځي شخصي گنهونه دي. لکن په مقتضی د الرجال قوامون علی النساء. درویش دلته ذکر کړه چي مېړه باید په هره توگه چي ماینه یې له شخصي گنهو څخه راگرځي پر ده لازمه ده چي را وه یې گرځوي.

فَإِنْ أَطَعْنَكُمْ فَلَا تَبْغُوا عَلَيْهِنَّ سَبِيلًا

که ماینو ستاسي اطاعت شروع کړی او له نشوز او تکبر څخه یې توبه وکښل، نو بیا مه طلبوئ تاسي پر دوی باندي لار د ایذاء او پیغور په خوله بلکي نشوز ددې داسي گرځوي کأن لم یکن منهن شیئاً لأن التائب من الذنب کمن لا ذنب له.

إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلِيًّا كَبِيرًا

په تحقیق سره خدای ﷻ عالي په قدرت سره پر ټوله مخلوق او لوړ دی په عظمت سره تر ټوله مخلوق.

**یوه سه:** مقصود له دې آیت څخه دادی چي تاسي پر "من تحت ایدیکم" باندي ظلم مه کوئ او له "علی کل شئ قدیر" خدای ﷻ څخه وېرېږئ. ولي چي خدای ﷻ پر تاسي ډېر قدرت لري تر تاسي پر "من تحت ایدیکم" باندي. او خدای پاک سره علو شان دده په توبه سره ستاسي تر گنهو در تېرېږي. نو تاسي په طریق اولی سره باید له گنهو څخه د "من تحت ایدیکم" په توبه سره ور تېر سئ لکه په "مانحن فیه" کي د نشوز گناه.

**درویش وایي:** چي په فتوی شرعه او په شرح کي د هغه وایي که د سړي علم پر خپل ماینه وپر فجور یعني فسق او یا درواغ او یا میل و باطل کار ته مثل الزنی. نو دي طلاقه کړي الا ان لا یصبر عنها. مگر نه که یې صبر نه کېندي درلودی یعني ډېره پر گرانه وه فیتمسکها. نو بیا دې خوندي کړي.

**درویش وایي:** چي ددې خبري تاکید هغه حدیث کوي چي یو سړی د علیه الصلوة والسلام ته راغلی او وه یې ویل چي زما ماینه رد د لاس د لامس نه کوي یعني که څوک مچه کېندي واخلي یا یې پر مخ یا پر بل ځای لاس ور تېروي، نو

علیه الصلوة والسلام ورته وویل چي داسي ده نو یې طلاقه کړه، هغه ورته وویل چي پر ما ډېره ګرانه ده صبر نه سم ځینډي کولای، نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل نو خوندي یې کړه یعنې درته ناسته دي وي، دا اجازه چي علیه الصلوة والسلام ورکړه ددې خوف له سببه چي که یې دی طلاقه هم کړي بیرته به دی په سبب د غایة محبت د زنی له لاري ورسره مبتلا سي، نو علیه الصلوة والسلام یې بقاء د نکاح خیر وبلل تر طلاق او بیرته بیا زنی.

**فائده**: ددې حدیث معنا دا نه ده چي سړی دي له ځانه دوث جوړ کړي یعنې پر ماینه خلګ وینې چي زنی ورسره کوي دی دې نه طلاقوي په دې عذر چي پر ما ګرانه ده. په حدیث متفق علیه کي راغلي دي "لايجلد احدكم امرئته جلد العبد ثم يجامعها في اخير اليوم" ددې مطلب دادی چي ښځه چونکه ضعیف البنیة ده او په وخت کي د وهلو عاجزه درته ناسته وي او ځغاستی نه سي، نو داسي سخته یې مه وهه لکه مریی چي وهې، ولي چي د مریي بدن قوي دی او که ډېر په عذاب سي ځغاستی هم سي او په حملو هم ځان خلاصولای سي، او حکیم بن معاویه له خپل پلار څخه داسي روایت کړی دی چي احمد، ابو داؤد او ابن ماجه دا حدیث نقل کړی دی قال قلت یا رسول الله ماحق زوجة احدنا علیه ، قال ان یطعمها اذا طعمت" چي ډوډی به ورکوې که دې ډوډی غوښتل "ویکسوها اذا کسیت" او کالي به ورکوې که دې کالي غوښتل "ولا یضرب الوجه" او پر مخ به یې نه وهې، ولي چي مخ معدن د قوی لطیفه وو شریفه وو دی "ولا یقبح" او په بدو سترګو به نه ورته ګورې "ولا یهجرها الا في البیت" او هجرت یعنې ګوښه پرېوتل دي ځینډي کوي مګر په خونه کي، یعنې خوا ځینډي بدوه په سبب د نشوز، نو د خوني دي نه ځینډي وځي بلکې په خونه کي دي ځان ته جلا ځای هوار کړي، حاصل د کلام دادی چي د ماینې بعض بد اخلاق باید صبره ورته معافوي، ولي چي ماینه عاجزه ده او په مثال د مینځي ستا د کور او اولادو خادمه ده او له خپلو اقرباؤ څخه په میاشتو بلکې په کلو دور افتاده ده.

**درویش وایي**: چي د کلمات جامعه وو ښائسته وو د خیر البشر ﷺ دا حدیث

مبارک دی چې ټولو امامانو د حديثو يې روايت کړی دی "کلکم راع وکلکم مسؤل عن رعيته الى اخير الحديث" ولې دا حديث که څه هم په ضمير د مذکر راغلی دی لکن نر او ښځې، شاه وګدا ته. رئيس ته د محلې، رئيس ته د يو قوم، د کور مشر ته. د کور ښځې ته، بادار او مربي ته دې ټولو ته شامل دی لکه څرنګه چې په هم دغه حديث بطوله کې په تفصيل ذکر سوي دي، نو ددې حديث په رڼا حال د ناشزه مابينې من الوعظ والهجران او وروسته تر توبې ددې چې سړی غور وکړي مفصل معلومېږي ومن الله التوفيق.

## وَإِنْ خِفْتُمْ

**پوه سه**: چې مخاطب په ضمير د مخاطب حکام او قضات دي.

## شِقَاقَ بَيْنِهِمَا

پر عداوت د مېړه او ماينې. يعنې په وعظ او هجران او ضرب سره عداوت ددوی نسو قطعه.

**فائده**: عداوت شقاق ددې سببه وايې چې هر يو له خصمينو څخه هغه کار کوي چې پر هغه بل باندې شاق او سخت پرېوځي. او يا له دې سببه چې هر يو د مخاصمينو علحده عليحده لار مختار کوي.

**فائده**: اضافت د شقاق يې وظرف ته يعنې بينهما مجازاً کما في قوله مکر الليل والنهار.

**پوښتنه**: مېړه او ماينه خو دمخه نه دی ذکر سوی، نو اضمار قبل ذکر المرجع به نه وي؟

**ځواب**: يا ولې مېړه او ماينه له نشوز څخه فهمېږي، ولې چې نشوز عصيان د ماينې له امر څخه د زوج، او بل دا چې ذکر د ماينې او ضمير د زوج له هغه آيت څخه ښکارېږي واللتي تخافون نشوزهن.

## فَابْعَثُوا حَكَمًا مِّنْ أَهْلِهِ

ايها الحکام ومېړه ته، ای رجلاً عاقلاً عادلاً له قريبانو څخه د مېړه.

وَحَكَمًا مِّنْ اَهْلِهَا

او ور واستوئ ومابنیې ته یو حکماً د قریبانو ددې. یعنې ددې غرض لپاره چې حق او باطل په خصومت کې د مېړه او ماینې معلوم کړي او پر هغه غور وکړي.

**فائده**: حاکمان یې مقید کړه چې له اقرباوو څخه د مېړه او ماینې وي له دې سببه چې اقارب په پټو احوالو د نر او ښځې ښه خبر دي تر اجانبو او اقرباو د نر او ښځې ډېر کوشش په اصلاح کې د ذات البین د مېړه او ماینې، او داغه رنګه ښځه خپل د اقرباوو سره په دلاورې خبرې کولای سي تر بېګانه وو. نو قید د اقاربو استحبابي دی، نو که حکام بېګانه خلګ لپاره د معلومولو د ظالم او مظلوم ور واستوي هم روا ده. نو دا حکام هر څوک چې وي وروسته تر غور یې مېړه ظالم په خیال ورغلی. نو هغه دي امر کړي چې یا به د ماینې امساک بالمعروف في الشرع کوي، او یا به یې طلاقوي چې په عربي تسریح بالاحسان ورته وایي، او که ظلم په ښځه کې و حاکمان دې اول ښځه امر کړي په اطاعت د مېړه. او که ماینې دا نه قبلول بیا دې امر کړي چې فدیه ورکړه یعنې خلع بالمال وسره وکړه.

اِنْ يُّرِيْدَآ اِصْلَاحًا يُّوَفِّقِ اللّٰهُ بَيْنَهُمَا

که اراده درلوده دا دوو حکمینو اصلاحاً د اختلاف د مابین الزوجین او نیت ددوی صحیح و، او د یو جانب مراعات یې نه کاوه. نو خدای ﷻ به په سبب د حسن نیت د دوی یعنې مېړه او ماینې اتفاق او الفت پیدا کړي. نو ضمیر اول راجع و حکمینو ته دی او ضمیر ثاني وزوجینو ته دی. او داسې احتمال هم سته چې مراد له اصلاح څخه دي عام تر وفاق او تر فراق یعنې که د حکمینو مراد ماهو الاصلح و من بقاء النکاح او ایقاع الطلاق یوفق الله ذالک الاصلح بینهما.

اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيْمًا خَبِيْرًا ﴿۳۵﴾

په تحقیق خدای ﷻ علم لري ددوی پر نیتو او خبر دی په ظالم او مظلوم د مېړه او ماینې. نو به ظالم ته جزاء ورکړي په دنیا او اخرت کې.

**پوهه**: چې په دې آیت کې باعثه کول دي د مسلمانانو پر اصلاح د ذات البین

يعني اختلاف په منځ کې د دوو کسانو اعم من الزوجين وغيرهما، په صحيح حديث کې راغلي دي چې عليه الصلوة والسلام وويل چې زه تاسي ته خبر درنه کړم په هغه عمل چې افضل دي تر لمانځه او روژې او صدقې. والمراد النفلي منها قالوا بلى صحابه وو ﷺ وويل چې هو خبرو مو کړه، نو عليه الصلوة والسلام ورته وويل "اصلاح ذات البين"

**يوه سه:** چې مصلحين خيار خلق الله والمفسدين شرارهم، ولې چې مفسدين کوشش کوي چې تر منځ د مسلمانانو تفريق او تباغض پيدا کړي، او په منځ کې د مسلمانانو فتنه راژوندۍ کړي، وفي الحديث الصحيح الفتنة نائمة لعن الله من ايقضها.

**يوه سه:** چې له مفسدينو څخه هغه کسان هم مراد دي چې د دوو کسو تر منځ شيطانت کوي، او د يوه مسلمان خبره وبل مسلمان ته رسوي په نيت د ايقاع الشقاق بينهما.

**درويش وايي:** چې په صحيح حديث کې راغلي دي "الدين النصيحة" ثلاث مرات "قالوا لمن يارسول الله قال لله ولرسوله ولکتابه ولائمة المؤمنين ولعامتهم انتهى"

**درويش وايي:** چې محدثينو او مفسرينو رحمهم الله په شرح او بيان کې ددې حديث مبارک داسي فرمايلي دي چې مراد له نصيحت څخه د خدای ﷻ دادی چې ايمان به پر خدای ﷻ لري او شريک به نه ورته وايي، او عمل به کوي په هغو چې خدای ﷻ ته يې امر کړی يې او پرهيز به کوي له هغو عملو څخه چې خدای ﷻ ته ځيندي نهي کړی يې او خلګو ته به هم بلنه ورکوي ددغې لارې. او دوی ته به دغه لار ورزده کوي هم، واما النصيحة لکتابه ای القرآن العزيز ان تؤمن به" چې پر قرآن به له اوله څخه تر اخيره پوري ايمان لرې، او تلاوت به يې کوې او عمل به په کوې بما فيه، او خلګ به هم رابولې ودغه ته.

واما النصيحة لرسوله: هغه دادی چې عمل به کوي بما امر به سره او خلګ به هم رابولي ودغه ته.

**واما النصيحة للائمة:** يعني بادشاهانو او رئيس جمهورانو ته د مسلمانانو، هغه دادی چې چې بغاوت به پر دوی نه کوي او دوی ته به د عدل او انصاف دعا.

کوي، او نور خلگ به هم دغې لارې ته رابولي.

**يو ه سه**: چي مراد له ائمة المسلمين څخه هغه کسان دي چي دوی رعيت په ضلال او گمراهي سره نه امر کوي. او په اطاعت د کافرانو يې هم نه امر کوي. والا فلاطاعة للمخلوق في معصية الخالق.

**واما النصيحة للعامة**: يعني عامو مسلمانانو ته هغه دادی چي پر بل مسلمان هغه شی پېرزو کوي چي ستا پر خپل ځان پېرزو کوي کما ورد في الحديث النبوي ﷺ ايضاً. او په اصلاح د دوو مسلمانانو به سعي او کوشش کوي. او دعاء د صلاح به ومسلمانانو ته کوي.

**درويش وايي**: چي په دغه يوه حديث چي څوک عمل وکړي د دينا او اخرت خيرات پکښې نغښتي دي، لکن هيهات العمل في الزمان الحاضر زمان الفتن والسرور والفساد الا من شاء الله من خواص المؤمنين اللهم صبراً ونصراً وتوفيقاً وهدايةً وعلماً نافعاً.

## وَاعْبُدُوا اللَّهَ وَلَا تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا

او تاسي عبادت کوئ د خدای ﷻ او شريک مه نيسئ دده سره هيڅ شی.

**يو ه سه**: چي په صحاح کي وايي چي عبوديت اظهار د تذلل او عجز دی. او عبادت ابلغ دی تر عبوديت، ولې چي عبادت اظهار د نهايت تذلل دی او مستحق د عبادت نه دی مگر هغه ذات چي نهايت عظمت لري او افضال وهو ليس الا ذات الباري عزوجل. ونهاية التذلل من العبد ايښول دي د اشرف اعضاء خپل چي مخ دی پر اخس ځای چي مځکه ده په سجده کي، نو سجده کول وغيرته د خدای ﷻ شرک دی لا مطلق الانحناء وتقبيل اليد للاساتذة والمشائخ. نو هغه معلوم الحال خلگ چي وايي چي تقبيل د لاس د استاذ وغيره څو تعظيم دی د هغه او تعظيم د غيرالله شرک دی. ډېر د لويه دلاوري کوي په دعوه کي د شرک پر مسلمانانو کيف؟! وقد صح ان الامام مسلم رحمه الله صاحب الصحيح جاء الى الامام البخاري رحمه الله فقبل يديه وقال دعني اقبل رجليک يا سيد المحدثين وما طبيب الحديث في علله وهل هذا الا تعظيم الامام مسلم للامام البخاري. واما مجرد الانحناء بغير سلام وتقبيل اليد فلما كان في الملل السابقة فهو منسوخ في

الشریعة المطهرة کما قالوا في سجدة أخوة یوسف علیه السلام له. او دوی نه پوهیږي چې تعظیم د صحابه کرامو ﷺ د رسول کریم ﷺ په اندازه کې وچې دوی وایې چې مونږ به په مجلس کې د رسول کریم ﷺ ناست وو داسې به وو کانما علی رؤسنا الطیر.

**درویش وایي**: چې هم دا سبب دی چې عبادت کول خاص په خدای ﷻ پورې دی. وروسته خدای پاک داسې وویل چې "ولاتشرکوا به شیئا" پر دې چې شرک او عبادت خاصه د خدای ﷻ ده نه سره یو ځای کېږي.

**پوښتنه**: مشرکینو د مکې خو تعظیم د بتانو کاوه. نو دوی ولې مشرکان وګڼل سوله؟

**ځواب**: مشرکانو د مکې خو بتانو ته سجدې متعارفي کولې او له جماداتو ځخه یې قضاء حاجات غوښتل مع انها لاتضر ولاتنفع بشئ.

**پوښتنه**: بعض مریدان له مشائخو ځخه هم قضاء حاجات غواړي؟

**ځواب**: مریدان خو شیخ ته وایي چې خواست وکړه خدای ﷻ ته چې زما دا فلانی امر وکړي داسې نه ورته وایي چې ته قاضي الحاجات یې زما دا فلانی کار را وکړه. والفرق بین. او په یو د روایت کې راغلي دي چې حلیمه سعدیه چې د علیه الصلوٰة والسلام مرضعه وه یو وخت یې په حال کې د رضاع آنحضرت ﷺ لپاره د ملاقات د نیکه عبدالمطلب مکې ته راوستلی و او په حطیم شریف کې یې کښېنولی و، او دې طواف کاوه یو دوه درې واره چې یې طواف وکړی په حطیم شریف کې یې علیه الصلوٰة والسلام نه ولیدی. نو یې بغارې کړې دباندې تر حرم ووتل او هورې خلګ ناست وه، چې په هغو کې عبدالعزی نامې یو سړی هم و هغه ورته وویل چې علیمه سعدیه یې؟ ولې ژاړې هغې قصه ورته وکړه، عبدالعزی ورته وویل چې مه ژاړه اوس یې دستې در پیدا کړم.

مولانا روم په مثنوي کې وایي.

| | |
|---|---|
| برد اورا پیش عزی که این صنم | هست در اخبار غیبی مغتنم |
| پیر کرد اورا سجود وگفت زود | ای خداوند عرب وی بحر جود |

الی اخیر الابیات مطلب د درویش دادی چې عربو مشرکانو به خپل بتان قاضي الحاجات ګڼله او سره ددې چې قضاء الحاجات خاصه بلاشریکه د

خدای ﷻ ده او مسلمانان خو دا عقیده نه لري.

**پوه سه:** چي تنوین د "شیئاً" لپاره د تحقیر دی ای شیئا حقیراً وهو الصنم وای شیئ کان لان ماسوی الله بالنسبة الی جلال ذاته تعالی حقیر جداً وان کان جلیلاً في نفسه لکه چي بعض مشرکان وایي چي ملکې د خدای ﷻ لوڼې دي. نو ځکه یې مورږ عبادت کوو او یهودان وایي چي عزیر ابن الله دی یا نصاری وایي چي عیسی ابن الله دی. نو پر دې تقدیر "شیئاً" منصوب دی مفعول به د لاتشرکوا دی، او دا احتمال هم سته چي "شیئاً" دي منصوب وي مفعول مطلق د لاتشرکوا دي وي ای شیئاً من الاشراک که شرک جلي وي لکه د عبدة الاصنام شرک یاشرک خفي وي لکه د ریاء کارانو شرک.

**پوه سه:** چي عبادت د خدای ﷻ دوه قسمه دی یو اضطراري یعنې پر بنده بې اختیاري دده راځي لکه مرض. مرگ فقر او غنی وغیرها. او بل عبادت اختیاري دی وهو المراد آه، وهو بامتثال او امره تعالی والاجتناب عن المعاصي.

## وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا

**پوه سه:** چي حرف جر یعنې "باء" متعلق په محذوف پوري ده او "احساناً" د هغه مفعول مطلق دی ای احسنوا بالدین احساناً. او دا فعل محذوف یعنې "واحسنوا" عطف دی پر "وعبدالله" عطف الانشاء الامري علی الانشاء الامري او یا عطف دی پر "لاتشرکوا" من قبیل عطف الانشاء علی الانشاء وان کانا مختلفین.

**فائده:** خدای پاک چي مربي اعظم د بندگانو دی کما ورد "الحمد لله رب العالمین" بندگان یې امر کړه په خپل عبادت سره او نهي یې کړه له اشتراک څخه به تعالی، وروسته یې امر په احسان سره د مربي اصغر وکړی چي مور او پلار دي یعنې في الظاهر او احسان د مور او پلار یې تر راتلونکو احسانو دمخه کړی لان احسان الوالدین اعظم الحقوق البشریة.

**پوه سه:** چي احسان د مور او پلار د دوی خدمت دی، او اولاد به نه پورته کوي آواز پر مور او پلار الا لعذر الصمم بهما. او په خبرو کي به خیر والی و دوی ته نه کوي او انفاق به کوي پر دوی بقدر القدرة او که مور او پلار اولاد امر کړی په یو

مطلب سره د تحصيل ولد به كوشش كوي ولو كانا كافرين.

**مسئله**: كه د يو مسلمان پلار مشرک و او زوی ته یې وویل چې ما په شا كړه تر بت خانې پورې چې زه بتانو ته عبادت كوم، نه دې په شا كوي ولې چې دا كومک دی پر شرک باندې. او كه يې پلار بت خانې ته پخپله تللی و او بیا یې زوی ته ووېل چې ما په شا كړه تر كوره پورې، نو پر زوی یې واجبه ده چې په شا كوي به يې.

**پوښتنه**: خدای ﷻ د خپل عبادت سره نهې له اشتراک څخه وكړې او د مور او پلار په احسان كې يې نهې له شي څخه ونه كړې؟

**ځواب**: نهي دلته هم تقديراً سته يعنې "ولاتؤزوهما" يعنې تاسې مور او پلار ته ازار مه رسوئ.

**پوښتنه**: تولنه پښتانه په دعاء كې د مور او پلار، مور د مخه ذكر كوي كما يقولون خدايه ما وبخښې زما مور او پلار وبخښې دديې سِر څه دی؟

**ځواب**: مور په وخت كې د حمل او په وخت كې د ولادت او وروسته تر ولادت په حال كې د رضاع او بعد الرضاع ډېر كړاوونه د عيال وړي دي بخلاف الاب كما هو ظاهر له دې سببه په حديث صحيح نبوي ﷺ كې راغلي دي چې يو سړی راغلی و نبي كريم ﷺ ته يې ووېل "من ابر" زه د چا سره احسان وكړم؟ عليه الصلوة والسلام ورته ووېل "امک" د مور سره احسان وكړه هغه سړي ورته ووېل بيا د چا سره احسان وكړم عليه الصلوة والسلام ورته ووېل "امک" بيا هغه سړي ورته ووېل "ثم من" عليه الصلوة والسلام ورته ووېل "امک" بيا هغه سړي ورته ووېل "ثم من" عليه الصلوة والسلام ورته ووېل "ثم اباک" بيا د پلار سره احسان كوه ثم الاقرب فالاقرب.

## وَبِذِى الْقُرْبٰى

او احسان كوئ د درلودونكو څخه د قرابت ستاسې.

**پوښتنه**: چې "قربیٰ" مصدر دی په معنا د قرابت دی. او د "القربیٰ" لفظ عام دی كه له ذوی الفروض څخه وي او كه عصبات وي او كه ذوی الارحام وي.

**فائده**: كه د چا د ټولو ذوی القربیٰ سره احسان له وسه نه وپوره، نو بيا به د كومو ذوی القربیٰ سره احسان كوي؟ ځینې علماء وايي الاقرب فالاقرب سره دي

احسان کوي لکن صحیح داده الاجوح فالاجوح سره دي احسان کوي، د سلمان بن عامر په حدیث کي راغلي دي چي رسول الله ﷺ وفرمایله "الصدقة على المسكين صدقة اى المسكين الاجنبي وهي على ذى الرحم صدقة وصلة رواه احمد والنسائي وغيرهما.

**مسئله**: له دي آیت څخه دا معلومه سوه چي نفقه د مور او پلار او د نورو قریبانو نفقه پر سړي واجبه ده لکن بشرط کونه غنیاً بدلیل قوله تعالی "ويسئلونك ماذا ينفقون قل العفو" يعني هغه څه دي نفقه کوي چي زائد وي تر حاجت د سړي وفي الحديث قال رسول الله ﷺ "خير الصدقة ماكان عن ظهر غني" رواه البخاري عن ابي هريرة ﷺ يعني ښه صدقه هغه صدقه ده چي وروسته تر غنٰی د سړي وي.

**مسئله**: د مور او پلار نفقه چي محتاجه وي پر عیال فرض ده که والدین قادر پر کسب وي او که نه وي. او د نورو اقاربو د نفقې د وجوب په باره کي دا شرط دی چي دوی به قادر پر کسب او مزدوری نه وي، یعني یا صغیر قابل کسب نه وي او یا شل او یا ګوډ وي یا ښځه وي او یا ضعیف البنیة ناجوړی وي او یا ډېر سین ډېری سال خورده وي او غیر ذالک.

## وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنِ

او د یتیمانو سره دي احسان کوي، او د مسکینانو سره دي احسان کوي.

**فائده**: یتیم په انسانانو کي هغه دی چي پلار نه لري او په حیواناتو کي هغه دی چي مور نه لري او په جماداتو کي هغه دی چي مثل نه لري کما يقال درة يتيمة يعني لا مثل لها.

**مسئله**: يو احسان د یتیمانو او د مسکینانو سره واجب دی چي زکوة د خپلو مالو به دوی ته ورکوي، او يو مستحب دی چي زائد تر زکوة په هم احسان ور سره کوي. بخاري د سهل بن سعد ﷺ څخه روایت کړی دی چي علیه الصلوة والسلام وويل "انا وكافل اليتيم في الجنة كهاتين واشار بالسبابة والوسطى وفرج بينهما شيئاً" زه او متولي د یتیم یعني چي انفاق پر کوي په جنت کي لکه

دغه دوې ګوتې چې سبابه او د منځ ګوته ده او لږ فصل يې ورکړي، او د ابي امامه ﷺ په روايت کې چې روايت يې بغوي کړی دی چې عليه الصلوة والسلام وويل که څوک لاس تېر کړي پر سر د يتيم او دا لاس تېرېدل صرف لپاره د خدای ﷻ وه، نو دغه سړي ته به په مقابل کې د هر وېښته چې ده لاس پر تېر سي لس نېکۍ نوشته کېږي (الحديث)

## وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبَىٰ

او احسان کوئ د هغه همسايه سره چې صاحب د قرابت ديني او يا نسبي وي د سړي سره؛ او ځينې علماء وايي چې په جوار کې در نژدې وي.

## وَالْجَارِ الْجُنُبِ

او د هغه همسايه سره احسان کوئ چې يا په جوار کې لېرې وي او يا په قرابت کې لېرې وي او يا په قرابت ديني کې يعنې کافر وي.

**بوه سه**: چې له جابر بن عبدالله ﷺ څخه روايت دی چې عليه الصلوة والسلام وويل چې بعض همسايه ګان درې حقه لري يو حق د قرابت نسبي. او بل حق د شراکت في الدين، او بل د قرب جوار، او بعض همسايه ګان دوه حقه لري. يو قرابت د نسب، او بل قرابت د دين، يعنې کور يې لېرې وي، او بعض همسايه ګان يو حق لري يعنې د جوار چې کور يې هم در څخه لېرې وي او په اسلام کې هم در شريک نه وي، لکه مشرک يا اهل کتاب همسايه رواه الحسن بن سفيان وبزار. په حديث مبارک کې راغلي دي "والذي نفسي بيده" چې حق د همسايه نه پر ځای کوي مګر هغه څوک چې خدای ﷻ پر ده رحم کړی وي او داسي کسان لږ دي، عليه الصلوة والسلام زياته کړه چې تاسي پوهېږئ چې حق د همسايه څه دی، که دی مسکين و ته به يې غني کوې يعنې احسان به ورسره کوې. او که يې قرض در څخه طلب کړی قرض به ورکوې، او که يو خير وده ته ورسېدی لکه مثلاً زوی يې پيدا سو او يا له حجه راغلی او يا يې سرای جوړ کړی الی غير ذالک من وجوه الخيرات ته به مبارکي ورکوې، او که يو شر ور ورسېدی مثلاً

زوی یا لور یا ماینه الی غیر ذالک یې مړ سو ته به فاتحې ته ورځې او د زړه داډ به ورکوې. او که ناجوړی سو ته به پوښتنې ته ورځې. او که مړ سو تـه بـه جنازې ته ورځې انتهی الحدیث.

**درویش وایي:** چي په ننني زمانه کي همسایه د سړي دښمن وي. او هر نوع ازار چي یې په وسه پوره وي همسایه ته یې رسوي حتی د تېرېدلو په وخت کي سلام هم نه ادا. کوي. درویش ته دا پخپل محل کي په تجربه ثابته ده. تر ټولو عجبه او د حیرانتیا وړ خبره خو دا ده چي زما په محل کي یو ملا چي زما شاګرد هم دی ورته کارونه کوي ...... ع چو کفر از کعبه بر خیزد کجا ماند مسلمانی.

او هم دغه ملا چي خان مدرس عالم هم بولي پر منبر د وعظ حقوق د همسایه بیانوي.......... بیت

واعظان کین جلوه در محراب ومنبر میکنند
چون بخلوت میروند آن کاری دیګران میکنند

ع.......... توبه فرمایان چرا خود توبه کمتر میکنند

بخاري له ابن عمر ﷺ څخه روایت کړی دی چي علیه الصلوة والسلام وویل "مازال جبرئیل یوصیني بالجار حتی ظننت انه سیورثه.

## وَالصَّاحِبِ بِالْجَنْبِ

او احسان کوه د هغه چاسره چي ملګری دي وي پر بغل.

**پوه سه:** چي ابن عباس. قتاده. مجاهد او عکرمه ﷺ وایي چي مراد له صاحب بالجنب څخه ملګری د سفر دی. او ابن جریج او ابـن زیـد وایـي چي صاحب بالجنب چي ستا سره په صحبت کي وي پـه امیـد او طمع د فائدې فیشمل التلمیذ ایضاً. او بعض تابعین وایي چي مراد څیندي ماینه ده.

## وَابْنِ السَّبِيلِ

او احسان کوه د لارې د زوی سره. څینې علماء وایي چي مراد له "ابن السبیل" څخه مسافر دی او اکثره علماء وایي چي مراد څیندي مطلق میلمه دی.

**پوه سه:** چي كه مراد مطلق مپلمه سي چي د سري كور ته راسي، نو درې ورځي خو بې د مېلمستيا حق دی او تر درې ورځي بالا صدقه ده او مېلمه ته نه ده په كار چي كور والا تنگ كړي، يعنې ورته ناست وي پښتې بې غځولي وي، په صحيح حديث كي راغلي دي چي روايت بې بغوي رحمه الله كړی دی چي عليه الصلوة والسلام ووېل "من كان يؤمن بالله واليوم الآخر فليحسن الى جاره ومن كان يؤمن بالله واليوم الاخير فليكرم ضيفه ومن كان يؤمن بالله واليوم الاخير فليقل خيراً او ليصمت" يعنې يا دي د خير خبري كوي او يا دي پټه خوله كېنېني يعنې عبث خبري دي نه كوي.

**پوه سه:** چي عبث خبرې هغه دي چي نه د دنيا فائده پكښې وي لكه بيع او شراء وغيرهما او نه د آخرت فائده پكښې وي لكه وعظ، تبليغ، تعليم وغيرها، بخاري او مسلم د ابي شريح الكعبي رضي الله عنه څخه روايت كړی دی چي رسول الله ﷺ ووېل "من كان يؤمن بالله واليوم الآخير فليكرم ضيفه جائزة يوم وليلة والضيافة ثلاثة ايام فما بعده صدقه الى اخير الحديث"

**پوه سه:** چي ددې حديثو مباركه وو څخه دي څوک دا نه فهموي كه چا داسي ونه كړه لكه په حديث شريف كي چي راغلي دي، نو هغه كافر دی، بلكې د حديث مبارک معنی داده چي مؤمن كامل بايد دغه كارونه وكړي، ولاشک ان من لم يعمل بمقتضى الحديث المذكور فهو ليس بمؤمن كامل.

**فائده:** كمال د ايمان مقول بالتشكيک دی، لامنتهى له في عالم الانس حتى ينتهي الى ساحة النبوة.

وَمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ

او د هغه چا سره احسان كوه چي ستا په ملک كي وي يعنې مريان او مينځياني، بلكې هغه حيواناتو ته همل شامل دی چي سړی بې مالک وي لكه اوښ، خوبي، خر وغيره.

**پوه سه:** چي په اوسني زمانه كي خو مينځياني او مريان د عالم اسلام په لاس كي نسته ولعل الله يحدث بعد ذالک امراً، يعنې چي په عالم اسلام كي دي بيا مريان او مينځياني پيدا سي.

**بوه سه**: چې په يو حديث صحيح کې راغلي دي چې عليه الصلوة والسلام پر يوه کلي ورغلی او په هغه کلي کې يو دنګره اوښه ولاړه وه، او هغې اوښې د عليه الصلوة والسلام په پښو کې خپل غاړه کښېښول او د اوښانو ښاري او بغاري يې ورته وکړې. عليه الصلوة والسلام د کلي خلګو ته وويل چې دا اوښه د چا ده، يو سړي ورته وويل زما ده، عليه الصلوة والسلام ورته وويل چې دې اوښې ماته شکايت وکړی چې زما مالک پر ما درانه بارونه وړي او علف يعنې وابښه وغيره ماته مناسب الحال يعني زما د مرتيا په اندازه نه راکوي، نو د اوښې مالک ته يې وويل چې سپک بارونه پر وړه او کافي علف ورکوه، وعلی هذا فقس الحمار والبقر والبقرة وغيرها.

**درويش وايي**: چې امام پاني پتي رحمه الله په باب کې د مريانو او مېنځيانو ډېر احاديث صحيحه رانقل کړي دي من شاء فليطالع ثمة اعرضنا عنها لحال الاختصار في تفسيري هذا.

**إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ مَن كَانَ مُخْتَالًا فَخُورًا ۝**

په تحقيق خدای جل جلاله نه خوښوي چې فخر کوي پر نورو خلګو په سبب د دنيا او يا د جاه وجلال.

**بوه سه**: چې عدم الحب کنايه ده له بغض څخه د هغه چا چې خيالور وي يعنې متکبر وي. همسايه ګانو او قريبانو ته له کبره التفات نه کوي.

**بوه سه**: چې انسان چې انسان وي، عاقل وي بايد خپل سر او پای وسنجوي چې د فخر او کبر ځای پکښې سته او که نه. مثلاً دی دې فکر ووهي چې زه د دوو خايو څخه د بولو پيدا سوی يم او په اخير کې د خاورو کور ته ځم، او د قيامت په ورځ به خدای جل جلاله د ذرې ذرې سوال راسره کوي، نو فخر او ناز او خيال او کبر ته کوم ځای پاتېږي، او تاريخ اسلامي دې په غور سره مطالعه کړي ودې ګوري چې متکبران د دنيا لکه فرعون، نمرود، شداد، ابو جهل او قارونان د دنيا څه سوه او چېرې دي؟ قال بعض العارفين رحمهم الله تعالی.

نقد هستی محو کن در لا اله — تا به بيني دار ملک پادشاه

غیر حق هر زره که مقصود تست	تیغ لا بر کش که آن معبود تست
لا که عرش و فرش بر میبرد	از فنا سوی بقا ره میدهد
لا ترا از تور هائی میدهد	با خدایت آشنائی میدهد
چون تو خود را از میان برداشتی	قصر ایمان را دری افراشتی

له جابر بن عبد الله ﷺ څخه طبراني داسې روایت کړی دی چې علیه الصلوة والسلام وویل "اې د مسلمانانو ډلې له خدایه وېرېږئ، ولې چې بوی د جنت له زر کاله مسافت څخه پیدا کېږي یعنې چې د سړي او د جنت تر منځ د زرو کالو لاروي بیا هم خوشبوي د جنت پر ولاړېږي، او دغه خوشبویي نه سي پیدا کولای عاق یعنې ازاري د مور او پلار او یا ازاري د استاذ، او هغه څوک چې قطع د صله رحمي یې د قریبانو کړې وي، او نه یې سپین ږیری زناکاره پیدا کولای سي، او نه یې هغه څوک پیدا کولای سي چې لنګ او یا پرتوګ پر مځکه پسې کشېږي یعنې کښته تر بجلکو د خیال له لاري "انما الکبریاء لرب العلمین"

او مسلم له عیاض بن حمار الاشجعي څخه داسې روایت کړی دی چې رسول الله ﷺ وویل چې خدای ﷻ ماته وحي کړې دې چې تاسې تواضع کوئ چې یو سړی دې پر بل فخر نه کوي. یعنې هیڅ سړی پر هیڅ چا او نه دې هیڅ څوک پر هیڅ چا ظلم او بغاوت کوي.

**درویش وایي:** چې په اوسنۍ زمانه کې قسم قسم فخرونه په پښتنو کې روان دي (۱) سرمایه داره پر مسکین په مال فخر کوي (۲) ملا صائب پر عوامو فخر کوي (۳) او په اصطلاح د پښتنو څرک پر پنجپای فخر کوي (۴) او درنې قوم پر خلجي فخر کوي والی غیر ذالک من وجوه الفخر في الافاغنة مثلاً فلانی سړی جټ دی او یا پارسیبان دی او یا استاکار دی، ولنعم ماقیل

په قیامت نسته داسې پوښتنه	چې د چا زوی یې له کوم وطنه

## الَّذِينَ يَبْخَلُونَ

**یوه سه:** چې "الذین" بدل کل دی د "من کان" او جمع د موصول ده په اعتبار د معنی د "من" ده، او روح البیان وایي چې دا موصول مبتدا، ده خبر یې محذوف دی ای احقاء.

بخل ملامة. او مظهري رحمه الله دا احتمال هم راوړی دی چې "الذین" د خبر وي د مبتدا، محذوفي ای "هم الذین آه" او دا احتمال هم سته چې موصول منصوب علی الذم، والمعنی اذم الذین آه. چې د نحو په کتابو کې داسې تعبیر کوي اعني الذین.

**پوه سه:** چې له بخل څخه یا مراد بخل متعارف دی یعني البخل بالمال فرضاً او واجباً لکه زکوة او نفقه د والدینو او یا نفقه د محتاجه اقرباوو یا مستحب وي له انفاق پر بېګانه ګانو من المحتاجین والیتامی والمساکین. او یا مراد دی بخل په تواضع سره د نبي نوع سره کما هو المناسب لحال المختال الفخور.

**وَيَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبُخْلِ**

او نور خلګ هم امر کوي په بخل سره. بغوي رحمه الله نقل کوي چې ابن عباس رضي الله عنه وایي چې آیت په شان کې د حیي بن اخطب او رفاعه بن زید او د نورو ګڼو شمېرو یهودانو نازل سوی دی چې دوی به د انصارو سره په وخت کې د ملاقات داسې ویل چې تاسې خپل مالونه مه صرفوئ پر مهاجرینو، موږ بېربږو چې تاسي به له فقر سره مخامخ سئ، او تاسې ته نه ده معلومه چې حال د علیه الصلوة والسلام به څرنګه سي. نو پر دې تقدیر مراد له بخل څخه بخل بالمال دی. او بعض مفسران وایي چې مراد له بخل څخه بخل بالعلم دی لکه د یهودانو ملایانو به بخل کاوه په اظهار کې د اوصافو د علیه الصلوة والسلام چې په تورات کې دوی ته بیان سوي وه.

**وَيَكْتُمُونَ مَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِنْ فَضْلِهِ ۗ وَأَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ**

او دوی به پټاوه هغه شی چې خدای جل جلاله دوی ته ورکړی و یعني من المال والغنی او العلم. او موږ اراسته کړی دی کافرانو لره.

**پوه سه:** چې ځای خو د ضمیر و یعني واعتدنا لهم. لکن اسم ظاهر یې په ځای کې راوړی تنبیهاً علی کفرهم بهذا الکتمان او بالبخل او الامر بالبخل.

**عَذَابًا مُهِينًا ۝٣٧**

عذاب د اهانت لکه چې دوی اهانت د نعمت د مال وکړی یعني چې په ځای کې د انفاق في سبیل الله یې بخل مختار کړی او یا یې نعمت د علم په اهانت وکړی

چي په ځای کي د اظهار يې کتمان مختار کړی. نو ځکه مونږ دوی ته عذاب د اهانت ورکړی.

**درويش وايي:** چي بخل له ذميمه صفاتو څخه د انسان دی چي له بخل څخه نور امراض مزمنه نفسانيه پيدا کيږي لکه حرص د دنيا الذي هو راس كل خطيئة بقول الصادق المصدوق ﷺ. والبغض والكراهة عن الفقراء السائلين وقطع صلة الارحام الى غير ذالك. او له هم دې سببه سيد البشر ﷺ فرمايي چي سخي سړی قريب دی وخدای ﷻ ته او نژدې دی وجنت ته، او نژدې دی وخلګو ته يعنې د خلګو په څيندي راځي او لېري دی له اور څخه. والبخيل بعيد من الله. بخيل له خدايه لېري دی. او لېري دی له جنت څخه او لېري دی له خلګو څخه يعنې د خلګو بد څيندي راځي "قريب من النار" او هر آئينه جاهل سخي محبوب دی وخدای ﷻ ته تر عابد بخيل. رواه الترمذي عن ابي هريره ﷺ. او ابو سعيد الخدري ﷺ داسي حديث مرفوع له عليه الصلوة والسلام څخه نقل کړی دی چي دوه خويه نه سره جمع کيږي په مؤمن کي "البخل وسوء الخلق" رواه الترمذي.

**درويش وايي:** چي دا حديث يا لپاره د زجر دی له دغو دوو خويو څخه او يا مراد له مؤمن څخه فرد کامل دی. والله اعلم بمراد رسوله ﷺ. او ترمذي له ابوبکر صديق ﷺ داسي روايت کړی دی چي جنت ته نه سي داخلېدای "خب" يعنې چي په منځ کي د خلګو فساد کوي او نه بخيل. او نه منان يعنې چي د چا سره احسان وکړي بيا يې هر ځای وريادوي.

**يوه سه:** چي مراد له دخول څخه د جنت يا دخول اولی دی. او يا حديث مبني پر زجر دی والله اعلم بمراد رسوله ﷺ.

## وَالَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ رِئَآءَ النَّاسِ

او هغه کسان چي نفقه کوي يعنې خلګو ته يې ورکوي خپل مالونه لپاره د ليدلو د خلګو يعنې تاچي خلګ وايي چي فلانی سړی عجبه سخي دی.

**يوه سه:** چي "رئآء الناس" مفعول به دی د "ينفقون" او دا موصول عطف دی پر موصول اول يعنې "الذين يبخلون آه"

**پوښتنه:** په منځ کې د معطوف او معطوف علیه خو مناسبت او مشارکت په یو شي کې شرط دی فما وجه المشارکة والمناسبة؟

**ځواب:** بخل په انفاق کې او انفاق "رئآء الناس" دواړه صفات مذمومه دي، او یا دا چې انفاق "رئآء الناس" داسي دی لکه عدم الانفاق یعنې البخل چې هیڅ نفع او فائده نسته پکښي. او یا دا وجه د مناسبت ده چې بخل یو طرف دی د انفاق شرعي، ای الانفاق لمرضات الله، وهذا الطرف هو التفریط وانفاق "رئآء الناس" چې صرف اسراف دی بل طرف دی د انفاق شرعي چې اسراف یې بولي فهما ای البخل والانفاق "رئآء الناس" مشارکان في انهما طرفا الانفاق الشرعي او دواړه سببه دي د جلب د عذاب الهي.

وَلَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْآخِرِ

او ایمان نه لري پر خدای ﷻ او پر ورځي د آخرت حتی چې انفاق به یې سبب د نجات له عذابه د آخرت ګرځېدلای وای. روح البیان وایي چې مراد په دې آیت کې کفار د مکې دي چې مالونه یې مصرفول په عداوت کې د رسول کریم ﷺ او لپاره له منځه وړلو د اسلام او قرآن.

**پوه سه:** چې د ذم د انفاق "رئآء الناس" دا حدیث مبارک کافي دی چې روایت یې ابوهریره ﷺ له علیه الصلوة والسلام څخه کړی دی او دغه حدیث مسلم راوړی دی چې رسول کریم ﷺ وویل چې خدای ﷻ وایي "انا اغني الشرکاء عن الشرک" زه د ټر غني یم له شریکي عبادت څخه د مسلمانانو یعنې د ریا کارانو له عبادت څخه چې زما سره په عبادت کې بل څوک شریک کړي وي زه بنده دده له شرک سره پرېږدم یعنې هغه شریک دي په ورځ د آخرت ثواب ورکړي زه یې نه ورکوم.

وَمَنْ يَكُنِ الشَّيْطَانُ لَهُ قَرِينًا فَسَاءَ قَرِينًا ﴿٣٨﴾

او د چا چې شیطان ملګری وي، نو بد دی دې سړي ته ملګری شیطان لانه یامره بالفحشاء والمنکر. لکه دلته چې ددوی داغه دوست شیطاه دوی امر کړه په بخل او په صورت کې د انفاق په دوی امر کړه په ریاء سره.

**پوه سه:** چې "ربط د من یکن آه" له ماقبل سره دادی چې انفاق "رئاء الناس" او عدم ایمان پر خدای ﷻ او پر ورځ د اخرت نبوونه د عدو الله والمؤمنین شیطان ده.

**پوه سه:** چې په دې آیت کې تحذیر دی د مؤمنانو د مصاحبت او خلت او دوستی، څخه د شیطان.

**فائده:** علماء حضرات وايي چې د ریاء کار مثال داسې دی لکه یو سړی چې کودرې پر نقشه د دراهمو او دنانیرو وتراشي او په یوه کڅوړه کې یې واچوي او په بازار کې یې په شا وي، نو خلګ دا ګمان کوي چې ددې سړي سره څومره دراهم او دنانیر ورسره دي، نو ددې سړي فائده صرف د خلګو خبرې دي او که دا کودرې یو دوکان ته وروړي هیڅ شی نه په رانیول کېږي. داغه رنګه ریاء کار لره د خلګو خبرې فائده ده وبس، او په بازار کې د آخرت وده ته په ریائي عمل هیڅ شی په لاس نه ورځي، محقق وايي.

هر که مقصود ش از کرم آنست — که بر آرد بمردم آوازه

باشد از مصر فضل کرم وجود وکرم — خانه او برون زدروازه

سعدي شیرازي قدس سره وايي.

عبادت باخلاص نیت نکو ست — وگر نه چه آید زبی مغز پوست

چه زنار مغ در میانت چه دلق — که درپوشی از بهر پندار خلق

**وَمَاذَا عَلَيْهِمْ لَوْ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَاَنْفَقُوْا مِمَّا رَزَقَهُمُ اللّٰهُ ۭ وَكَانَ اللّٰهُ بِهِمْ عَلِيْمًا ۝**

او څه تاوان او ضرر به وای پر دوی یعنې الطوائف المذکوره که دوی ایمان راوړی وای پر خدای ﷻ او پر ورځ د قیامت او انفاق یې کولای له ځینې هغه ماله چې موږ دوی ته په رزق کې ورکړی و یعنې به الانفاق في سبیل الله وفي مرضاته او دی خدای ﷻ په دوی ښه خبر.

**پوه سه:** چې استفهام د ماذا علیهم انکاري دی یعنې هیڅ تاوان او ضرر نه و.

**پوه سه:** چې "من" په "مما" کې تبعیضي دی یعنې بعض قلیل له اموالو څخه د

زکوٰة مثلاً چي په دراهمو کي زکوٰة ربع العشر دی چي ډېر ادنی شی دی، وهکذا في السوائم لکه پسونه، بوزې، غویان او اوښان چي په هغو کي هم زکوٰة لږ شی دی. او په اضافت کي رزق و ضمیر ته د خدای ﷻ نکته داده چي رزق او راس المال د زکوٰة هم ما درکړی دی. او په مال کي هم لږ شی درځه غواړم کمامر او هغه هم په دې شرط درځخه غواړم چي ستا تر حوائجو اصلیه وو لکه سلاح، د سپرتیا آس او په اوسنی زمانه کي د سپرتیا موټر او مفروشات البیت او د ستوګني سرای الی غیر ذالک به زائد وي، او کال به هم پر تېر سوی وي او پوره به هم نه وي دربانده وي، او بیا به په زکوٰة کي یو په لسه تر اوه سوه مثل پوري بلکې تر ماشاء الله پوري عوض او ثواب درکوم نو ته ولي منع د زکوٰة کوې.

**درویش وایي**: چي د مانع الزکوٰة مثال داسي دی چي یو سړی و یو چا ته دوه سوه درهمه مثلاً مفت ورکړي او بیا هغه سړي ته یو فقیر ودرېږي، نو هغه سړی و معطي له المال ته ووایي چي د هغه دوه سوه درهمه څخه پنځه درهمه په قرض حسن ماته راکړه چي زه به یې عوض تر اووه سوه مثله پوري بیا درکړم چي زه اوس دغه پنځه درهمه ودې فقیر ته ورکوم، او هغه سړی چي معطي له دی منع وکړي نو دا مانع به ډېر احمق او کنجوس نه وي؟ هو! دی.

نو عاقل سړی باید اطراف د خپل مال چي زکوٰة پکښي کېږي وسنجوي، او په ښه خوشحالی سره دي زکوٰة ورکړي.

**پوښتنه**: اغنیاء به وایي چي دا مال خو ما پخپل تجارت د کانداري حاصل کړی مثلاً؟

**ځواب**: که تاسي وخدای ﷻ ته دا رزق منسوب نه بولئ، خو کافر کېږئ، ولي چي خدای پاک وایي "ان الله هو الرزاق" او بل ځای وایي "یرزق من یشاء" الی غیر ذالک من الآیات الصریحة في ان الرزق من جانبه تعالی. او که نه صرف ځان کاسب بولي او ورکونکی د رزق خدای ﷻ بولي، بیا خو د منع د زکوٰة هیڅ وجه نسته.

**درویش وایي**: چي استفهام په ماذا علیهم آه، کي لپاره د توبیخ او سرزنش دی پر منعه د انفاق في سبیل الله ولمرضات الله عزوجل، فتدبر فیما قلنا.

**درویش وایي**: چي د بخل د مذمت په باره کي او د انفاق في سبیل الله د مدح

حدیث د بخاري ج ۱ جز ۱۳ چې په دې عنوان یې راوړی دی حدیث "ابرص واقرع" پیس او پک "واعمی" یعني په سترګو ړوند. د هر مناسب الحال د وړاندې آیتو سره دی.

**یوه سه**: چې بخاري خپل په دوو سندو سره له ابي هریرهؓ څخه داسې روایت کړی دی چې دی وایي ما له رسول اللهﷺ څخه واوریدل چې ویل یې (ان ثلاثة في بني اسرائیل ابرص واقرع واعمی) درې کسه له بني اسرائیلو څخه چې یو پیس و، بل پک و او بل ړوند و (بدء الله ان یبتلیهم) اراده وکړه خدای ﷻ چې په دوی امتحان وکړي.

**یوه سه**: چې خدای ﷻ خو عالم الغیب والشهادة دی او د خان لپاره خو امتحان ته ضرورت نه لري، بلکې ددې لپاره چې په امتحان سره خلګو ته ددوی حال معلوم کړي تاچې خلګ عبرت ځیندي واخلي. سعدي شیرازي وایي

| | |
|---|---|
| پند گیر از مصائب دیگران | تا نگیرند دیگران زتو پند |
| نه رود مرغ سوی دانه فراز | چو دیگر مرغ بیند اندر بند |

(فبعث الیهم ملکاً فاتی الابرص) نو خدای ﷻ ودوی درو ته ور واستول یوه ملکه. نو هغه ملکه وار دواره وپیس ته ورغله (فقال اي شيئ احب الیک؟ قال لون حسن وجلد حسن قد قذرني الناس) نو ملکې پیس ته وویل چې تاته څه شی خوند درکوي؟ پیس ورته وویل چې ښه رنګ او ښه پوست. یعنې اوس خو زما مخ تپلي تپلي دی په سبب د پیس او د بدن پوست مې هم تیکیالی دی په سبب د پیس، او هر مجلس ته چې ورسم خلګ بد راڅخه وړي یعني وایي درغلی منحوس، نو مې مجلس ته نه پرېږدي (قال فمسحه فذهب عنه فاعطي لوناً حسناً وجلداً حسناً) علیه الصلوة والسلام وویل چې ملکې یې پر مخ او بدن باندې لاس ورتېر کړی، نو پیس ته د خدای ﷻ په قدرت ښه رنګ ورکړه سو د مخ او پوست یعني د پیس دا مرض کامل جوړ سو (واي المال احب الیک فقال الابل او البقر شک في ذالک) نو ملکې ورته وویل چې کوم مال دې خوښ دي؟ هغه ورته وویل چې اوښ یا غوا، بلکې په دې کې شک دی ابو اسحق راوي وایي

چي پيس اوښه خوښه کړه که يې غوا الکن دا معلومه خبره ده چي يوه لـه پک او پيسه څخه اوښه خوښه کړې ده او بل غوا (فاعطي ناقة عشرا وقال يبارک لک فيها) نو ورکړه سوه وپيس ته يعنې د ملکې له خوا اوښه چي د لسو مياشتو بلاربه وه يعنې چي د لنگېدو وخت يې نژدې و کما هو قانون ولادة الناقة. او ملکې ورته وويل چي تاته به برکت درکړه سي په دغه اوښه کي يعنې نسل پر نسل به ډېري سي (قال فأتى الاقرع فقال اي شيئ احب اليک؟ قال شعر حسن ويذهب عني الاذاء قد قذرني الناس قال فمسحه فذهب واعطى شعراً احسناً) عليه الصلوة والسلام وايي چي بيا هغه ملکه ورغله پک ته او ملکې ورتـه وويل چي څه شی تاته ښه خوند درکوي؟ پک ورته وويل ښه د سر وېښتـان او زما څخه چي دا پک والی ولاړ سي. ولې چي هر مجلس ته ورسم خلگ بد راڅخه وړي. يعنې بعض وايي ولاړ سه د سر دي بد بوی ځي. او بعض وايي ولاړ سه د موچانو پلاره مثلاً، نو ملکې يې پر سر لاس ورتېر کړی سر يې په ښوو وېښتانو پټ سو او د پک والي داني وغيره يې جوړې سوې (فقال فاي المال احب اليک؟ قال البقر. فاعطي بقرة عشرا. فقال يبارک لک فيها) بيا ملکې وپک ته وويل چي کوم مال وتاته ښه محبوب دی؟ هغه ورته وويل غوا.

**يوه سه:** چي بقر اسم جنس دی نر او ښځي دواړو ته شامل دی فلا يرد مايتوهم. نو پک ته ورکړه سوه د ملکې له خوا غوا چي د لسو مياشتو بلاربه وه او ملکې ورته وويل چي برکت يې درکړی تاته په دغه غوا کي يعنې نسل پر نسل به گورم ځيندي جوړ سي (قال وأتى الاعمى فقال اى شيئ احب اليک؟ قال يرد الله علي بصري فابصربه الناس فمسحه فرد الله عليه بصره) عليـه الصلوة والسلام وايي چي بيا ملکه راغله وړانده ته ملکې ورته وويل چي څه شی تاتـه محبوب ترين دی؟ ړانده ورته وويل چي خدای ﷻ وماته رد کړي زما ديد د سترگو او په هغه سره زه خلگ ووينم يعنې وغيرهم من الاشياء الغريبة الدالة على قدرة عظيمة للمعبود بالحق کما قال السعدي الشيرازي قدس سره.

برگ درختان سبز درنظر هوشيار هر ورقی دفتريست معرفت کردگار

نو ملکې بې پر سترګو لاس ور تېر کړی، نو خدای ﷻ رد کړه و هغه ړاند وته لیدل د سترګو (فقال فاي المال احب الیک؟ قال الغنم فاعطاه شاة والدا) نو ملکې ورته وویل چې کوم مال دې ښه خوښ دی؟ ړاند ورته وویل چې د پسو جنس، نو ملکې ور ده ته ورکړه مېږ چې پر لنګېدو وه (فانتج هذان وولد هذا فکان لهذا واد من الابل ولهذا واد من البقر ولهذا واد من الغنم) نو په لنګېدو سوې هغه دوې یعنې اوښه او غوا او لنګه سوه مېږ.

**یوه سه:** چې لنګېدو ته د اوښې او غوا انتاج وایي او لنګېدو ته د مېږې ولاد وایي، اخیر په مرور د زماني پیس لره پوره شپله سوه د اوښانو. او یک لره بسته شپله سوه د غوا وو. او ړانده لره بسته شپله سوه د پسو.

**فائده:** درویش وایي چې که څه هم په دغه حدیث مبارک کې دانه دي راغلي چې دا دري کسه په یوه ځای کې وه او که په جلا جلا ځایو کې کې اوسېدل. لکن ظاهره داده چې په جلا جلا ځایو کې اقامت پذیره وه، تاچه پېک د پیس له حاله کما سیأتي في وقت الامتحان عبرت وانه خلي فتامل في ذالک والله اعلم بمراد رسوله ﷺ في هذا الحدیث (ثم انه آتی الابرص في صورته وهیئته فقال رجل مسکین انقطعت بي الحبال فلا بلاغ بي الیوم الا بالله، ثم بک اسئلک بالذي اعطاک اللون الحسن والجلد الحسن والمال بعیراً اتبلغ به في سفري) وروسته هغه ملکه ورغله پیس ته په هغه صورت او هیئت کې چې پیس لیدلې وه یعنې چې پر ته یې لاس تېر کړی او جوړ سو او بیا یې اوښه ورکړه.

**یوه سه:** چې ورتګ په هغه صورت کې لپاره د اقامت د حجت د ملامت دی پر پیس باندي. نو ملکې ورته وویل چې زه یو مسکین سړی یم چې قطع سوی دی زما د سفر اسباب، نو زه نه رسېږم منزل مقصود ته مګر نه په خدای ﷻ سره او بیا په تا سره، او زه تاته سوال کوم په هغه چا چې تاته یې لون حسن او جلد حسن درکړی دی د یوه اوښ چې زه پر هغه ځان ورسوم مقصد ته په دې سفر کې.

**پوښتنه:** ملائکې خو معصومې دي له ګناه څخه دا خبره د ملکې خو دروغ وه.

**ځواب:** درویش وایي چې ددې سوال اسانه ځواب هغه دی چې فاضل سندي

ورکړې دی بان له تعالی ان یبیح التکلم لبعض المصالح بما ظاهره کذب او هو کذب بالحقیقة ایضاً فحین ابیح ذالک فلا اشکال علی التکلم بذالک لانه ما اتی الا بالمباح له فلا اثم علیه ولا یقدح ذالک في عصمة الملائکة عن المعاصي لان هذا التکلم في حق هذا الملک لیس بمعصیة انتهی (فقال ان الحقوق کثیرة) نو پیس ورته وویل چې حقوق خو ډېر دي یعنې موږ په چا ورسیږو (فقال کاني اعرفک الم تکن ابرص یقذرک الناس فقیراً فاعطاک الله تعالی) ملکې ورته وویل لکه زه چې تا پېژنم ته پیس نه وې چې خلګو به بد درڅخه ویل او مسکین هم وې خدای ﷻ تاته مال درکړی (قال لقد ورثت کابراً عن کابر) پیس چونکه اوس نه پیس و او نه مسکین بلکې پېدا ال و، نو د ملکې په خبره یې بد یوړه او وه یې ویل چې دا ډېر ښه رنګ، جمال او مال ماته له پلار او نیکه راپاته دی، یعنې نه مو په پلار او نیکه کې پیس و او نه فقیر و.

**درویش وايي:** چې مسکین سړی چې ډېر مال پیدا کړي او یو څوک دده د مسکنت حال ورپیاد کړي ډېر بد په وړي دلت علیه التجربة في الوقت الحاضر انفاً چناچه یو څوک چې یو اندازه دنیا پیدا کړي که یې حج هم نه وي کړی خلګ یعنې طامعان یې حاجي صاحب بولي او که یې یو څه دنیا پیسې ډېره سوه او حج یې هم وکړی خلګ یعنې طامعان یې حاجي آغا بولي.

**درویش وايي:** چې ما پخپلو سترګو ولیدل چې یو ملا صاحب د یو حرام خوره پېدا ال لاسونه ور مچ کړه او پیدا ال هم لاسونه د ملا صاحب وخولې ته ورپورته کړه.. دا ټوله د طمعي له سببه (ملکې ورته وویل که ته دروغ وایي خدای ﷻ دي تا بیرته هغه سي وګرځوي لکه ته چې پخوا وې.

**درویش وايي:** چې د پیس په اوښانو مرض ګډ سو کرار کرار مره کېدل په مرور د لږ زماني اوښان ټوله مړه سوه او جاه وجلال د پیس خان بالکلیة ختم سو او آثار د پیس والي بیرته پر ښکاره سوه او بیرته لکه پخوا هم فقیر سو او هم پیس سو (ثم آتی الاقرع في هیئته وصورته فقال مثل ماقال لهذا ورد علیه مثل مارد علیه هذا) بیا ملکه ورغله وپک ته پخپل پخواني هیئت او صورت کې، نو

ملکې ویک ته هغه خبرې وکړې لکه پیس ته چې یې کړې وې. او یک هم هغه سې رد د ملکې وکړی لکه پیس چې کړی و (فقال له ان کنت کاذباً فصیرک الله الی ماکنت علیه) نو ملکې یک ته وویل که چېرې ته دروغ وایې خدای ﷻ دې بیرته هغه سې وګرځوه لکه مخ کې چې وې.

**درویش وایي:** چې د یک حال د پیس پر حال چې موږ ذکر کړی قیاس کړه.

(وأتی الاعمی في صورته فقال رجل مسکین وابن السبیل وتقطعت بي الحبال في سفري فلا بلاغ الیوم الا بالله ثم بک اسئلک بالذي رد علیک بصرک شاةً اتبلغ بها في سفري)

**درویش وایي:** چې ددې عربي عبارت ترجمه هم هغه سې ده لکه د مخ د عبارت عربي په بیان کې چې د پیس او د یک د حال وه (فقال قد کنت اعمی فرد الله بصري وفقیراً فاغناني الله فخذ ماشئت فوالله لا احمدک لشيءٍ اخذته لله فقال امسک مالک فانما ابتلیتم فقد رضي الله عنک وسخط علی صاحبیک) نو ړانده پخپله ورته وویل چې زه د مخه ړوند وم، نو زه خدای ﷻ په سترګو بینا کړم او زه فقیر وم خدای ﷻ غني کړم، نو واخله هرڅو پسونه چې غواړې یې زه. قسم په خدای دی زه ستا حمد نه وایم پر ترک د شي چې ته حاجت ورته لرې "فلفظ الترک محذوف" والمعنی زه نه راضي کېږم له تا څخه چې ته هغه پسونه پرېږدې چې ته حاجت ورته لرې. دا ټول د خدای ﷻ د رضی لپاره بوزه ملکې ورته وویل خپل مال دې خوندي کړه زه هیڅ پسه نه غواړم، دا صرف ستاسې یعنې پیس. یک او ړانده خدای ﷻ امتحان وکړی له تا څخه راضي سو او پر هغه نورو دوو یعنې پیس او یک بالذي په غضب سو.

**درویش وایي:** چې وپای ته ورسېدی هغه طویل حدیث د بخاري مع الترجمة من هذا العبد العاصي والله الموفق.

**درویش وایي:** چې د حدیث فوق الذکر سره دا حدیث د بخاري چې په عنوان د حدیث الغار یې راوړی دی ډېر مناسب دی.

**پوه سه:** چې بخاري پخپل متصل سند سره د عبدالله بن عمر ﷺ څخه داسې

رایت کړی دی چې رسول اللهﷺ وویل (بینما ثلثة نفر ممن کان قبلکم یمشون اذ اصابهم مطر فآوو الی غار فانطبق علیهم) په دې منځ کې درې نفره له هغو کسانو څخه چې تر تاسې دمخه تېر سوي وه یعنې من بني اسرائیل کما قال الطبراني، نو پر دوی شروع سو باران یعنې تېز باران، نو دوی پناه یوړه د غره یوه غاري ته یعنې په غاري ننوتل چې باران تېر سي بر ته به را ووځو، نو د غاري خوله پر بنده سوه.

**درویش وایي:** چې په دې ځای کې خو بخاري دغونده خبره کړې ده یعنې فانطبق آه لکن په بل ځای کې د بخاري او د اصحاب السنن په روایاتو کې سبب د انطباق د فم الغار داسې بیان کړی دی چې باران یوه غټه ډبره را ګېل کړه چې د غاري په خوله کې چسپه ولګېدل او دې درو کسانو چې هرڅومره کوشش وکړی ډبره یې نه سوای لېري کولای (فقال بعضهم لبعض انه والله لاینجیکم الا الصدق فلیدع کل رجل منکم بما یعلم انه صدق فیه) نو دې درې کسانو یوه وبل ته وویل چې په تحقیق تاسې ته نجات نه سي درکولای مګر نه رښتیا ویل، نو هر یو له تاسې دي وخدای ﷻ ته دعاء وکړي په هغه عمل سره چې دوی پوهېږي چې دا عمل ما رښتیا کړی دی یعنې خالصاً لله (فقال واحد منهم اللهم ان کنت تعلم انه کان اجیر عمل لي علی فرق من ارز فذهب وترکه) نو یوه له درې کسانو څخه وویل اللهم که چېرې ته خبر یې چې ما یو مزدور درولی و په مزدوري د یوه فرق چې درې کاسې کېږي د شالیو د ورجو یعنې چې ورجې یې نه وې ځینې جلا سوي، نو هغه مزدور ولاړی او مزدوري یې نه یوړه.

**پوښتنه:** د مسلمان خو ایمان دی چې خدای ﷻ په هر شي خبر دی فما معنی الشک في قوله "ان کنت تعلم آه"؟

**ځواب:** دا شک په علم کې د خدای ﷻ نه دی بلکې شک راجع وقائل ته دی یعنې دی شکي دی چې دا زما عمل به خالصاً لله وي او که نه او مقبول عندالله به وي او که نه.

**درویش وایي:** چې دغه سوال او جواب به راتلونکو چې ورو سته به په صیغه

کي د شک راسي هم جاري دی (واني عمدت الی ذالک الفرق فزرعته فصار من امره اني اشتریت منه بقراً وانه آتاني یطلب اجره فقلت اعمد الی تلک البقر فسقها فقال لي انما کان لي عندک فرق من ارز فقلت له اعمد الی تلک البقر فانها من ذالک الفرق فساقها فان کنت تعلم اني فعلت ذالک من خشیتک فضرج عنا فانساخت عنهم الصخرة) او ما قصد وهغه شالیو ته وکړی. نو مي وکرلې یعنې پخپله مځکه کې، نو وګرځېدلې له حال څخه د فرق یعنې ورجي یې ډېرې وکړې، نو په هغو ورجو مي غوبې رانیوی.

**یوه سه:** چي بقر اسم جنس دی نر او ښځي دواړو ته شامل دی، لکن وروسته له ضمیر مؤنث څخه دا معلومېږي چي غوا مراد وه، او شان دا وچي هغه اجیر راغلی خپله مزدوري یې غوښتل، ما ورته وویل چي هغه غوا ورسره بوزه، هغه مزدور ماته وویل چي زما خو ستا سره یو فرق شالي وې او ته وایې غوا بوزه، ما ورته وویل چي غوا بوزه ولې چي دا غوا ستا په فرق رانیول سوې ده، نو هغه اجیر هغه رهي کړه، نو که خدایه ته خبر یې چي ما دا کار وکړی ستا له یېري نو موږ ته فرجه راکړې: نو ډېري لږ څنګ وواهه.

**درویش وایي:** چي ځیني ملایان چي د "فانساخت" ترجمه داسي کوي چي ډېره ګېل سوه دا ترجمه غلطه ده. له دوو سببو، یو دا چي په ځینو روایاتو کي داسي راغلي دي "حتی رءو السماء" یعنې صرف دونده څنګ یې وواهه چي دوی اسمان ولیدی یعنې تر هغې فرجې وتلای نه سوای. او بل دا چي که ډېره ګېل سوې وای نو د هغو نورو دوو کسو وزاریو ته څه ضرورت پاته و (فقال الآخر اللهم ان کنت تعلم انه کان لي ابوان شیخان کبیران واني کنت آتیهما کل لیلة بلبن غنم لي فابطات عنهما لیلة فجئت وقد رقدا واهلي وعیالي یتضاغون من الجوع وکنت لا اسقیهم حتی یشربا ابوای فکرهت ان او قظهما وکرهت ان ادعهما فیستکنا لشربتهما فلم ازل انتظر حتی طلع الفجر فان کنت تعلم اني فعلت ذالک من خشیتک ففرج عنا الصخرة فانساخت عنهم الصخرة حتی نظروا الی السماء) او هغه بل سړي وویل اللهم که چېري ته علم لرې چي ما لره مور او پلار وه،

**درویش وايي**: چې تثنیه د ابوان بنا، ده پر تغلیب د اب پر مور باندي او دوارہ شپږخان کلان سالہ وہ. او زہ به وم هرہ شپه به مې د خپلو مېږو شیدي راوړي د مور او پلار لپاره یعنې دمخه تر خپل عیال.

**درویش وايي**: چې ترجمه د "لبن" چې ما په شیدو سرہ وکړہ بنا، پر اصطلاح قدیم د عربو چې هغو لبن شیدو ته وایه، ورنه په اوسنی اصطلاح کې د عربو شیدو ته حلیب وايي او لبن شلومبو ته وايي کمامر منا، نو زہ یوہ شپه وځنډېدم له مور او پلار ځخه یعنې ناوخته راغلم، نو زہ چې راغلم دوی بیده سوي وہ او زما اهل وعیال بوغاري وهلې له لوږي، او زما عادت و چې تر هغو مې عیال ته شیدې نه ورکولای تر څو مې مور او پلار نه وای ځیښلې او دا مې هم مناسب ونه ګڼل چې مور او پلار زہ راویښ کړم د شیدو د ځیښلو لپاره او دا مې مکروہ وبلل چې دوی پرېږدم، نو دوی به ضعیفه سي لشربتها بحذف المضاف ای لعدم شربتهما.

**درویش وايي**: چې عیال خو اخیر بیده سوہ، نو همېشه او ټوله شپه زہ مور او پلار ته منتظروم. چې اوس به راویښ سي او اوس به راویښ سي حتی چې سپېدی راوچاودې دوی راویښ سوہ یعنې ما شیدې ورکړې. نو که ته خبر یې اې خدایه چې ما دغه خدمت د مور او پلار ستا له بېرې کړی دی. نو ډبره ایسته کړه، نو ډبرې بیا لږ ځان ایله کړی حتی چې دوی اسمان ولیدی لکن وتلای نه سوہ (فقال الآخر اللهم ان کنت تعلم انه کانت ابنة عم من احب الناس الي واني راودتها عن نفسها فابت الا ان اتیها بمائة دینار فطلبتها حتی قدرت فآتیها فدفعتها الیها فامکنني من نفسها فلما قعدت بین رجلیها قالت اتق الله ولا تفض الخاتم الا بحقه فقمت وترکت المائة الدینار فان کنت تعلم اني قد فعلت ذالک من خشیتک ففرج عنا ففرج الله عنهم فخرجوا) نو بیا هغه بل یعنې اخیري سړي له بند یانو ځخه د غاري داسي وویل چې اې الله که ته علم لرې چې شان او حال دا و چې ما لره یوہ د اکا لور وہ چې ما ته تر ټولو انسانانو یعنې تر ښځو محبوبه وہ، نو له دې ځخه ما طلب وکړی ددې د نفس چې مراد ځینې زنی ده، نو دې منع له زنی ځخه وکړ: ببله دې چې زہ به دې ته سل طلاوي ورکوم، نو ما د سلو طلاوو په برابرولو پسې کوشش شروع کړی حتی چې

هغه سل طلاوي مې برابرې کړې، نو مې راوړې او د اکار لور ته مې ورکړې، نو دې هم ماته پر خپل ځان باندې قدرت راکړی. یعنې پر توګ یې وکښې، نو زه یې د دوو پښو تر منځ کښېنستم یعنې ځان مې وجماعو ته اراسته کړی، دې راته وویل له خدایه څخه وبېرېږه او زما د بکارت مهر مه راماتوه مګر نه په حق سره چې نکاح ده. نو ماته چې یې دا وویل زه څینډي ولاړ سوم یعنې بېله جماعو او هغه سل دیناره مې هم ورپرېښول. نو که اې خدایه ته خبر یې چې دا کار ما ستا له بېرې وکړی، نو ډېر د ایسته کړه د غارې له خولې څخه، نو ډېره یکلخته ګېل سوه، نو دوی درې سره په سلامت او عافیت سره راووتل.

**فوائد حدیث الغار المذکور:** (۱) چې څوک د چا مزدوري وکړي باید اجرت بلا مهلت ورکړي او که مزدور ولاړ ی او ورک سو، نو هر وخت چې راغلی که ګټه دده مزدوری کړې وه د ګټې سره به یې ورکوي (۲) خدمت د مور او پلار خصوصاً چې ضعیفه وي باید تر حد ډېر وکړي (۳) چې پر جماع قادر سي او هیڅ مانع هم نه وي باید د خدای ﷻ له بېرې یې پرېږدي.

## إِنَّ اللَّهَ لَا يَظْلِمُ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ

خدای ﷻ ظلم نه کوي پر بندګانو باندې په قدر د یوې ذرې، نو بالا تر یوې ذرې خو په طریق اولی ظلم نه کوي یعنې چې د یو بنده حسنات ور لږ کړي او یا ګنهونه ناکرده ور زیات کړي الی غیر ذالک.

**پوه سه:** چې مثقال مفعال دی له ثقل څخه یعنې په قدر د ثقل د یوې ذرې، بعض اهل لغت وایي چې ذره هغه ډېر کوچنی مېږی ته وایي چې له ډېر کوچنیو الی څخه تقریباً په سترګو نه معلومېږي. او بعض اهل لغت وایي چې ذره هغه کوچني کوچني اجزاء دي چې په وخت کې د برابروالي د لمر پر یو سوري لیدل کېږي، له دې آیت څخه دا وفهمېدل چې عذاب ابدي د کفارو په دوږخ کې ظلم نه دی.

**پوښتنه:** د کافر عمر په دنیا کې یا سل کاله مثلاً یا پنځه سوه کاله یا زر کاله یا زیات تر هغه یا کم تر هغه کما في کتب التواریخ والتفاسیر، نو ابدي دوږخ چې نهایت نه لري ظلم به نه وي او څرنګه؟

**ځواب:** ژوند دوه قسمه دی، یو ژوند د دنیا دی هر څو کاله چې وي اخیر فاني دی. او یو ژوند د آخرت دی چې هغه عمر متناهي دی، نو کافر چې خپل ټوله عمر د دنیا په کفر کې تېر کړی وو. نو ټوله عمر د آخرت به په دوزخ کې تېروي لان العمرين يقاس احدهما بالآخر فلا ظلم في تابيدهم في النار. وهذا كالمؤمن چې هر عمر یې په دنیا کې تېر کړی وي په توحید او ایمان کې، نو په ورځ د آخرت به یې ابدي ژوند په جنت کې وي لان العمرين يقاس احدهما بالآخر فتذكر فان هذا سانح عزيز.

**معذرت:** درویش وایي چې مظهري رحمه الله ددې آیت په تفسیر کې بعض صحیحه احادیث په روایت د بغوي او بخاري راوړي دي لکن چونکه په هغو حدیثو کې متشابهات عبارات موجود دي التي لايعلم تاويله الا الله بالوقف اللازم كما هو المذهب الحنيفي. نو هغه احادیث مې پخپل تفسیر کې درج نه کړه له دې کبله چې ظاهر د هغو احادیثو پر جسمیت د خدای جل جلاله دلالت کوي كما هو مذهب المجسمة، وهذا خلاف مذهب اهل السنة والجماعة. نو زما دغه تفسیر چونکه د بعضې کم علمه امامانو او طالبانو او عوام د پښتنو لپاره دی، نو زه وېرېدم که دغه احادیث زه ذکر کړم مطالعه کوونکي په بلا د جسمیت د خدای پاک نسې اخته او خدای جل جلاله ته جسم ثابت نه کړي.

**سوال:** احادیث مذکوره خو ذکر کړه په اخیر کې ووایه چې فلانی او فلانی عبارت له متشابهاتو څخه دی؟

**ځواب:** د متشابهاتو په معنی به زه خپل مطالعه کوونکي چې ما ذکر کړه څرنګه پوه کړم. بلکې درویش وایي چې کاشکې مظهري هم وتشابه ته د بعض عباراتو اشاره کولای، ولې چې بعض امامان تفسیر مظهري په سبب د اختصار او شهرت مطالعه کوي او عوامو ته وعظ پکښې کوي او عوام چې دغه ظاهر الفاظ د حدیثو واوري د جسمیت په بلا به اخته سي وهذا عذري اليكم والله حفيظ عليكم.

وَإِن تَكُ حَسَنَةً يُضَٰعِفْهَا

که چېرې وي مثقال د ذرې نیکي، خدای پاک هغه مضاعف وي.

**يوه سه:** چې ضمير مؤنث د "تک" راجع دی و "مثقال" ته او تانيث يې په اعتبار د خبر دی چې "حسنة" او يا دا چې مثقال و "ذرة" ته مضاف دی. نو تانيث يې په اعتبار د مضاف اليه د مرجع دی لاتحادهما في المعنى هذا ماقاله المفسرون.

**درويش وايي:** چې كه ضمير و "ذرة" ته راجع سي فلا اعتبار الى توجيه التانيث.

**فائده:** له "حسنة" څخه په اعتبار د تنكير يوه حسنه مراد ده، او له تضعيف څخه مراد تضعيف الى اضعاف مضاعفة كثيرة باعتبار العرف وفي الحديث الذي رواه ابن جرير وابن ابي شيبة عن ابي هريرة ﷺ، دی وايي ما له عليه الصلوة والسلام څخه واورېدل "يضاعف الحسنة الفي الف حسنة"

**فائده:** اصل د "تک" تكون ان شرطيه جازمه چې پر داخل ده نون حركت حذف سو التقاء د ساكنينو په منځ كې د واو او نون راغله او چونكه حرف علت حذف كړه سو "تكن" يا ته سو بيا د تخفيف لپاره په سبب د كثرت استعمال نون هم حذف كړی "تک" يا ته سو، بغوي ﷺ په خپل سند له انس ﷺ څخه روايت كړی دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل "ان الله لايظلم المؤمن حسنة يثاب عليها الرزق في الدنيا ويجزي في الآخرة" واما الكافر فيطعم في الدنيا حتى اذا اقضى الى الآخرة لم يكن له حسنة يعطى بها خيراً رواه احمد ومسلم" ترجمه الحديث په تحقيق خدای ﷻ ظلم نه كوي د يوې "حسنة" يعني كه څه لږ وي يعني چې ثواب دې ور نه كړي بلكې خدای ﷻ وده ته ثواب په مقابل كې د هغه رزق په دنيا كې وركوي او خدای ﷻ جزاء وركوي د هغې حسنه په اخرت كې، او هرچه كافر دی فيطعم في الدنيا خدای ﷻ رزق وركوي په دې دنيا حتى چې كافر آخرت ته ورسي نه وي دلره حسنه حتى چې خدای ﷻ وركړي وده ته خير. له عبدالله بن عمرو بن العاص ﷺ څخه روايت دی، دی وايي چې عليه الصلوة والسلام وفرمايل چې يو سړی به و ميدان ته د آخرت حاضر كړه سي چې نهه نيوي (۹۹) كاغذات د كرام الكاتبين له خوا به په ده پسې ليكل سوي وي او هغه سړی به زما له امت څخه وي. هر كاغذ به يې په اندازه د سترگو د ديد وي، بيا دا كاغذات يعنې دده د سيئاتو به پر ده باندې ولوستل سي او ده ته به وويل سي چې ددغو كاغذاتو له يو شي څخه انكار لرې آيا

پر تاباندي ظلم زما کاتبانو د عملو د بندګانو سوی دی؟ هغه سړی به ووايي لا يارب، نو خدای پاک به ورته ووايي چې ته کوم عذر لرې يا نېکي سړی حيران پاته سي، اخير ووايي لا يارب، خدای پاک ورته ووايي چې دغسي نه ده لکه ته چې وايي چې زه حسنه نه لرم بلکې ته يوه حسنه لرې، او نن ورځ ظلم نسته، وروسته يو کوچنی کاغذ په لاس ورکړي چې په هغه کې صرف دا نوشته وي ﴿اشهد ان لا اله الا الله وان محمدا عبده ورسوله﴾ بیا خدای ﷻ ورته ووايي چې ورسه په ترازو کې خپل د بدو او د ښو عملو نامه سره وتله هغه بنده ورته ووايي چې څه وزن به وي ددې ښخي کوچني کاغذ په مقابل کې د هغو نورو اوږدو کاغذانو، مطلب يې دا وي چې تول ته حاجت نسته، خدای پاک ورته ووايي "انک لاتظلم" يعنې خواه مخواه به يې تلې، نو دی مجبوراً ورسي او کوچنی کاغذ په يوه پله کې کښېږدي او لوی لوی کاغذان په بله تله کې کښېږدي هغه د لويو کاغذو پله په هوا ګرځي او د کوچني کاغذ پله پر مځکه پرته وي، ولې چې د کلمې شريفې سره هيڅ شی نه سي برابر کېدای، رواه ابن ماجه وابن حبان والحاکم.

**درويش وايي:** چې په يو بل حديث مبارک کې راغلي دي چې که اوه آسمانونه او مځکې په يوه پله کې کښېښوول سي او کلمه مبارکه په بله پله کې کښېښوول سي، نو بيا به هم د کلمې مبارک پله درنه وي.

**پوښتنه:** کلمات د شهادت خو د هر مسلمان سره خوندي دي، او سره ددې چې په حديث مبارک کې داسې راغلي دي "ان رجلاً من امتي الی اخير الحديث" نو د يوه رجل د تخصيص څه وجه ده؟

**ځواب:** دا يو سړی چې سره د ډېرو سجلاتو او کاغذاتو د سيئاتو فقط يو کوچنی کاغذ د "اشهد ان لا اله الا الله وان محمداً عبده ورسوله" ورسره وي او هغه کوچنی کاغذ پر هغه لوی لوی سجلاتو او کاغذاتو غالب راسي او د هغه سړي د بخښنې او دخول د جنت بلا عذاب وګرځي دا هغه سړی دی چې خدای ﷻ يې په خپل رحمت سره وبخښي، او پر خدای ﷻ ځای د اعتراض نسته يفعل ما يشاء ويحکم ما يريد لا يسئل وهم يسئلون.

وَيُؤْتِ مِن لَّدُنْهُ أَجْرًا عَظِيمًا

او ورکوي خدای ﷻ وصاحب ته د هغې حسنې له خپله اړخه بېله هغه ثوابه چي خدای ﷻ وعده کړې ده پر عمل حسن باندي وذالک تفضل من الله العزيز الرحيم.

**درویش وايي:** چي له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي خدای پاک ورديږ اجر ته عظيم ووايه، نو د هغه اجر د عظمت مقدار وچا ته نه معلومېږي.

**درویش وايي:** چي بغوي ﷺ په خپل سند سره له عبدالله بن مسعود ﷺ يو طويل حديث روايت کړی دی چي د هغه حديث په اخيرني حصه کي داسي راغلي دي چي يو بنده به په ورځ د قيامت وميدان ته حاضر کړه سي او يوه ملکه په نعره وکړي پر رؤس د اولين او اخرين چي دا فلانی دی که ده چا پر ده حق باندي وي رادي سي خپل حق دي ځيني واخلي. نو حقداران چي حاضر سي، نو بنده ته وويل سي چي ورکړه تولو حقدارانو ته خپل حقوق. نو هغه بنده به ووايي من اين يارب وقد ذهبت الدنيا. نو هغه سړی ووايي چي د کومي خوا يې ورکړم دنيا خو تېره سوه يعنې زما مال او شتمني خو په دنيا کي پاته سوه. نو خدای ﷻ ملکو ته ووايي چي دده په اعمال حسنه وو کي وګورئ او له هغو حسنه وو څخه خلګو ته ددوی حقوق ورکړئ، نو چي حقوق د تولو خلګو دده له اعمال حسنه وو څخه ادا سوه او يو مثقال ذرة حسنة پاته سوه، نو ملکي وخدای ﷻ ته ووايي چي حقوق خو تول له ختم سوه او ددې سړي مثقال ذرة حسنه پاته سوه، نو خدای پاک ملکو ته ووايي چي هغه ذرة حسنه يې ور مضاعف کړئ "وادخلوه بفضل رحمتي الجنة" ومصداق ذالک في کتاب الله ان الله لا يظلم مثقال ذرة وان تک حسنة يضاعف آه وان عبداً شقياً لم يبق له عمل صالح يعنې بېله ايمان قلبي وان کان مثقال ذرة وبقي حقوق الناس. نو خدای پاک امر وکړي وملکو ته چي اعملا سيئه د پوروړو را اخلئ او دده وسيئاتو ته يې ورضموئ چي کله هغه کار هم وپای ته ورسېږي ملکو ته ووايي چي اوس يې نو او ور ته وربېري وهئ، رواه البغوي وابن المبارک وابن ابی حاتم. وفي هذا المقام سؤال دقيق وله جواب انيق فتامل فيهما بفکر عميق.

**درويش وايي**: چي په حديث صحيح كي راغلي دي چي خداى ﷻ په هغه وخت كي وملكو ته ووايي چي جنتيان وجنت ته ورسي چي ورسئ خوراكي شيان راوړئ ودغو جنتيانو ته، نو ملكي قسم قسم مطعومات ودوى ته راوړئ چي د هر يوه خوند له بله څخه جلا وي، وروسته تر اكل او شرب خداى پاک ودوى ته ووايي چي زه ستاسي رب يم ما خپله وعده د تاسي سره پر ځاى كړه، نو زما څخه سوال كوئ چي در پر ځاى كوم يې دوى وايي چي "ربنا نسئلک رضوانک" دوه واره يا درې واره خداى پاک ورته ووايي "قد رضيت عنكم" اما زما سره تر دغو ټولو نعمتو زائد نعمتونه سته كما ورد ولدي المزيد. جنتيان حيران پاته سي چي تر دې ټولو نعمتو به زائد نعمت څخه شي وي، نو خداى پاک حجاب د كبريا له ځان څخه لېري كړي بلا كيف، نو دوى چي د خداى ﷻ ديدار بلا كيف وبلاجهت تر يوې اندازې وكړي باره پر سجده وخداى ته پرېوزي تر يو وخته پوري پر سجده باندي پراته وي، خداى پاک ورته ووايي چي سرونه پورته كړئ دا ځاى يعني جنت د سجدې ځاى نه دى يعني د عبادت ځاى دنيا وه، نو دوى هېر كړي د جنت ټوله نعمتونه او ديدار د خداى ﷻ ودوى ته محبوب وي تر هر نعمت.

**درويش وايي**: چي دا خو يو ديدار عمومي و د جنتيانو لپاره وروسته بيا ديدار خصوصي سته په حسب او مقدار د قرب الى الله للانبياء عليهم السلام بحسب تفاوتهم في الدرجات ولاولياء الله وصلحاء الامة المرحومة مع التفاوت في تعدد الروية والعلم عندالله.

**فائده**: معتزله له رؤية څخه د خداى ﷻ منكر دي او په عقلي دلائلو سره دليل وايي، ولهذا قال الطوسي في التجريد ورؤية الله تعالى كما يزعمها اهل السنة والجماعة باطل لانه لابد انيكون المرئي في مكان لايكون في غاية القرب ولا في غاية البعد ويكون المرئي في جهة من الرائي اى جهة المواجهة من الرائي وكل ذالک محال في حقه تعالى.

**درويش وايي**: چي دلائل له فاسد عقل څخه ددوى دي چي آخرت پر امور د دنيا قياسوي او دا قياس فاسد دى، نور نو مزيد تفصيل د مسئلې د رؤيت الهي

په شرح عقائد او شرح مقاصد کې للعلامة التفتازاني رحمه الله او په مواقف للقاضي عضد الملة والدين وشرحه للسيد الجرجاني رحمه الله او په نورو کتابو کې مطالعه کړئ یعنې د عقائدو د اهل السنة والجماعة.

**فَكَيْفَ إِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ بِشَهِيدٍ وَجِئْنَا بِكَ عَلَىٰ هَٰؤُلَاءِ شَهِيدًا ﴿٤١﴾**

نو څرنګه به وي حال ددغو کافرانو چې نه يې حقوق د خدای ﷻ پر ځای کړي وي او نه يې حقوق د بندګانو، یعنې حال ددوی په ورځ کې د قیامت.

**پوه سه:** چې استفهام په "کيف" کې لپاره د تهويل دی یعنې ډېر بد حال به وي ددوی چې موږ راتګ وکړو له هر امت څخه په یو شاهد چې نبي د هغه امت دی چې شاهدي به اداء کوي پر خپل امت بما عملوا من خير او شر وتصديق من صدقه وتكذيب من كذبه. او راتګ وکړو په تا سره اې محمد ﷺ پر خپل امت که عليه الصلوة والسلام ليدل وکړي ته شاهد يې.

**فائده:** کلمه د "فا" په "کيف" کې تفريع ده پر مفهوم د کلام سابق یعنې اذا علمت ان الله لا يظلم مثقال ذرة وياخذ من الظالم حق المظلوم فكيف آه"

**پوه سه:** چې مراد له امت څخه د عليه الصلوة والسلام امت د دعوت دی. ولې چې په حديث شريف کې چې ابن المبارک رحمه الله له سعيد بن المسيب رضي الله عنه څخه روایت کړی دی دا يې راغلي دي چې "ليس من يوم الا وتعرض على النبي ﷺ امته غدوة وعشية فيعرفهم بسيماهم واعمالهم فلذالك يشهد عليهم" او روایت کړی دی بخاري چې ابن مسعود رضي الله عنه وويل چې ماته عليه الصلوة والسلام وويل چې ته يو څه قرآن مجيد ماته ووايه، ما ورته وويل "اقرء عليك يا رسول الله وعليك انزل، قال نعم" نو ابن مسعود رضي الله عنه وايي چې ما سورة النساء ورته شروع کړی حتى چې دې آيت ته ورسېدم "فكيف اذا جئنا من كل امة بشهيد وجئنابک على هؤلاء شهيدا" عليه الصلوة والسلام راته وويل اوس بسته، ما چې عليه الصلوة والسلام ته وکتل تر سترګو مبارکو يې اوښکې بهېدلې.

**درويش وايي:** چې مشهور مفسرين وايي چې مراد له "هؤلاء" څخه نور انبياء

علیهم السلام مراد دي چي هغه انبیاء به پر خپلو امتو باندي شاهدي اداء کړي، نو علیه الصلوة والسلام ددوی پر صدق شاهدي اداء کوي، او بعض مفسران وایي چي مراد له "هؤلاء" څخه مؤمنان ددې امت دي چي دا مؤمنان به شاهدي اداء کړي د انبیاؤ لپاره ددوی پر امتو او علیه الصلوة والسلام به د خپلو مؤمنو امتیانو شاهد د تزکیې وګرځي.

**درویش وایي:** چي دا شهادت د مؤمنانو پر امتو باندي ددې تفسیر په سورت بقره کي تېر سوی دی فتذکر.

**يَوۡمَئِذٖ يَوَدُّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ وَعَصَوُاْ ٱلرَّسُولَ لَوۡ تُسَوَّىٰ بِهِمُ ٱلۡأَرۡضُ**

په دغه ورځ چي حال یې هغه وچي تېر سو في قوله تعالی "فکیف آه" چي دا ورځ د قیامت ده تمنی به کوي هغه کسان چي کفر یې کړی وي په دنیا کي او عصیان او نافرماني یې کړې وي له رسول ﷺ څخه چي کاشکي پر موږ مځکه برابره یعني خاوري سوي وای او د مځکي اجزاء ګرځېدلي وای او بیا نه وای راژوندي سوي.

**درویش وایي:** چي مظهري رحمه الله داسي تفسیر ددې آیت کړی دی "الذین آتوا بالکفر والعصیان جمیعاً او باحدهما آه" دا تفسیر مناسب نه دی، ونې چي په کفر او عصیان رسول دواړو سره یې راتګ کړی وای او یا په یوازي کفر سره هغه بېشکه دا تمنی کوي یعني لو تسوی بهم آه لکن د احدهما خو یو شق دادی چي کفر به یې نه وي کړی صرف عصیان رسول یې کړی وي په اعمالو سره لکه لمونځ، روژه وغیره چي دې ته مؤمن عاصي وایي هغه خو دا تمنی نه کوي، ولې چي امید د شفاعت الرسول لري او امید د رحمت عامه الهي لري کمامر عنقریب مثاله، نو صحیح تفسیر هغه دی چي برسوي رحمه الله کړی دی حیث قال وعصیان الرسول محمول علی المعاصي المغایرة للکفر فلا یلزم عطف الشیئ علی نفسه ای یتمنی الذین جمعوا بین الکفر وعصیان الرسول انتهی.

**یوه سه:** چي بعض قراء کلمه د "تسوی" په فتحه د تا او په تشدید د شین بادغام التاء التفعل في السین او بعض قاریان یې په فتح د تاء او تخفیف د سین

وايي بحذف تاء التفعل والاصل على القرائتين "تتسوّٰى" دى او مشهور قراء يې په ضمه د تاء او په تخفيف د سين چي مجهوله صيغه سي د تفعيل له بابه.

**درويش وايي**: چي يوه ترجمه د "يسوّٰى بهم الارض" هغه وه چي مو‌ږ دمخه ذکر کړه، او کلبي رحمه الله وايي چي په ورځ د قيامت چي د وحوشو او مرغانو تر منځ د ظلم کسات خداى ﷻ سره وکاږي وروسته وايي "كونوا تراباً فتسوّٰى بهم الارض" نو په دغه وخت کي کافران هم دا تمنّٰى وکړي.

**وَلَا يَكْتُمُونَ اللّٰهَ حَدِيْثًا ۝۴۲**

او دوى نه پوټوي له خدايه هيڅ خبره.

**درويش وايي**: چي په نېز د عطاء رحمه الله جمله د "ولا يكتمون آه" معطوف ده پر "تسوّٰى بهم الارض" باندي او دا جمله داخله ده تر تمنّٰى لاندي او مضارع په معنى د ماضي ده، يعني دوى وايي کاشکي د خداى ﷻ نازل سوي آيتونه په تورات کي په نبوت او نعوت د محمد ﷺ مو‌ږ نه واى پټ کړي، او نه ورځ د قيامت کي به سبب د نجات واى انتهى بحاصله. لکن پر دې تقدير دا آيت خاص په يهودانو پوري ګرځي، نور کافرانو ته شامليږي، والظاهر من سياق الآيات السابقة عموم هذه الآية بجميع الكفرة، او بعض مفسران وايي چي دا کلام مستانف دى يعني تر تمنّٰى لاندي داخل نه دى بلکې دا جمله معطوف ده پر "يود آه" او دې مفسر ددې آيت ترجمه داسي کړې ده چي دوى قدرت نه لري پر کتمان د خپل کفر، اول خداى ﷻ ددوى په عملو او کفر خبر دى، او دويمه دا چي جوارح او اعضاء د دوى ددوى په عملو سره ورکوي.

**درويش وايي**: چي بخاري په خپل کتاب کي له سعيد بن جبير رضي الله عنه څخه يو ډېر اوږد حديث مبارک را نقل کړى دى چي د هغه حديث په يوه برخه کي داسي راغلي دي چي سعيد بن جبير رضي الله عنه له ابن عباس رضي الله عنه څخه پوښتنه وکړه چي د قرآن مجيد په يوه ځاى کي خداى پاک وايي "ولا يكتمون الله حديثاً" او بل ځاى داسي راغلي دي "والله ربنا ماكنا مشركين، فقد كتموا كفرهم" ابن عباس رضي الله عنه ورته وويل چي په اول الامر دوى له خداى ﷻ څخه خبره نه پوټوي او خپل کفر

مني، خو چي دوی ووینې چي خدای ﷻ و مؤمنانو ته کبیره کبیره ګنهونه وربخښي صرف مشرکانو ته یې نه بخښي، نو په دې وخت کې دوی له شرکه منکر سي "والله ربنا ماکنا مشرکین" په طمع ددې چي موږ به هم خدای ﷻ وبخښي، نو خدای ﷻ ددوی پر خولو مهرونه ور ولګوي او پر دوی باندي شاهدي اداء کړي ددوی لاسونه او پښې "بما کانوا یعملون" نو په دغه وخت کې دوی دا تمنیٰ وکړي "یود الذین کفروا وعصوا الرسول لو تسوّیٰ بهم الارض، ولا یکتمون الله حدیثاً" او حسن بصري رحمه الله وایي چي د قیامت ورځ مواطن لري په یوه مواطن کې کافران هیڅ خبري نه کوي کما ورد "ولا تسمع لهم الا همساً" او په بل مواطن کې خبري کوي خو دروغ وایي کما ورد "والله ربنا ماکنا مشرکین" وجاء ایضاً ما نعمل من سوء، وفي موطن اخر یعترفون علی انفسهم کما قال الله فاعترفوا بذنبهم"

**درویش وایي:** چي په حدیث شریف کې چي روایت یې ابو داؤد، ترمذي او حاکم کړی دی او ترمذي ویلي دي چي حدیث حسن له علي رضي الله عنه څخه چي یوه ورځ د مازدیګر تر لمانځه عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه ډوډۍ کړې وه چي متعدد اصحاب پکښي شامل وه، وروسته تر ډوډۍ شراب راوړل سوه چي په هغه وخت کې شراب حرام نه وه، نو شراب مو هم نوش کړه چي د شرابو د سکر وخت ورسېدی د ماښام د لمانځه وخت و، نو علي رضي الله عنه وایي چي زه یې دمخه کړم ما د "قل یا ایها الکافرون" سورت داسي ووایه "قل یاایها الکافرون اعبد ما تعبدون" په حذف سره د لا د کلمې په ټوله سورت کې، نو دا آیت نازل سو.

## یَٰٓأَیُّهَا ٱلَّذِینَ ءَامَنُوا۟ لَا تَقْرَبُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَأَنتُمْ سُكَٰرَىٰ حَتَّىٰ تَعْلَمُوا۟ مَا تَقُولُونَ

ای هغه کسانو چي ایمان یې راوړی دی تاسي مه نیږدې کېږئ لمانځه ته په داسې حال کې چي تاسي نشه یاست یعني سکر د شرابو درسره وي تر هغه وخته چي تاسي پوهېږئ چي تاسي یې وایاست.

**پوه سه:** چي معنیٰ د "لاتقربوا الصلوة" داده چي "لاتصلوا" لکن په نفي کې د قربان مبالغه ده په نهي کې د لمانځه کولو په وخت کې د سُکر کما في قوله

تعالی "لاتقربوا الزنی" وقوله تعالی لآدم وحواء "لاتقربا هذه الشجرة"

**درویش وایي:** چې حرمت د شرابو ډېر په تدریج سره نازل سوی دی سبب یې دادی چې عرب تېوله په شراب نوشي اخته وه. نو که یې په یوه وار حرمت نازل سوی وای شاید بعض مسلمانانو به عمل نه وای په کړی، اول خدای ﷻ دا آیت نازل کړی "ویسئلونک عن الخمر قل فیها اثم کبیر ومنافع للناس واثمهما اکبر من نفعهما"

**ژباړه:** مسلمانان ستاڅخه پوښتنه کوي په باره کې د شرابو او قمار، ته ورته ووایه چې د شرابو په څښلو او د قمار په کولو کې لویه ګناه ده، او د خلګو فائدې هم پکښې دي خو ګناه یې ډېره ده تر نفعي، نو بعضې مسلمانانو په دغه آیت سره شراب نوشي او قمار پرې ښول، دوی دا ویل چې داسې کار باید سړی نه وکړي چې ګناه یې تر فائدې ډېره وي، او بعضې خلګو وویل چې موږ نفع پر اخلو او له ګناه څخه پرهېز کوو، وروسته چې دا آیت نازل سو "یاایها الذین آمنوا لاتقربوا الصلوة" نو شراب نوشي ډېره کمه سوه، ولې چې د ماپښین تر لمانځه وروسته نه څښل کېده، ولې چې د مازدیګر تر لمانځه پوري یې سکر نه زائلېدی، او داغه رنګه د مازدیګر تر لمانځه وروسته نه څښل کېده، ولې چې د ماښام تر لمانځه پوري یې سکر نه زائلېدی، او د ماښام تر لمانځه وروسته هم خلګو پرهېز ځني کوی، ولې چې د ماخستن لمونځ پسې راتلی، نو فقط د ماخستن تر لمانځه وروسته به یې څښل چې تر سهاره پوري به یې سکر پای ته رسېدی، او یا به یې د سهار تر لمانځه وروسته څښل چې د ماپښین تر لمانځه به یې سکر ختمېدی، وروسته تر هغه په حرمت قطعي حرام سوه کما سیأتي.

**درویش وایي:** چې ضحاک بن المزاحم وایي چې مراد له سکر څخه سکر النوم دی چې سړي ته ډېر خوب ورځي له لمانځه څخه نهي دی، استدلال یې په هغه حدیث متفق علیه ویلی دی چې له عائشې رضي الله عنها څخه مروي دی، دا وایي چې رسول الله ﷺ وویل چې سړي ته خوب ورسي او دی لمونځ کوي نو بیده سي حتی چې خوب ولاړ سي، ولې چې یو له تاسو څخه لمونځ کوي او ده سترګې له خوبه ډکې وي، نو دی به طلب د مغفرت کوي خو ځان ته به ښېرا وکړي یعني

دده به نيت دا وي چي وو ايي "اللهم اغفرلي" لكن چونكه خوب پر غالب دى او په ځان نه پوهيږي داسي به ځني وويل سي "اللهم لاتغفرلي"

**درويش وايي**: چي دا حديث كه څه هم صحيح متفق عليه دى لكن په آيت كي مراد خوب نه دى بلكي مراد په آيت كي سُكر د شرابو دى كمامر في حديث علي ﷺ.

او شان نزول د آيت په نيز د اكثرو مفسرينو هم دغه سكر د شرابو مراد دى والله اعلم بالصواب.

**تنبيه**: له دي آيته دا معلومه سوه چي مصلي بايد په حضور قلبي سره لمونځ كوي او په معاني كي د قرآن مجيد دي فكر وهي او دنياوي فكرونه دي په لمانځه كي نه وهي او كه د قرآن مبارك په معنا نه پوهېدى بيا دي په نورو كارو كي د دين او د خير فكر وهي كما روى ان امير المؤمنين عمر ﷺ اذا صلى تفكر في تجهيز الجيوش لمحاربة الكفار. فعلم من ذالك ان التفكر في الامور الدينية لاينافي حضور الصلوة وان كان يعلم معاني القرآن كما فعل عمر ﷺ.

## وَلَا جُنُبًا

**پوه سه**: جنباً عطف دى پر جملي د "انتم سكارٰى" چونكه هغه جمله منصوب على الحالية وه، نو گويا معنا يي داده "لاتقربوا الصلوة سكرٰى ولا جنبا" فلهذا صح عطف المفرد على الجملة.

**فائده**: جنب هغه چا ته وايي چي جنابت ورسېدلى وي كه په ويښه كي وي له جماع څخه او كه په خوب كي د شيطان له بازيه الى غير ذالك كالاستمناء. مذكر، مؤنث، مفرد او جمع پكښي برابر دي لجريانه مجرى المصدر.

## إِلَّا عَابِرِي سَبِيلٍ

**پوه سه**: چي دا لفظ استثناء مفرغه ده له اعم الاحوال څخه محلاً منصوب دى حال دى له ضمير څخه د "لاتقربوا" لكن په اعتبار د تقيد د نهي په دويم حال سره چي "جنبا" دى نه په اعتبار د تقيد اول سره چي "وانتم سكارى" دى. عامل د نصب يي "لاتقربوا" دى. والمعنى لاتقربوا الصلوة جنباً في حال من الاحوال، خو

نه چي تاسي په لاره کي روان یاست یعني مسافرین یاست، نو سفر ستاسي عذر دی. نو که جنب یاست یا اوبه نه وي او یا اوبه وي لکن ډېر یخ وي چي تاسي له استعمال څخه د اوبو پر مرض بېرېږئ، نو به لمونځ په تیمم سره وکړئ.

**بوه سه**: چي اول آیت چي په رخصت کي د تیمم نازل سوی دی هغه د سورت مائده آیت دی، هغه تر دا اوسني آیت د مخه نازل سوی دی.

**بوه سه**: چي طبراني له اسلع ﷺ څخه روایت کړی دی چي ما به د رسول الله ﷺ خدمت کاوه په سفر کي، نو یوه ورځ یې راته وویل چي اسلع ولاړسه پر اوښه رحل کښېږده ما ورته وویل چي ماته ما ښام جنابت پېښ سوی دی چي شپه ډېره یخه وه نو زه بېرېدم که زه غسل وکړم یا به مریض سم او یا به مړ سم، نو جبرائیل علیه السلام آیت الصعید نازل کړی یعني "فتیمموا صعیدا طیبا" نو علیه الصلوة والسلام ماته تیمم راوښود ضربةً للوجه وضربة للیدین. نو ما تیمم وواهه او پر اوښ باندي مي رحل کښېښود.

## المسائل المتعلقة بالجنابة

**مسئله**: د څلورو مذاهبو امامان رحمهم الله تعالی او جمهور د مسلمانانو پر دې متفق دي چي جماع موجب د غسل ده که انزال سي او که نه، ولي چي ذکر خو پټ دی په فرج کي او په انزال بعض خلګ پوهېږي او بعض خلګ نه په پوهېږي په سبب د ضعف یا په سبب د رقت مني، نو څرنګه جماع سبب وه غالباً نو د دین امامانو جماع چي سبب ده په ځای کي د مسبب چي انزال دی ودرول لکه نوم او خوب چي په ځای کي د حدث درول سوی دی، ولي چي هوړې هم نوم غالباً سبب د خروج د ریح دی نو څکه د نائم اودس مات دی، ویؤیده قوله علیه الصلوة والسلام اذا جاوز الختان الختان وجب الغسل انزل او لم ینزل.

**مسئله**: که سړی بیده و، نو چي راوېښ سو پر توګ یې لوند و، غسل پر واجب دی که څه هم جماع یې په خوب کي نه وي یاد، او ګاهي په غایت رقت سړی نطفه نه سي پېژندلای. او که د نائم جماع په یاد وي او پر جامه یې لوند والی نه و غسل نسته باندي.

**مسئله**: غسل په خروج سره د مني بالاجماع واجب دی. لکن ابو حنیفه، امام محمد، امام مالک او امام احمد رحمهم الله وایي چي دفق او شهوت شرط دی په وخت کي د جلا والي د مني له ځیله ځایه څخه چي د نر ملا ده، او امام ابو یوسف رحمه الله وایي چي دفق او شهوت شرط دی په وخت کي د انفصال او خروج د مني دواړو.

**درویش وایي**: چي فائده ددې اختلاف داده چي که د سړي په وخت کي د انفصال المني دفق او شهوت و لکن سړي د ذکر سر ټینګ ونیوی چي د دفق او شهوت یې کرار سو، نو یې د ذکر سر ایله کړی او مني یې ووتل، نو د امام ابو یوسف رحمه الله په نېز غسل نسته باندي، ولي چي په وخت کي د خروج المني خو دفق او شهوت نه و. او په نېز د هغو نورو ائمه مذکورینو غسل باندي واجب دی، ولي چي په وخت کي د انفصال المني خو دفق او شهوت و، وهو شرط عندهم، او امام شافعي رحمه الله وایي چي خروج د مني موجب د غسل دی وان لم یقارن اللذة سواء کان الخروج بدفق اولاً، وتفصیل دلائل المذاهب المذکورة في کتب الفقة.

**درویش وایي**: چي ما چي د مخني تفسیر "عابري السبیل" ترجمه په مسافر سره وکړه، دا د علي رضي الله عنه قول دی. او ابن عباس، مجاهد، سعید بن جبیر، ابن مسعود، سید بن المسیب رضي الله عنه او ضحاک، حسن بصري، عکرمه او نور ګڼ شمېر تابعین رحمهم الله د "الا عابري السبیل" داسي تفسیر کړی دی "لاتقربوا الصلوة" ای مواضع الصلوة وهي المساجد بحذف المضاف جنباً الا عابري السبیل. راویان د احادیثو مبارکه وو وایي چي د بعضې انصارو د سرایو دروازې په مسجد نبوي راخلاصي وې، نو دوی ته چي به په کور کي جنابت وربېښ سو او اوبه به یې په کور کي نه درلودې چي غسل په وکړي، نو په طلب د اوبو به دوی په مسجد نبوي کي تېرېدل، نو دا آیت په شان کي د هغو کسانو دی. نو حاصل د آیت دادی چي بېله درنګه او مکث دې په مسجد کي تېر سي.

**درویش وایي**: چي پر هم دغه قول په اوسني زمانه کي قیاس دی حال د بعضې طالبانو چي د خوب ځای یې مسجد وي، او یا یې حجره د مسجد په پای کي وي او اوبه په خارج المسجد کي نو دوی ته روا ده تېردل په مسجد کي د غسل په

طلب پسي، اما په مسجد کي په درنګ نه کوي. وهذه فائدة نفسية.

## حَتّٰى تَغۡتَسِلُوۡا

تر هغو چي تاسي غسل کوئ.

**پوه سه**: چي "حتّٰى" غاية لپاره د نهي دی له لمانځه ځخه يعني پر ته له مسافر معذوره، ولي چي هغه ته تيمم روا دی د جنابت لپاره.

**پوښتنه**: څرنګه صحيح کيږي چي غسل دي غايت سي لپاره د نهي عدم القربان حالة الجنابة. ولي چي په غسل کي خو جنابت زائلېږي او غاية د شي خو بايد د هغه سره يو ځای کېږي؟

**ځواب**: غاية د شي چي حتّٰى دی دلالت پر کوي د اخير سره د جنابت يعني چي جنابت پای ته ورسېږي يو ځای کېږي کما في قولهم نمت البارحة حتى الصباح يعني جزء اخير د خوب خو د صباح سره يو ځای کېږي فكذا ههنا فتامل.

**مسئله**: جنب ته د بيت الله شريفي طواف نه دی روا لانه في المسجد. او نه هم جنب ته تلاوت د قرآن مجيد روا دی په نيز د جمهورو فقهاؤ. او امام مالک وايي چي لږ قرآن ويل لپاره د تعوذ لکه "قل اعوذ برب الناس الخ و ده ته روا دی، والحق عدم الجواز لان القرآن قليله وكثيره مساويان في الاحكام.

## وَاِنۡ كُنۡتُمۡ مَّرۡضٰۤى اَوۡ عَلٰى سَفَرٍ

**پوه سه**: چي دا آيت تفصيل دی د جنب د حال والمعنى ان كنتم جنباً مرضى او على سفر وحذف لفظ جنباً لان الكلام في الجنب.

**فائده**: قيد د مرضى او على سفر پر غالب عادت مبني دی. ولي تيمم چي روا کېږي غالباً په سبب د مرض او يا سفر مباح کېږي، نو غرض دادی چي دا قيد مفهوم مخالف نه لري. يعني چي جوړ سړي ته چي مسافر به هم وي تيمم نه دی روا. ولي د ابو ذر رضي الله عنه ځخه روايت دی چي زه په ربذه چي د يو ځای نوم دی د مديني منورې په اطرافو کي مقيم وم او ځو ورځي به اوبه د اودسه او غسل لپاره نه پيدا کېدې. او ګاهي به جنابت ماته راورسېدی. نو ما په دې باره کي د عليه

الصلوة والسلام څخه پوښتنه وکړه، نو علیه الصلوة والسلام وویل "التراب کافیک ولولم تجد الماء عشر حجج" خاوري یعني تیمم پر خاورو تالره کافي دي که څه هم تر لسو کالو پوري وي. وفي روایة الصعید الطیب وضوء المسلم لو الی عشر حجج. قال المظهري رحمه الله رواه اصحاب السنن وصححه ابو داؤد.

**فائده**: مرض درې قسمه دی. یو دادی چي که صاحب المرض اوبه استعمال کړي یا د اوداسه یا د غسل، نو غالباً به مړسي لکه د کوي شدید مرض چي پر سړي په لوی والي ښکاره سي. او یا لوی لوی دانې، او دویم دا قسم مرض دی چي د اوبو په استعمال سره خو نه مري لکن په استعمال سره د اوبو ډېر دردونه پر تېرېږي او مرض یې سختېږي او یا اوږدېږي، او دریم داسي مرض دی چي په استعمال سره د اوبو نه سړی مري او نه سخت دردونه پر تېرېږي لکن د ابو له استعمال څخه پر بدن بعضې نښانونه پاتېږي فقها. د احنافو په اول دوه قسم مرض کي تیمم روا بولي، او په دریم قسم کي روا نه بولي والعلم عندالله.

## اَوْ جَآءَ اَحَدٌ مِّنْكُمْ مِّنَ الْغَآئِطِ

او یا راسي یو ستاسي د بولو او یا نور چکر څخه.

**پوه سه**: چي غائط ګښته ځای ته وایي، نو راتګ له غائط څخه کنایه ده له بولو کولو یا نور چکر وهلو څخه. ولي چي غالباً سړی چي چکر وهي، نو د مځکي په یو ګښته ځای کي یې وهي.

**فائده**: له دې آیته دا معلومه سوه چي خارج عن السبیلین چي معتاد وي لکه بولي او چکر اودس په ماتېږي او پر دې دلالت نه کوي چي خارج عن السبیلین که غیر معتاد و، نو اودس په ماتېږي بدلیل حدیث عائشه رضي الله عنها چي علیه الصلوة والسلام وه فاطمې بنت ابی حبیش ته وویل چي هغې شکایت د استحاضې وعلیه الصلوة والسلام ته وکړی، نو علیه الصلوة والسلام داسي ورته وویل اغسلي منک الدم ویوضئ لکل صلوة، نو که غیر معتاد ناقص نه وایي، نو ولي علیه الصلوة والسلام فاطمه مذکوره امر کوله چي هر لمانځه ته اودس تازه کوه.

**فائده**: دا آیت ساکت دی له حکم څخه د خارج عن غیر السبیلین لکه قی او

وينه، نو په دې آيت سره دليل ويل د امام شافعي رحمه الله چي خارج عن غير السبيلين ناقض نه دی صحيح نه دی كما لا يخفى.

**پوه سه:** چي مذهب د امام اعظم رحمه الله دا دی چي خارج عن غير السبيلين ناقض دی په شرط د دې چي نجس وي، نو كه هر څو ډېره خوله د سړي له بدنه ووځي اودس يې نه په ماتېږي او داغه رنګه وينه چي د تپ تر خولې تېره نه سي يعني سېلان ونه كړي مرداره نه ده، او داغه رنګه لږ قی مردار نه دی په حكم كي د ناړو دی. بخلاف الكثير من الدم والقيئ لانه نجس بدليل انه لو القى الكثير من الدم او القيئ في الماء القليل ينجساه كما في كتب الفقه.

## أَوْ لَٰمَسْتُمُ النِّسَاءَ

او يا تاسي مسه كړئ ښځي.

**پوه سه:** لمس كنايه ده له جماعو څخه. والحاصل اذا اصابكم المرض او السفر او الحدث او الجنابة.

## فَلَمْ تَجِدُوا مَاءً

او تاسي اوبه نه كړئ پيدا.

**پوه سه:** چي مراد د عدم وجدان د اوبو عدم قدرت دی پر استعمال د اوبو، يعني يا ګرسره اوبه نه وي، او يا اوبه په څاه كي وي او سولاغه نه وي، او يا تناو نه وي، او يا پر اوبو باندي مار وي، يا درنده وي، يا دښمن وي.

**فائده:** مراد دلېري والي څخه د اوبو دادی چي يو ميل قدر لېري وي، او يا دا چي كه سړی ولاړ سي اودس تازه كوي قافله ځندي غائبېږي، او يا په اوسني زمانه كي موټران يې و اوداسه ته نه پرېږدي، موټر ځندي بيايي.

**درويش وايي:** چي داسي مانع د اوداسه دحج په وخت كي ډېر پېښېږي، په عربستان كي حاجيانو ته، او يا اوبه د سړي سره ورسره وي، لكن كه دی اودس په تازه كي، نو ورسته تنده ور پېښېږي، او يا په سبب د ډېر يخ ېږېږي، كه زه اودس تازه كړم مريض به سم، او يا مريض وي، او دا يې ګمان وي كه زه اودس تازه كړي، مرض به مي زيات سي، په حديث شريف كي راغلي دي د عمرو بن

العاص ﷺ څخه چې په غزا کې د ذات السلاسل زه شیطان خطاء. ایستم نو زه بیرېدم. له جهته د ډېر یخ که زه غسل وکړم مړ به سم، نو ما تیمم وواهه او اندېوالانو ته مې د جماعت لمونځ ورکړی. نو دا قصه یو چا و علیه الصلوة والسلام ته وکړه نو علیه الصلوة والسلام وویل "یاعمر اصلیت باصحابک وانت جنب"ما ورته وویل چې ما د خدای پاک دا ایت اورېدلی وو. "ولاتقتلوا انفسکم الایة" نو علیه الصلوة والسلام وخندل هېڅ یې نه راته وویل. اود مجاهد څخه روایت دی. چې دا آیت په باره کې د یو سړي د انصارو نازل سوی دی. چې مریض وو او دا طاقت یې نه درلودی چې ولاړ سي اودس تازه کړي او خادم یې هم نه درلودی.نو دا واقعه چې علیه الصلوة والسلام ته بیان سوه نو دا آیت نازل سو" وان کنتم مرضی"ترپایه پوري.

**درویش وایي**: چې تول مفسرین لکه مظهري او روح البیان او روح المعاني و غیرهما وایي په جواز کې د تیمم و سړي ته "عدو مسلط علی الماء" هم کافي دی.

**درویش وایي**: چې ددې عبارت فائده داده چې په افغانستان کې تر اوسه سنه ۱۴۲۸ هـ ۲۸ کاله میدان جنگ دی د مشرانو ترمنځ او یا د خلقیانو او روسانو او د مجاهدینو تر منځ او یا د امریکایانو او طالبانو تر منځ. نو گاهي ډېر پېښېږي چې مجاهدین یا طالبان په دښت کې وي که څه هم اوبه نژدې وي لکن پر اوبو جانب مقابل مسلط وي، نو دې مجاهدو او طالبانو ته په تیمم سره لمونځ روا دی. وهذا فائدة مهمة سنیة".

**فَتَيَمَّمُوا**

اي قصدو" په قاموس کې وایي توخي یعنې طلب او تعمد یعنې قصد ته وایي، نو له دې سببه چې په مفهوم لغوي کې د تیمم قصد ماخوذ دی. امام اعظم ابو حنیفه رحمه الله وایي چې په تیمم کې نیت شرط دی بخلاف الوضوء والغسل یعنې که یو څوک لپاره د تبرد اودس تازه کړي او یا غسل وکړي لمونځ په روا دی، او امام زفر رحمه الله وایي چې په تیمم کې هم نیت نه دی شرط والحجة علیه هذه الآیة. او امام شافعي. امام مالک او امام احمد رحمهم الله وایي چې په اوداسه او غسل کې هم نیت شرط دی والمسئلة مبسوطة في کتب الفقة.

## صَعِيۡدًا

**پوه سه:** چي صعید مخته د مځکي وايي که خاوري وي او که رېګ وي او که ګچ وي او که ډبره وي. زجاج لغوي رحمه الله وايي لا اعلم خلافاً لاهل اللغة في ذالک حتى که پر مخ د مځکي ښويه ډبره وي که څه هم پر هغې هيڅ خاوره يا ګرځ نه وي بيا هم تيمم پاندي روا دی وهو مذهب ابو حنيفه رحمه الله. بغوي وايي چي ابن عباس رضي الله عنه وايي چي صعيد يوازي خوارو ته وايي.

## طَيِّبًا

يعني پاکه مځکه، حتى که يو مخ د مځکي سړي ته معلوم وچي مردار دی پر هغه مځکه تيمم نه دی روا. او بعض اهل مذهب وايي چي د طيب معنى منبت ده يعني چي شی شين کوي، نو پر ترخه يا توروه مځکه تيمم روا نه بولي. والتفصيل في کتب الفقهاء رحمهم الله ولا نشتغل بالنقض والابرام في هذا التفسير الوجيز لانه خلاف موضوع هذا التفسير وهو انه تفسير لعموم قوم الافاغنة.

## فَامۡسَحُوۡا بِوُجُوۡهِكُمۡ

**پوه سه:** چي کلمه د "باء" زائده ده فالمعنى "وامسحوا وجوهكم" نو استعاب د ټوله مخ په مسح کي د تيمم فرض دی اجماعاً لکه په اودانسه کي د اوبو چي فرض دی.

## وَاَيۡدِيۡكُمۡ

**پوه سه:** چي "يد" نوم دی د لاس تر اوږو پوري ځکه چي د زهري رحمه الله څخه روايت دی چي په تيمم کي د لاس مسحه تر اوږو او تخرګو پوري فرض ده، او اصحاب کرامو رضي الله عنهم مسحه د لاسو تر اوږو او تخرګو پوري کوله لکن دمخه تر تعليم د رسول الله ﷺ چي مسحه د لاس په تيمم کي تر مرفقينو پوري فرض ده وذالک ان التيمم في الوجه واليدين عوض عن الوضوء، فيهما فغاية الوضوء، يعني المرفقين غاية لمسح التيمم ايضاً. او په حديث کي د عمار بن ياسر رضي الله عنه چي بزار روايت کړی دی "کنت في القوم حين نزلت آية التيمم فامرنا رسول الله ﷺ فضربنا واحدة للوجه ثم ضربة اخرى لليدين الى المرفقين رواه البخاري

ایضاً" او په بل حدیث کې چې روایت یې حاکم رحمه الله کړی دی له جابر رضی الله عنه څخه چې یو سړی و علیه الصلوة والسلام ته راغلی چې ماته جنابت ورسېدی په سفر کې چې اوبه نه وې، نو ما کالي وکښل او په خاورو کې ولغښتم یعنې قیاساً منه للتیمم علی الغسل بالماء. نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل التیمم ضربة للوجه وضربة للیدین الی المرفقین.

**مسئله:** امام اعظم رحمه الله وایي چې تیمم د داسې لمانځه لپاره هم روا دی چې هغه عوض نه لري یعنې که څه هم اوبه موجودې وي. لکه د اختر لمونځ که ابتداءً وي او که بناءً وي یا د جنازې لمونځ وغیره ته د ولي. په دې توګه چې ولي د جنازې خو لمونځ ځنډوالی سي تر اودس تازه کېدو پورې او بل څوک خو یې نه سي ځنډوالی. او د وختي لمانځه د قضاکېدو لپاره او یا د جمعې د لمانځه د فوت لپاره تیمم نه دی روا. ولې چې دا دوه لمونځونه خو خلف او عوض لري چې قضایي لمونځ دی د وختي لمانځه لپاره او ماپښین لمونځ دی د جمعې لپاره.

**مسئله:** که مسافر تیمم وواهه په سبب د اوبو د نیستې والي او لمونځ یې وکړی وروسته وخت هم باقي و چې اوبه یې پیدا کړې. نو اعاده د لمانځه نسته باندې عند الحنیفیة رحمهم الله په دلیل د هغه حدیث چې ابو سعید الخدري رضی الله عنه یې روایت کړی دی چې دوه کسان د اصحابو کرامو رضی الله عنهم څخه په سفر کې، نو د لمانځه وخت ورسېدی او د دوی سره اوبه نه وې نو دواړو تیمم پر صعید طیب باندې وواهه او لمونځونه یې وکړه وروسته وخت د لمانځه باقي و چې دوی اوبه پیدا کړې نو یوه صحابي اودس تازه کړی او لمونځ یې راوګرځاوه، او هغه بل لمونځ نه راوګرځاوه. نو وروسته تر سفر علیه الصلوة والسلام ته راغله او دا موضوع یې ورته بیان کړه، نو علیه الصلوة والسلام و هغه سړي ته چې لمونځ یې نه و راګرځولی داسې وویل "اصبت السنة. واجزئتک صلوتک" یعنې طریقه مسنونه داغه ده او ستا کړی لمونځ ستا کافي دی. او هغه بل ته چې لمونځ یې راګرځولی و داسې وویل لک الاجر مرتین. تاته خدای جل جلاله دوه ثوابونه درکوي. رواه النسائي وابو دوٗد والحاکم.

**فائده:** د فقهي شريفې په ټولو کتابو کې وايي چې هر شي چې ماتونکي د اوداسه دی. لکه بولي مثلاً هغه شي ماتونکي د تيمم هم دی. لکن ماتونکي د تيمم يو شي پر بالا دی يعنې وجدان الماء. يعنې چې اوبه پيدا سوې تيمم خپله مات سو. حاصل ددې فائدې دا دی لکه سړی چې اودس تازه کړي په هغه اوداسه هر څو لمونځونه که فرض وي که سنت وي او که نفل وي کولای سي تر څو چې اودس يې ماتېږي. داغه رنګه په تيمم سره هم مذکوره لمونځونه کولای سي تر څو چې اودس يې ماتېږي او يا اوبه پيدا کېږي. او امام شافعي رحمه الله تيمم طهارت ضروري بولي نو هر لمانځه ته به تيمم وهي. زموږ دليل هغه حديث نبوي دی "الصعيد الطيب وضوء المسلم وان لم يجد الماء عشر سنين فاذا وجد الماء فليمس بشرته فان ذالک خير رواه اصحاب السنن الاربعة من حديث ابي ذر او ترمذي ويلي دي چې دا صحيح حديث دی.

## إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَفُوًّا غَفُورًا ۝

په تحقيق خدای جل جلاله عفوه کونکي چې ستاسي د اسانی لپاره يې تيمم درته روا کړی دی. او بخښونکي دی چې سره له جنابته يې لمونځ درته روا کړی دی يعنې عند عدم الماء او الاعذار المذکورة کمامرت فتذکر.

**درويش وايي:** چې ابن اسحاق له عبدالله بن عباس رضي الله عنه څخه داسي روايت کړی دی چې رفاعة بن زيد بن تابوت چې د يهودانو له مشرانو څخه وچې د عليه الصلوة والسلام سره به يې خبري کولې ژبه به يې يوې او بلې خوا ته پېچلې مثلاً په ځای کې د السلام عليکم کې به يې السام عليکم يعنې غم دي نازل وي پر تاسي باندې. او دا به يې هم و عليه الصلوة والسلام ته ويل چې هغه به خبري کولې "راعنا" چې دا کلمه په ژبه کې ددوی پوچ بښکنځل دي کما سيجيئ في تفسير فنزلت هذه الآيات.

## أَلَمْ تَرَ

آيا ته نه ګورې.

**پوه سه:** چې خطاب په "الم تر" وغيره و معين ته دی يعنې خاص و عليه

الصلوة والسلام ته. په قرینه ددې چې وروسته صیغه د جمعې رازي لکه "تضلوا اعدائکم"

**إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيبًا مِّنَ الْكِتَٰبِ**

چې ودوی ته یې ورکړه یوه برخه د کتاب یعنې تورات چې مراد ځنې یهودان د مدینې دي.

**یوه سه:** چې نکره راوړل د "نصيباً" لپاره د تحقير ده يعنې "نصيباً" حقيراً ذالک النصيب الحقير محض القرائة باللسان دی بېله ایمانه بما فیه والا لما کتموا نعوته ﷺ.

**يَشْتَرُونَ الضَّلَٰلَةَ**

**یوه سه:** چې "اشتروا" دلته پر حقيقي معنا نه دی بلکې په معنا د استبدال ده، او مراد له ضلالت څخه کفر دی په علیه الصلوة والسلام سره، اوسره ددې چې دوی په شان کې د نبي اخير زمان محمد ﷺ پر بنه هدایت او ایمان وه په باره کې د علیه الصلوة والسلام لکن د مبعث د علیه الصلوة والسلام بدلیل قوله تعالی وکانوا یستفتحون علی الذین کفروا" یعنې دوی به پر مشرکانو طلب د فتح کاوه په برکت د نبي ﷺ لکن چې علیه الصلوة والسلام مبعوث سو او مدینې منورې ته راغلی او دوی هم وپېژندی چې هم دغه محمد ﷺ هغه نبي موعود في التوارة دی او علماء ددوی پر خپل ریاست پر عوامو وېرېدل. نو هغه هدایت سابقه یې په ضلالت او انکار له نبوت څخه د علیه الصلوة والسلام رد کړی. لکه په بل ځای کې چې خدای ﷻ وایي "فلما جاء ما عرفوا کفروا به، فلعنة الله علی الکافرین"

**یوه سه:** چې جمله د "یشترون" جمله استینافیه ده په استیناف بیاني. جواب ده د سوال مقدر ده ګویا سائل وویل چې دوی څه کوي چې زه مخاطب سوم په الم تر سره فاجیب بانهم یشترون الضلالة بالهدی وکلمة با داخلة علی المتروک.

**یوه سه:** بعض اهل التفسیر وایي چې دا رؤیت علمي دی ولې چې استبدال د ضلال خو په سترګو نه لیدل کېږي لکن صاحب د روح البیان وایي چې دا رؤیت بصري دی ولې چې دا شنائع په یهودانو کې له جهته د غایة الشهرة لکه

محسوس بالبصر گرځېدلی دی.

## وَيُرِيدُونَ أَنْ تَضِلُّوا السَّبِيلَ ﴿٤٤﴾

یعنې دوی سره د خپله ضلال کوشش کوي چې تاسي هم گمراهان کړي او له حقې لارې مو په مشکوکو او شبهاتو واړوي، والمقصود من هذه الآية تحذير المؤمنين من هؤلاء اليهود وعدم استماع كلامهم والمجانبة منهم، نو دوی د انسانانو شیطانان دي كما قال في سورة الاستعاذة الثانية من الجنة والناس.

## وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِأَعْدَائِكُمْ

**پوه سه:** چې صیغه د تفضیل یعنې چې خدای ﷻ ښه خبر دی په دښمنانو ستاسي ددې لپاره ده چې که تاسي بعض دښمنان پېژنئ اما خدای ﷻ ستاسي ټوله دښمنان پېژني یا د دښمنانو پر دښمني که علم اجمالي لرئ خدای ﷻ علم تفصیلي پر لري، نو دا جمله تاکید ده د تحذیر د مسلمانانو له یهودانو څخه لکه د مخنی جملې څخه چې مراد و.

## وَكَفَىٰ بِاللَّهِ وَلِيًّا وَكَفَىٰ بِاللَّهِ نَصِيرًا ﴿٤٥﴾

او کافي دی خدای ﷻ تاسي لره په دوستۍ او نفع رسولو کې، او کافي دی ستاسي کومکي په دفع کې د شر د اعداؤ ستاسي او په کومک درکولو کې پر دښمنانو یعنې که دغه یهود وي او که نور وي.

**پوه سه:** چې کلمه د باء زائده ده پر فاعل د "کفی" په دواړه ځایو کې.

**سوال:** فائدة د زیادت له باب څخه وه؟

**ځواب:** فائده یې تاکید دی د اتصال اسنادي په منځ کې د فعل او فاعل، ولې چې کلمه د باء لپاره د الصاق ده كما قال النحاة، نو حاصل د آیت دادی چې چونکه خدای ﷻ کافي او ناصر دی د مؤمنو بندگانو لپاره، باید مؤمنان هم پر خدای ﷻ توکل وکړي او له دښمن څخه ونه بېرېږي.

**پوه سه:** چې د بعضو کسانو بلکې د بعض ملایانو تر خالق پر مخلوق تکیه ډېره وي او شپه و ورځ یې بغل خولی د فقر او سوال وغاره ته اچولې وي پر

مخلوق طوافونه کوي.

**فائده:** هره نشه او سکر خلګ پرېښولای سي مثلاً نسوار، چیلم، چرس بلکې هېروئن چي د منشیاتو لوړ دي تجربې ثابته کړې ده چي ددغو شیانو عادي خلګو توبې کښلي دي او پر هغو توبو قائم پاته سوي دي، مګر نشه د فقر او سوال چي له هغې څخه هیڅ څوک توبه نه سي کښلای بلکې سره لبه دې چي دی غني وي. نو د خلګو پر کورو د روژې په میاشت کي ګرځي شپه او ورځ زکاتونه څني غواړي او په دې هم خبر وي چي زکات وغني ته حرام دی. او اضحیه او سرسایه پر واجبه وي او نه يې کوي له دې سببه چي د خلګو د غني خیال را باندي را نه سي بیا به زکات نه راکوي بلکې زائد تر مسکن او تر اثاث البیت او تر نفقې د عیال دونده روپی لري چي خلګو ته يې په ګټه یا په سود یا ګروی ورکړي وي چي پر ده حج فرض وي او په خیال کي يې حج نه وي، ولي چي که دی حج ته ولاړ سي د فقر او سوال دروازه پر بندېږي، دا هغه فقیر دی چي په شان کي دداسي کسانو خیر البشر ﷺ داسي ویلي دي چي بعض مؤمنان به د قیامت په ورځ داسي حشر سي چي مخ به يې خالص هډوکي وي یوه ټوټه د غوښو به هم نه وي باندي چي محشر والا به يې تو له په دغه نښاني پېژني چي بې ضرورته سوال ګر و. حتی چي داسي کسان د فقر په نشه اخته دي چي هینو ګاډیانې يې پر لین باندي چلېږي او دی په بازار کي ګرځي فقر او سوال کوي.

## مِنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا يُحَرِّفُوْنَ الْكَلِمَ عَنْ مَّوَاضِعِهٖ

**یوه سه:** چي دا آیت متصل دی په ماقبل پوري او بیان دی د "للذین اوتوا الکتاب نصیباً آه" او د اعراب له لاري خبر دی د مبتدا، محذوفي والتقدیر من الذین هادوا قوم یحرفون.

**بوه سه:** چي بعض علماء وایي چي "کلم" جمع د "کلمة" ده.

**سوال:** که "کلم" جمع وای، نو په دې آیت کي ولي ضمیر د مفرد په مواضعه ورته راجع کېدی؟

**ځواب:** ضمیر د مفرد راجع دی ومضاف محذوف ته، والتقدیر یحرفون بعض

الکلم. واختار الجامي في شرح الکافیة انه اسم جنس واختار العلامة التفتازاني کونه اسم جنس، او د دواړو قولو تر منځ یې داسې محاکمه کړې ده چې هغه کسان چې نفې د جمعیت کوي مراد یې دادی چې جمع صیغةً ده، او هغه څوک چې جمع یې بولي جمع معنوي یې بولي، ولې چې د اسم جنس اطلاق په یوه او ډېرو کېږي، ومعنی الآیة اوله هغو کسانو څخه چې یهودان دي هغه کسان دي چې تغیر او تبدیل یې کړه هغه کلمات چې په تورات کې دوی ته خدای ﷻ رالېږلي وه له خپلو ځایو څخه والمراد نعوته ﷺ المذکورة في التوراة، بیهقي له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت کړی دی چې په تورات کې خدای ﷻ داسې فرمایلي وه چې ترجمه یې دا ده چې نبي ﷺ به اکحل العین وي یعنې سترګې به یې توري وي "اربعة" میانه قد سړی به وي "جعد الشعر" به وي یعنې وېښتان د سر او ږیرې به یې لږ څه پېچلي وي یعنې داسې پېچلي به نه وي لکه د حبشیانو وېښتان او داسې ایله به هم نه وي لکه د رومیانو وېښتان "حسن الوجه" به ښائسته نوراني مخ به یې وي، نو څرنګه چې علیه الصلوة والسلام مدینې منورې ته راغلی او هغه اوصاف مذکوره ټوله پکښې موجود وه، نو د یهودو د علماؤ حسد ورسره پیدا سو او پر خپل جاه وجلال او ریاست وېرېدل، نو نعوت د علیه الصلوة والسلام یې داسې په تورات کې نوشته کړه چې نبي آخیر الزمان چې نبي امي هم دی طوال ډېر جګ سړی به وي ازرق سترګې به یې شینې وي سبط الشعر وېښتان به یې لکه د رومیانو کټ نه لري، نو ملایانو به امیانو ته ویل چې دا سړی نبي اخیر زمان نه دی، له دې بېرې چې خلګ ایمان نه پر راوړي نو زموږ ماده د رزق به قطع سي.

**فائده**: بعض سر سخت ملایانو د یهودانو خو داسې کوله لکه ذکر چې سوله، او بعض میانه روه ملایانو لکه معتزله، شیعه، وهابیه او نور د قرآن مجید د آیتو ترجمه و عوامو ته د خپلو عقائدو زائغه وو سره برابر ورته کوي د عوامو دا خیال سي چې چونکه قرآن مجید د ملا صاحب ومخ ته پروت دی، نو د قرآن دا غه معنا ده لکه دی چې وایې فضلوا واضلوا او دا سلسله اوس هم جاري ده وهابیان،

سلفیان، اهل ظاهر الحدیث او په نامه موحدین هم ورته ترجمې د قرآن عزیز کوي.

**درویش وايي:** چې حل او فصل ددې اختلافاتو به په ورځ د قیامت کېږي.

## وَيَقُولُونَ سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا

او دغه یهودان و نبي علیه السلام ته وايي مونږ ستا خبرې یعنې تبلیغ د دین د اسلام واورېدی لکن په خوله دې نه کوو.

**پوه سه:** چې دا جمله معطوف ده پر هغه جمله "ویحرفون آه" لکن دا خبره ددوی تحریف نه دی، که مراد له تحریف څخه ما في التوراة وي، نو دا خبره خو د تورات نه ده چې دوی به تحریف کاوه.

**پوه سه:** چې که ددې خبرې کونکي سرسخته مجاهر یهودان وي، نو معنا د آیت یا داده چې دوی به مخامخ و علیه الصلوة والسلام ته ویل چې مونږ ستا خبرې خو واورېدلې لکن مونږ عمل نه په کوو، یعنون پر تا ایمان نه راوړو، او یا معنا د آیت داده چې دوی به نورو مجاهرینو یهودانو ته ویل چې مونږ د محمد ﷺ خبرې وارېدلې لکن قناعت او تصدیق مو نه دی پر کړی، نو ګویا دا خبره ددوی لپاره د دفع د توهم ده نورو مجاهرینو وکړه، او بعض مفسران وايي چې دا قول د منافقانو یهودانو و، نو پر دې تقدیر "سمعنا" یې و علیه الصلوة والسلام ته په حضور کې ویل او "عصینا" یې ومجاهرینو ته ویل کما في سورة البقرة "ومن الناس من یقول آمنا بالله آه" الی ان قال "واذا رجعوا الی شیاطینهم قالوا انا معکم اٰیة"

## وَاسْمَعْ غَيْرَ مُسْمَعٍ

بعض مفسرین وايي چې د "واسمع" کلمه دوی مخامخ و علیه الصلوة والسلام ته ویله او په زړه کې به یې ویل غیر مسمع، نو دا ښېرا ده و علیه الصلوة والسلام ته معنا یې داده چې یا کوڼ سې او یا مړ سې، او محققین د مفسرانو وايي چې دواړې کلمې یې مخامخ ورته ویلې، ولې چې غیر مسمع دوه احتماله لري یو چې تېر سو دا خو د دوی په زړه کې مراد و، بل احتمال دادی چې "غیر مسمع مکروهاً من القول" دا خو بیا دعاء ده، نو د علیه الصلوة والسلام په خیال به یې معنا ثاني ورکړه لعنهم الله تعالی.

## وَّرَاعِنَا

**پوه سه:** چې په صحیح حدیث کې راغلي دي چې علیه الصلوة والسلام به وعظ او تبلیغ او خبرې چابک چابک کولې، نو اصحابو کرامو ﷺ به ورته ویل راعنا یعني زموږ د حال مراعات کوه چې موږ دې په خبره پوه سو، نو دا لفظ چې یهودانو واورېدی غنیمت یې وباله، او په خپلو کې یې سره وویل چې پخوا به موږ ده ته په پټه سره ښکنځل کول اوس به یې مخامخ ورته کوو، ولې چې راعنا په سریاني یا عبراني ژبه کې ښکنځل دي، والمعنی یا احمق في هذا نزلت آیة سورة البقرة "یا ایها الذین آمنوا لاتقولوا راعنا وقولوا انظرنا ﷺ" نو دلته هم یهودانو د عصر نبوي لعنهم الله جمیعاً دا لفظ د والمتعنین په مخاطبه کې د علیه الصلوة والسلام استعمالوی سخریةً بدین الاسلام واستهزاء بالرسول ﷺ.

## لَيًّا بِأَلْسِنَتِهِمْ

**پوه سه:** چې "لیاً" مفعول له دی لقوله "یقولون" والمعنی دوی به پېچلې خپلې ژبې او بدلاوه به یې حق چې تعظیم دی په باطل سره چې ښکنځل دي یعني التوقیر في الظاهر بالشتم المضمر.

## وَطَعْنًا فِي الدِّينِ

او د طعن په دین کې او عیب پر علیه الصلوة والسلام ویل، ولې چې دوی به په خپلو کې سره ویل که محمد ﷺ نبي بر حق وای، نو ده ته به زموږ د زړونو حال معلوم وای یعني چې موږ ښکنځل ورته کوو او پسخند په وهو.

## وَلَوْ أَنَّهُمْ قَالُوا سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا وَاسْمَعْ وَانْظُرْنَا لَكَانَ خَيْرًا لَهُمْ وَأَقْوَمَ

او که دوی په پټه او په ظاهره سمعنا واطعنا په عوض کې ددې قول د دوی سمعنا وعصینا او دوی صرف واسمع لفظ ویلای یعني بېله غیر مسمع او دوی ویلای کلمه د وانظرنا چې معنا یې انتظرلنا وه په ځای کې د راعنا دا بدلول به ددوی لپاره فائده وایې او حقه خبره به وای، ولې چې احتمال د استهزاء او د ښکنځلو به نه وای.

وَلَٰكِن لَّعَنَهُمُ ٱللَّهُ بِكُفْرِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُونَ إِلَّا قَلِيلًا ﴿٤٦﴾

لکن دغه یهودان خدای ﷻ له خپل رحمت عامه څخه لیرې کړي دي، په سبب د کفر ددوی په دین اسلام او په علیه الصلوة والسلام سره، نو دوی ایمان نه راوړي مگر نه لږ ددوی.

**پوه سه:** چي قليلاً منصوب دی علی کونه مفعول مطلق ليؤمنون ای ايماناً قليلاً چي هيڅ اعتبار نه لري چي هغه ايمان دي په بعض رسولانو چي موسی علیه السلام دی فقط او ايمان دی په بعض کتابو سره چي تورات دی فقط او يا ايمان في الظاهر او انکار في الباطن کما في المنافقين منهم.

امام مظهري رحمه الله وايي چي ابن اسحاق له ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت کړی دی چي علیه الصلوة والسلام د بعضو ملايانو سره د يهودانو چي يو په هغو کي عبدالله بن سوريا و او بل کعب بن اسيد و، نو ورته وه يې ويل "يا معشر اليهود اتقوا الله" اې ډلې د يهودانو له خدای ﷻ څخه وبېرېږئ يعني ايمان راوړئ قسم په خدای ﷻ دی چي تاسي پوهېږئ چي دغه دين چي ما راتګ په کړی دی حق دی، دوی په ځواب کي ورته وويل چي موږ ستا د دين په حقيقت نه پوهېږو او پر خپل يهوديت او کفر يې انکار وکړی، نو خدای ﷻ دا آيت نازل کړی.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْكِتَٰبَ ءَامِنُوا۟ بِمَا نَزَّلْنَا مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَكُم

اې هغه کسانو چي ورکړه سوې دی کتاب يعني تورات، ايمان راوړئ پر هغه کتاب چي ما نازل کړی يعني القرآن علی محمد ﷺ. او حال دا دی چي دغه ما نزلنا يعني القرآن تصديق کونکی دی د هغه کتاب چي ستاسي سره دی يعني التوراة.

**پوه سه:** چي موافقت د قرآن کريم د تورات سره يا دا معنا ده چي قرآن کريم پر داسي چا نازل دی چي نعوت د هغه ستاسي په کتاب تورات کي موجود دي، او يا دا معنا چي په تاريخي قصو کي د تورات سره موافق دی مع کونه نازلاً علی النبي الامي ﷺ او يا په دعوت کي و توحيد ته او عدل بين الناس او نهي له معاصيو څخه لکه زنی، لواطت، قتل بغير حق وغير ذالک.

مِّنْ قَبْلِ اَنْ نَّطْمِسَ وُجُوْهًا

**پوه سه**: چي تنوین د "وجوهاً" عوض دی له مضاف الیه څخه ای وجوهکم، والطمس في اللغة ازالة اثر الشيء. او دلته مراد محو کول دي د اثارو د مخانو ددوی لکه خوله، پزه، سترګي، وروځي وغیره.

فَنَرُدَّهَا عَلٰٓى اَدْبَارِهَآ

او مونږ به وګرځوو مخان ددوی لکه شاتې یعني لکه په شاتې کي چي نه خوله سته او نه پزه وغیره مخان ددوی هم لکه شاتان ددوی ګرځوو، ابن عباس ﷺ وایي نجعلها کخف البعیر، یعني مخان ددوی به داسي وي لکه د اوښ څپېر، او قتاده ﷫ وایي چي مراد له وجه څخه سترګي دي یعني په سترګو به یې ړند و.

**پوښتنه**: خدای ﷻ خو ددغو یهودانو سره که دوی ایمان رانه وړي نو مخان به یې لکه شاتې وګرځي او سره ددوی چي دوی خو ایمان نه راوړی او مخان یې لکه شاتې داسي نه وګرځېدل؟

**ځواب**: بعض علماء وایي چي دا مسخه په یهودانو کي راتلونکې ده د مخه تر قیام د قیامت، او بعض وایي چي دا طمس مشروط په دې سره و چي هیڅ څوک له یهودانو څخه ایمان نه راوړي، نو چي عبدالله بن سلام او دده ملګرو ﷺ ایمان راوړی، نو دا وعید له نورو یهودانو څخه پورته سو، او بعض مفسران وایي چي په دې آیت خدای ﷻ د "وجوه علی الادبار" او د "لعن" تر منځ په منفصله قضیه مانعة الخلو راوړې ده، او لعنت خو پر دوی ثابت و نو وعید الهي صحیح او پر ځای سو، او امام مظهري ﷫ یو ځواب په داسي الفاظو سره ذکر کړی دی، والصحیح عندي الخ لکن درویش وایي چي زه خو نه په پوهېږم والله اعلم بمراد عباده، او امام مظهري پخپل تفسیر کي راوړي دي او هیڅ حواله یې د یو کتاب ته د حدیثو نه ده کړې او سند یې هم نه دی ذکر کړی لکه دده چي عادت و چي یا به یې حواله وکتاب ته د حدیثو کوله او یا به یې سند ذکر کاوه، دلته یې داسي ویلي دي د عبدالله بن سلام ﷺ د ایمان راوړلو په باره کي چي

عبدالله بن سلام ﷺ چي دا آيت واورېدی. نو د مخه تر دې چې کور ته ولاړ سي لاسونه يې پر مخ نيولي وه او عليه الصلوة والسلام ته راغلی او ايمان يې راوړی او عليه الصلوة والسلام ته يې وويل چې زما دا خيال نه و چې زه به تر تاپوري راورسېږم حتی چې زما مخ به څټ وگرځي انتهی.

**درويش وايي**: چې دا روايت په اسلام کي د عبدالله بن سلام ﷺ د ټولو کتابو د صحاح سته وو مخالف دی. په ډېر طويل حديث کي د بخاري راغلي دي چې حاصل يې دادی چې عبدالله بن سلام ﷺ وويل چې زه خپل د خورما په باغ کي وم چې خبره دعربو د نبي يعني عليه الصلوة والسلام مي واورېدل نو چابک مي خورما سره ټوله کړه راغلم، نو د عليه الصلوة والسلام نوراني مخ چې مي وليدی له ځان سره مي داسي وويل ما هذا الوجه وجه كذاب، او بيا راغلم و عليه الصلوة والسلام ته مي وويل چې زه درې پوښتني ستا څخه کوم چې بېله نبي بل څوک نه دي په خبر (١) ما اول طعام اهل الجنة (٢) وما اول اشراط الساعة (٣) ولي گاهي اولاد د يوې مور او پلار بعض په رنگ پلار او اکاگانو ته کېږي، او بعض عيالونه مور او ماماگانو ته کېږي، عليه الصلوة والسلام چې دا درې سره ځوابونه ورکړه چې تفصيل د ځوابو يې په بخاري وغيره کي دی، نو عبدالله بن سلام ﷺ اسلام راوړی، وروسته حديث نور پسې طويل دی.

**درويش وايي**: چې زه دا نه وايم چې مظهري رحمه الله ته دا حديث طويل د بخاري نه و معلوم، ولې چې امام مظهري لوی محدث دی لکن زه دا وايم چې ولي امام مظهري دغه موضوعي لنډ حديث په اسلام کي د عبدالله بن سلام ﷺ په تفسير کي درج کړی دی او هغه صحيح طويل حديث يې صرف نظر گرځولی دی. آيا امام مظهري به تطبيق ددغه لنډ حديث چې ده دلته راوړی دی د هغه حديث صحيح طويل سره وکړای سي که څرنگه، هذا ما عندي والله اعلم بالصواب في هذا الباب.

**فائده**: يوه سه چې مسخ جزوي په امت مرحومه کي واقع سوې ده (١) د ابي علقمه رحمه الله روايت دی چې زه په يوه قافله کي شامل وم، نو قافلې والو يو سړی آمر گرځولی و چې د هغه په امر به يې يو ځای اړول او دهغه په امر به يې کوچ

کاوه، نو یو ځای مونږ واږول. خو دا زمونږ امر و حضرت ابوبکر رضی الله عنه او حضرت عمر رضی الله عنه ته ډیر ښکنځل کول مونږ ډیر منع کړی لکن زمونږ په خوله یې عمل نه کاوه. نو مونږ ډیر غمجن سوو. نو یو د شپه مونږ یو ځای ارولی وه چي سهار سو لمونځونه مو وکړه هر سړي پر خپل راحله باندي بار باندي کړی مونږ منتظر وو چي اوس به آمر اعلان وکړي. خو اعلان تر وخت وځنډېدی، نو مونږ ورغلو چي په آمر څه سوي دي. نو مونږ چي ورغلو دی چار زانو ناست و او پښې یې په پټو پټي کړي دي مونږ چي پټو ځني پورته کړی. گه گورو چي پښې یې د سرکوزي وي. نو مونږ یې راحله ورسمه کړه او دی مو پر سپور کړی. نو دی له اوښه راوغورځېدی درې واره یې د سرکوزي ناري ووهلې او سر تر پایه سرکوزی وگرځېدی. او میدان یې کړه دښت ته وختی. کذا في روضة العلماء.

(۲) شیخ دهلوي رحمه الله په شرح کي د مشکوٰة راوړي دي چي یو محدث عالم ته په یو صحیح حدیث کي د علیه الصلوٰة والسلام "کیف لا یخاف من وضع راسه یعني في السجدة قبل الامام او رفعه قبله ان یجعل راسه حمار" شک پیدا سوی وچي څرنگه به یې سره د خره گرځي. نو په قصده یې بل سړی یعني شاگرد د مخه کړی او دي محدث به قصداً وضع او رفعه تر امام د مخه کوله چي لمونځ یې وکړی په اندازه کي یې وکتل مخ او سره یې د خره و چابک یې مخ پټ کړی کورته ولاړی. وروسته به یې لمونځ او درس په حجاب کي کاوه هیڅ طالب ته یې مخ نه ورښکاره کاوه. لکن څه وخت چي به یو طالب د حدیثو کتابونه خلاص کړه او له ده څخه به یې اجازه او رخصت غوښتی. نو دي استاذ به هغه فارغ شده طالب وخپل خلوت ته ور وغوښتی او مخ به یې ورښکاره کړی. او دا به یې ورته وویل چي ورورهٔ ډیر فهم کوه چي په احادیثو نبویه وو کي شک په زړه کي درونه گرځوي او خپل قصه به یې تول ورته وکړه.

أَوْ نَلْعَنَهُمْ كَمَا لَعَنَّا أَصْحَابَ السَّبْتِ وَكَانَ أَمْرُ اللَّهِ مَفْعُولًا ﴿٤٧﴾

او یا به مونږ لعنت وکړو پر دوی لکه چي مونږ لعنت کړی و پر اصحابو د شنبې د ورځي، یعني اليهود الذين منعوا من صيد السمك يوم السبت. نو دوی هغه

بدکار نه پرېښوي، نو موږ پر هغو لعنت نازل کړی چي سرکوزان او بېزو ګان سوه په زمانه کي د داوُد علیه السلام.

**درويش وايي**: چي تفصيل د لعنت د يوم السبت موږ په پوره ډول راوړی دی د سورة بقره ددې آيت په تفسير کي "ولقد علمتم الذين اعتدوا منكم في السبت فقلنا لهم كونوا قردةً خاسئين" نو ددې تفسير ايوبي د مذكوره آيت وتفسير ته رجوع وکړئ فلاحاجة الى الاعادة.

او دی امر د خدای ﷻ نافذ او کېدونکی چي څوک يې مانع او ردونکی نه سي کېدای.

**درويش وايي**: چي لعنت پر اصحاب السبت باندي يوازي پر ژبه د داوُد علیه السلام و، نو مظهري چي عيسی بن مريم هم ورسره راوړی دی ليس كما ينبغي لان لعنت اصحاب السبت ليست في زمن عيسٰی علیه السلام بل هو محصور على زمن داوُد علیه السلام واللعنة على لسان عيسٰی علیه السلام لعنة اخرٰی فتامل.

**درويش وايي** چي عدم مراعات د اوامرو د خدای ﷻ او اجتناب له هغو کارو څخه چي خدای ﷻ معصيت بللی وي سبب د غضب الهي ګرځي او د عذاب الهي په دنيا کي كما في اصحاب السبت وغيرهم.

له ابن احمد المؤذن څخه روايت دی چي ما طواف کاوه د بيت الله شريفې يو سړی مي وليدی چي د کعبې شريفې پوښ يې ټينګ نيولی و، او دا يې ويله اللهم اخرجني من الدنيا مسلماً او دغه دعاء يې مکرره ويله بل يې هيڅ دعاء نه کوله. نو ما ورته وويل چي ته ولي دغه يوه دعاء ټينګه کړې ده، نوري دېري دعاګانې هم سته ولي هغه نه کوې؟ نو هغه سړي راته وويل که چېري ته زما په قصه خبر سې، نو ما به معذوره وبولې په دا يوه دعاء کي. نو ما ورته وويل چي ستا قصه څه شی ده، نو دې سړي راته وويل چي زما دوه ورونه وه، مشر وروړ مي مؤذن و څلوېښت كاله بېله اجرته يعني احتساباً لله. نو وخت چي قريب الموت سو نو يې ووېل چي قرآن مجيد راته راوړئ، نو زموږ دا خيال سو چي دی به تبرک په قرآن مجيد سره کوې، نو يې قرآن شريف په لاس کي ونيوی واشهد على نفسه من حضر انه بريئ

مما فیه ثم تحول الی دین النصرانية فمات على النصرانية. نو چې هغه مو بنخ کړی، بیا مې دا بل وروړ د پرش کاله اذان وکړی چې ناجوړی سو په وخت کې د زکندن، نو دې وروړ مې هم د هغه مشر وروړ لاره اختیار کړه او له قرآن مبارک څخه بېزار سو او دین د نصرانیت یې مختار کړی، نو پر نصرانیت مړ سو. نو زه هم بېرېږم چې زه هم پر نصرانیت مړ نه سم. نو ما هم له دې سببه دا یوه دعا. ټینګه کړې ده. اللهم اخرجني من الدنيا مسلماً. نو احمد مؤذن وایي چې ما و هغه سړي ته وویل چې ستا هغه دوو وروڼو په دنیا کې څه عادت درلودی؟ ده راته وویل چې د هغو دا عادت و چې په ژوند کې به په ښځو پسې وه د زنا. لپاره او د په هلکانو په پسې وه د لواطت لپاره. اللهم اعذنا من هذین الفعلین الخبیثین بحرمة سید الثقلین صلی الله وعلی آله وصحبه اجمعین.

إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِ

په تحقیق خدای ﷻ نه بخښي هیڅ چاته شرک بالله.

**یوه سه**: چې ددې معنا داده چې سړی پر هغه شرک باندې مړ سي او که چېرې له شرک څخه توبه وکاږي او ایمان راوړي، نو هغه سابق شرک وربخښل کېږي په دې کې د مذاهبو اربعه وو اتفاق دی د صحابه کرامو ﷺ "لان التائب من الذنب کمن لاذنب له" ای ذنب کان، ویدل علیه قوله تعالی "قل للذين کفروا ان ینتهوا یغفر له ماقد سلف"

**فائده**: شریک وخدای ﷻ ته نیول دوه قسمه دی یو شریک دی په وجوب الوجود کې لکه مجوسیان چې وایي عالم لره دوه خدایان واجب والوجود سته. یو خالق د ښو شیانو دی لکه انسانان او غذایي موادو چې دوی یې یزدان بولي. او بل پیدا کوونکی د بدو شیانو دی لکه ماران لرمان درندګان وغیره وهغه ته دوی اهرمن او په بل روایت یې شیطان بولي. او بل شریک وخدای ﷻ ته په عبادت نیول دي لکه مشرکان د مکې یا مشرکان د هند وغیرهم.

**سوال**: که یو سړی په غیر د شرک کافر و لکه یهود او نصاری او پر هغه دین مړ سو، نو هغه خدای ﷻ بخښي؟

**ځواب:** یهود او نصارٰی که څه هم ظاهراً وخدای ته شریک نه وايي چونکه عزیر ابن الله بولي او نصارٰی عیسٰی ابن الله بولي، نو دوی هم په حقیقت کي مشرکان دي.

**سوال:** د مشرکي ښځي سره خو نکاح نه ده روا، او سره ددې چي د اهل کتابو د ښځو سره د مسلمان نکاح رواه ده اجماعاً؟

**ځواب:** عدم جواز د نکاح د مشرکي ښځي هلته دی چي شرک ظاهري ولري، او د اهل کتابو د ښځو خو شرک معنوي او حقیقي دی نه شرک ظاهري والفرق بین.

**وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ**

او بخښي خدای ﷻ ماسوی له شرک څخه که صغیره وي که کبیره وي، په خطء سره يې کړي وي یا په قصد که څه هم بیله توبې مړ سي، لکن هغه چاته چي د خدای ﷻ د بخښي اراده ورته وسي.

**پوښتنه:** تا ولي تعمیم وکړی که څه بیله توبې مړ سي؟

**ځواب:** دا تعمیم له تقیید څخه د "من یشاء" وفهمیدی. ولي چي مذنب او گناه کبیره والا چي توبه وکاږي هغه په قرار د "التائب من الذنب کمن لا ذنب له" وتقیید ته ضرورت نه لري لکه د شرک سره سره چي هیڅ عمل صالح فائده نه کوي. وجه د رد يې داده چي که چېري دغسي وايي، نو قید ته د مشیت څه ضرورت و، نو په دې آیت کي رد پر مرجیه دلي دی. ولي خو دوی پر خدای ﷻ بخښه واجبه بولي، او دوی وايي چي سره د ایمانه هیڅ گناه ضرر نه لري لکه سره د شرکه چي هیڅ عمل صالح فائده نه لري. وجه د رد پر مرجیه داده که داسي وای لکه دوی چي وايي، نو وقید ته د لمن یشآء فائده نسته. ولي چي خو دوی بخښه پر خدای ﷻ واجبه بولي. او داغه رنگه پر معتزله وو باندي هم رد وسو چي دوی وايي تعذیب د مؤمن مرتکب د کبائرو چي بې توبې مړ سي پر خدای ﷻ واجب دی دلیل د رد يې دادی چي ددې آیت له سوق څخه صراحةً معلومه سوه چي مشرک چي بیله توبې له شرک څخه مړ سي د شرک گناه يې نه وربخښل کېږي او ځای يې ابدي دوزخ دی. نو مؤمن مذنب چي بیله توبې له ذنب څخه مړ سي گناه يې نه وربخښل کېږي او ځای يې ابدي دوزخ دی، نو فرق په منځ کي د مشرک بې توبې او د مؤمن مذنب بې توبې څه دی. او موږ نه پوهېږو چي معتزله به

ددغه آیت څه ترجمه کوي؟ "ویغفر مادون ذالک لمن یشاء." او دغه رنګه په دې آیت سره رد دی پر خوارجو چي د هغو مذهب دادی "کل ذنب کبیرة شرک وصاحبه مخلد في النار" وجه الرد: له ابن عمر رضي الله عنه څخه په صحیح سند روایت دی چي دی وایي چي موږ به له طلب څخه د مغفرت و اهل کبائرو ته چي بې توبې به مړه سوه ځان ساتی. یعني دعاء د مغفرت به مو نه ورته کول. چي دا آیت نازل سو "ویغفر مادون ذالک لمن یشاء" او له علیه الصلوة والسلام څخه مو دا هم واورېدل "اني ادخرت دعوتي شفاعتي لاهل الکبائر من امتي" نو موږ له زړونو څخه هغه پخوانی خیالات وویستل او امید د مغفرت و اهل کبائرو ته چي بې توبې مړه سي پیدا سو.

**درویش وایي**: چي بغوي رحمه الله په نقل د کلبي رحمه الله وایي چي دا آیت په شان کي د وحشي چي د حضرت حمزه سید الشهداء رضي الله عنه قاتل و چي دغه وحشي د احد په جنګ کي دی مبارک په شهادت ورساوه نازل سوی دی.

**پوه سه**: چي دغه وحشي په مکه کي د یو چا مریی و او دده د مالکانو پلار حضرت حمزه رضي الله عنه په بدر کي وژلی و، نو د وحشي مالکانو ده ته وویل که تا حمزه مړ کړی موږ به تا ازاد کړو، نو وحشي چي حمزه شهید کړی مالکانو یې وفا په وعده ونه کړه او دی یې نه کړی آزاد. نو وحشي و علیه الصلوة والسلام ته خط ورواستاوه چي زه پر خپل کړه پښېمانه یم او اسلام ته مي شوق کېږي لکن د اسلام مانع مي هغه آیت دی چي ته په مکه مکرمه کي وې او پر تا باندي نازل سوی و او ما اورېدلی و "والذین لا یدعون مع الله الهاً آخر ولا یقتلون النفس التي حرمها الا بالحق ولا یزنون" نو ما خو د خدای ﷻ سره الهة اخری بللی دی. او قتل نفس بغیر الحق مي هم کړی دی او زنا مي هم کړې ده، نو که دغه آیتونه نه وای ما ایمان راوړی. فنزل "الا من تاب وعمل صالحاً" نو دا آیت علیه الصلوة والسلام ور واستاوه وحشي چي ووایه. نو علیه الصلوة والسلام ته یې نوشته کړه چي په دې آیت کي خو سخت شرط سته یعني وعمل صالحاً زه په ځان باور نه لرم چي زه به عمل صالح وکړم. غرض یې دا و چي د عمل صالح لمن خو ډېره فراخه ده تو له به زه وکړای سم او که نه. بیا دا آیت نازل سو "ان الله لا یغفر ان یشرک به ویغفر مادون ذالک لمن یشاء." نو علیه الصلوة والسلام دا آیت ورواستاوه وحشي چي ووایه بیر ته یې

ورته نوشته کړه په دې آیت کې مغفرت مشروط په مشیت پورې د خدای ﷻ دی. نو زه نه پوهېږم یقیناً چې زما د ګنهو د بخښې سره به د خدای ﷻ مشیت او اراده وي او که نه. بیا دا آیت نازل سو "یا عبادي الذین اسرفوا علی انفسهم لاتقنطوا من رحمة الله ان الله یغفر الذنوب جمیعاً" چونکه په دې آیت کې قید او شرط نه و، نو وحشي سره د څو کسو نورو چې دده اندیوالان وه ومدینې منورې ته راغله او صادقانه ایمان یې راوړی، او علیه الصلوة والسلام یې ایمان قبول کړی، او بیا علیه الصلوة والسلام د وحشي څخه کیفیت د حمزه ؓ د قتل وپوښتی، وحشي چې کیفیت د حمزه ؓ د قتل ځیګر خونه واقعه ورته بیان کړه. نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل "ویحک غیب وجهک عني". نو وحشي شام ته ولاړی تر مرګه پورې دورې و.

**پوښتنه**: علیه الصلوة والسلام و وحشي ته وویل "غیب وجهک عني" ولې؟

**ځواب**: له دې سببه یې ورته وویل چې دده په هره پلا لیدلو سره ځیګر خونه قتل د سید الشهداء ورپیاد نه سي.

**فائده**: وحشي وروسته بیا یو کار وکړی چې مسیلمة الکذاب چې د علیه الصلوة والسلام په عصر کې یې د نبوت دعوه کړې وه د علیه الصلوة والسلام تر وفات وروسته یې په یو جنګ کې دغه مسیلمة الکذاب قتل کړی، نو وحشي به ویل چې دا مکافات دی د حضرت حمزه ؓ د قتل.

**پوه سه**: چې په حدیث شریف کې راغلي دي په قول د حضرت علي ؓ چې ده وویل "هذه الآیة ارجی آیة في القرآن" یعنې دا آیت د امید لوی آیت دی په قرآن مجید کې یعنې قوله تعالی "یاایها الذین اسرفوا علی انفسهم لاتقنطوا من رحمة الله ان الله یغفر الذنوب جمیعاً" لکن درویش وایي چې دا قضیه مهمله په قوت کې د جزئیت ده. نو دا سوال نه پیدا کیږي چې دا خو عین مذهب د مرجیه وو دی کمامر سابقاً فتدبر.

وَمَنْ يُشْرِكْ بِاللّٰهِ فَقَدِ افْتَرٰٓى اِثْمًا عَظِيْمًا ﴿۴۸﴾

او که چا شرک مختار کړی په خدای ﷻ سره، نو پر خدای ﷻ یې لوی درواغ او بنګاره ګناه غوټه کړه.

**بوه سه:** چې معنا د "افتراء" افساد ده او په کذب او ظلم او شرک کې مستعملیږي علی ما في الصحاح للجوهري او "اثماً" منصوب مفعول مطلق دی، والتقدیر ارتکب الکذب والفساد کذباً وفساداً عظیماً یعنې چې دشرک په مقابل کې نور گنهونه حقیر گڼل کیږي، نو ځکه شرک قابل د عفو الهي نه دی بخلاف سائر الآثام په حدیث مروي کې د جابر ﷺ راغلي دي چې علیه الصلوة والسلام ووېل "ثنتان موجبتان" دوه خصلته موجب د شي. نو یو سړي وعلیه الصلوة والسلام ته ووېل "ما الموجبتان؟ قال من مات لایشرک بالله شیئاً دخل الجنة ای اولاً او بعد حین. ومن مات یشرک بالله شیئاً دخل النار ای ابداً رواه مسلم"

**درویش وایي:** چې ما ووېل ای اولاً او بعد حین. لانه قد ثبت في الاحادیث النبویة الصحیحة ان بعض المذنبین من المؤمنین اذا لم یدرکه الشفاعة النبویة او الرحمة العامة الالهیة العامة یدخل النار حسب ما اراد الله.

**بوه سه:** چې گنهونه درې قسمه دي، یوه گناه داسې ده چې امید د بخښې یې نشته. وهو الشرک والکفر. او بله گناه داسې ده چې بخښل کیږي، دا هغه گناه ده چې په منځ کې د خدای ﷻ او بنده وي کترک الصلوة او الجماعة وهکذا سائر حقوق الله عز وجل من الاوامر والمنهیات، او بله گناه داسې ده چې خدای ﷻ یې نه پرېږدي وهو ظلم العباد بعضهم بعضاً.

## اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ يُزَكُّوْنَ اَنْفُسَهُمْ ؕ

**بوه سه:** چې مخاطب علیه الصلوة والسلام دی او استفهام لپاره د تعجب دی ای اعجب یا محمد ﷺ او مراد له "الذین" ځخه یهودان دي. آیا ته نه گورې وهغو کسانو ته چې د ځانو پاکي بیانوي په خوله سره او په حقیقت کې پاک نه دي لکفرهم بمحمد ﷺ. یهودانو به وېل چې نحن ابناء الله واولیائه یعنې لکه زامن پر خدای ﷻ گران یو او مونږ د خدای ﷻ دوستان یو او په بل عبارت به یې داسې وېل چې مونږ لکه کوچني اولاد د خدای او پر کوچني خو گناه نشته.

**بوه سه:** چې لفظ د "الذین آه" عام دی که څه هم په شان کې د یهودانو نازل دی، خو هغه ناقص پیرانو او تگانو پیرانو ته هم شامل دی چې همېشه خپل بزرگي

بیانوي، او مریدانو ته ځان داسې په خیال ورکوي چې په اوسنی زمانه کې هغه لوی بزرګ دی. او په حقیقت کې د مریدانو د مالونو لپاره یې دام درولی وي.

**پوه سه**: چې د ځان تزکیه د کبر او عجب علامه ده، لکن دوی نه پوهیږي چې مشک آنچه خود ببوید نه آنکه بگوید . عطاء رحمه الله.

**مسئله**: لکه د خپل ځان تزکیه چې نه ده روا، داغه رنګه د بل چا تزکیه هم نه ده روا ای الحاکم الجازم به الا علی حسن الظن بالشخص لان مالکل احد من القرب الی الله والثواب عنده تعالی لایعلمه الا الله. ولهذا قال الله تعالی ولاتقف مالیس لک به علم. لکه بعض جاهل مریدان چې خپل شیخ او پیر په خپلو ټولو حالاتو خبر بولي او خپل شیخ ته حاضر او ناظر وایي سبحانک هذا بهتان عظیم وکذب بواح.

## بَلِ اللّٰهُ يُزَكِّيْ مَنْ يَّشَآءُ

بلکې خدای ﷻ حکم په طهارت کوي هغه چاته چې خوښه یې سي لکه انبیا. علیهم السلام والملائکة المقربون. او یا معنا داده چې خدای ﷻ پاکوي له ګنهو څخه یعنې په مغفرت سره هغه څوک چې اراده د طهارت ورته ولري.

**فائده**: له حسن بصري رحمه الله څخه چا پوښتنه وکړه چې یو سړی په هوا. الوزي، نو دا حتماً د خدای ﷻ دوست دی. حسن رحمه الله ورته وویل چې مرغان ټول له په هوا. الوزي. بیا هغه ورته وویل چې څوک چې پر اوبو ځي داد خدای ﷻ د ولایت دلیل دی. حسن رحمه الله ورته وویل چې د اوبو اوسېدونکي حیوانات ټول له پر اوبو رفتار کوي. نو هغه ورته وویل چې د خدای ﷻ د دوستی دلیل نو ستا په نېز څه شی دی؟ حسن رحمه الله ورته وویل چې د ولایت دلیل مطابقت د احکام شرعیه وو دی چې امتثال د اوامرو د خدای ﷻ دی او ځان ساتل دي له منهیاتو څخه في ای لباس کانوا، یو محقق وایي ......... بیت

بر فلک برتر بود اسرار او شیئا لله شیئا الله کار او

علماء وایي چې د خدای ﷻ تر پېژندلو د ولي الله پېژندل ګران دی، ولي چې خدای ﷻ لره نه مثل سته په ذات کې او نه په صفاتو کې او خالق د علویاتو او سفلیاتو دی کما قال السعدي الشیرازي رحمه الله.

برگ درختان سبز در نظر هوشیار    هر ورقی دفتریست معرفت کردگار
واما ولي الله فهو كسائر الناس في الظاهر فلا يعرفه عموم الناس.
مقوله: قدر زر زرگر شناسد قدر جوهر جوهری.

وَلَا يُظْلَمُونَ فَتِيلًا ﴿٤٩﴾

او ظلم نه کول کېږي پر دوی په قدر د یوه فتیل.

**درویش وايي:** چي د روح البیان رایه داده چي ضمیر د "لایظلمون" راجع دی و هغو کسانو ته چي له موصول اول څخه مراد وه یعني الیهود کمامر تفصیله، نو روح البیان وايي ای یعاقبون بتلک الفعلة ولایظلمون في تلک العقاب فتیل وهذا التوجیه موافق للسیاق کما لایخفی.

**یوه سه:** چي فتیل هغه تار دی چي د خورما د مندکي په منځ کي موجود وي. او ظلم په حق کي معاقب تر حق بالا عذاب ورکول دي، او په حق کي د مؤمن کامل نقصان تر ثواب لائق دده قال الله تعالی "لاظلم الیوم" او مظهري ګاهي وايي چي ضمیر راجع دی و "من یشاء الله تزکیته" ته یعني د دوی ثواب نه ورکموي یو فتیل، او فتیل ضرب مثل دی په حقارت او لږ والي کي.

**درویش وايي:** چي دا ترجمه د مظهري رحمه الله که څه هم د سیاق بعید سره نه ده برابره لکن د سیاق قریب سره برابره ده، په اخیر کي مظهري وايي چي ضمیر د "لایظلمون" دي راجع وي "الناس اجمعین" ته چي له ما سبق څخه وفهمېدی آه.

**درویش وايي:** چي دا توجیه د مظهري نه د سیاق بعید سره مناسبت لري او نه د سیاق قریب سره، بلکي د ربط سره د آیتو د قرآن کریم في هذا المقام هم مناسب نه ده والله اعلم.

انظُرْ كَيْفَ يَفْتَرُونَ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ وَكَفَى بِهِ إِثْمًا مُّبِينًا ﴿٥٠﴾

وګوره ته اې محمد ﷺ څرنګه درواغ وايي "یهودان" پر خدای ﷻ باندي او بس دي دوی لره دغه درواغ پر خدای ﷻ ویل ګناه ښکاره.

**یوه سه:** چي د یهودانو یوه عقیده خو دا وه چي موږ زامن د خدای ﷻ یو او

دوستان د خدای یو نو په ورځ د قیامت به موږ ته هیڅ عذاب نه وي، نو دا دعوه د بنوت یعنې زوم والي که پر حقیقت حمل کوي، نو حقیقت بنوت خو پر خدای ﷻ محال دی او که یې مراد دا وي چې کالابناء چې احباء یې عطف تفسیر سي، نو دا دعوه هم محاله ده، ولي چې سره له کفره سړی د خدای ﷻ دوست نه سي کېدای او دوی اول په تورات کافران دي حیث کتموا وبدلوا ما في التوراة من نعوت النبي المبعوث في اخیر الزمان وهو محمد ﷺ ثم کفروا بالقرآن ومع ذالک کیف یکون احباء الله تعالی. او بله دعوه د یهودانو داده چې خدای ﷻ زموږ د ورځي ګنهونه د شپې رابخښي او د شپې ګنهونه مو د ورځي رابخښي او دا هم درواغ دي.

**پوه سه:** چې جمله د "وکفی به" حال ده له فاعل څخه د "یفترون" په تقدیر د قد، ولي چې په نحوه کي وايي ماضي چې حال واقع سي قد یا ظاهر یا مضمر غواړي، وقد ذکر النحاة ذیل ذالک في کتب النحو.

**درویش وايي:** چې صاحب د روح البیان په تفسیر کي د هغه آیت "بل الله یزکی من یشاء" یو اوږد تحقیق کړی دی چې دا تزکیه پر دې موقوفه ده چې سړی د یو شیخ مقتداء صاحب العلم بالعلوم الشرعیة مرید وګرځي. لکن په اخیر کي یې ویلي دي وهذا في هذا الزمان کالکبریت الاحمر.

**درویش وايي:** چې صاحب د روح البیان چې په سنه ۱۱۲۷ هـ کي وفات سوی دی وايي چې مثل دداسي شیخ مقتداء کالکبریت الاحمر.

**درویش وايي:** چې زموږ په زمانه کي به داسي شیخ کامل او مکمل صاحب الشریعة والطریقة سړی چېري پیدا کړې اللهم الا نادراً سنه ۱۴۲۷ هـ ق.

**پوه سه:** چې مفسران د کتاب الهي په یوه خوله وايي چې کعب بن الاشرف الیهودي د څان سره اویا کسه وروسته تر واقعې د احد مکې مکرمي ته بوتله تاچه د مکې د قریشو سره چې مشري یې د ابو سفیان په غاړه وه معاهده وکړه پر جنګ د رسول الله ﷺ او د مسلمانانو سره او پر مدینه منوره یې پرغل وروړی. او یهودانو هغه عهد او میثاق چې د علیه الصلوة والسلام سره یې کړی د چې

موږ او تاسي به جنګ نه سره کوو ماته یې کړه. نو کعب د ابو سفیان پر کور واړول او ابو سفیان یې ډېر اعزاز او احترام وکړی. او نورو ملګرو یې د قریشو پر کور واړول. نو ابو سفیان و کعب ته وویل چي تاسي خو اهل کتاب یاست او محمد هم اهل کتاب دی، نو ستاسي په دوستی په مقابل کي د محمد باور نه لرم امکان لري چي تاسي به موږ ته چم کوئ او د محمد دوستان به یاست په حقیقت کي. ابو سفیان ورته وویل چي هغه وخت زه په تا باور کوم چي زموږ دغو دوو بتانو ته به سجده کوې او ایمان به پر راوړې، نو کعب بن الاشرف هم هغسي وکړه. وروسته کعب ملعون و قریشو ته د مکې وویل چي د ېرش کسان دي ستاسي او دېرش زموږ دي سره غونډ سي او خپلي سینې دي د کعبې پر دېواله ومښلوي او په رب د کعبې به قسم اخلي چي موږ به په اتفاق سره پر محمد او مسلمانانو حمله کوو. نو دا آیت نازل سو.

**أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيبًا مِنَ الْكِتَابِ يُؤْمِنُونَ بِالْجِبْتِ وَالطَّاغُوتِ**

آیا ته نه ګورې اې محمد ﷺ "والرؤیة علمیة والاستفهام للتعجب" وهغو کسانو ته چي ته ورکړه سوې وه برخه د کتاب یعني تورات چي کعب بن الاشرف او ملګري دده مراد دي چي دوی ایمان راوړي پر جبت او طاغوت باندي.

**پوه سه:** چي جبت او طاغوت د دوو بتانو نومان دي چي قریشو به یې عبادت کاوه من دون الله قاله عکرمه رحمه الله.

**دروېش وايي:** چي ددې حدیث هغه چي موږ په شان نزول کي ددې آیت ذکر کړه، او ابو عبیده رحمه الله وايي چي جبت او طاغوت د هر معبود نومان دي چي عبادت یې من دون الله کېږي. لکن دا توجیه له قانونه خلاف ده لان العطف یقتضی التغایر بین المعطوفین.

**دروېش وايي:** چي نور روایات نا تائید شده په باره کي د جبت او طاغوت هم سته والله اعلم بحالها.

**پوه سه:** چي ابو سفیان و کعب بن الاشرف ته وویل چي تاسي خو اهل کتاب یاست او موږ خو امیون یو، آیا موږ خیر یو که محمد ﷺ؟ کعب ورته وویل چي

محمد څه وايي او څه کوي؟ ابو سفيان ورته وويل چې دی وايي معبود يو دی او زموږ اصنام باطل بولي او قطع د وصله رحمي کوي او څوک چې دده دغه خبره نه مني هغه وژني او د بيت الله شريف حرم يې پرېښو. نو كعب ورته وويل چې ستاسي څه شي دي. ابو سفيان ورته وويل چې موږ د بيت الله شريف خدمت كوو او حجاجو ته اوبه د زمزم وركوو او نور خدمتونه يې كوو او له مسكينه سره مرسته كوو، نو كعب ورته وويل چې تاسي خير ياست تر محمد، نو دا آيت نازل سو.

**وَيَقُولُونَ** يعني كعب بن الاشرف واصحابه. **لِلَّذِينَ كَفَرُوا** يعني ابو سفيان وقومه مشركي مكة. **هَٰؤُلَاءِ** يعني كفار مكة. **أَهْدَىٰ** پر هدايت او راه راست دي. **مِنَ الَّذِينَ آمَنُوا** اى محمد ﷺ واصحابه واتباعه. **سَبِيلًا** ﴿٥١﴾ د دين له لاري.

**أُولَٰئِكَ الَّذِينَ لَعَنَهُمُ اللَّهُ ۖ وَمَن يَلْعَنِ اللَّهُ فَلَن تَجِدَ لَهُ نَصِيرًا** ﴿٥٢﴾

دغه كسان يعني كعب و اصحابه هغه كسان دي چې خداى ﷻ پر دوى لعنت كري دى يعني له خپل رحمت عامه څخه يې لري ساتلي دي او پر چا چې خداى ﷻ لعنت وكري ته نه سې پيدا كولاى "اى مخاطب غير معين" هغه ملعون الهي لره كومك كونكى چې د خداى ﷻ له هغه عذاب څخه يې خلاص كري.

**أَمْ لَهُمْ نَصِيبٌ مِّنَ الْمُلْكِ فَإِذًا لَّا يُؤْتُونَ النَّاسَ نَقِيرًا** ﴿٥٣﴾

**پوه سه**: چې په دې آيت كي خداى ﷻ بيان كوي د يهودانو د حسد او بخل چې دا دوه وصفه بد ترين د خصالو مذمومه وو دي، ولي په بخل سره خپل مال وبل ته وركوي او د حسد له سببه محبت د زوال نعمت د له بله غواري.

**فائده**: "ام" په دې آيت كي منقطعه دى چې په معنا د "بل" او همزه دى كلمه د "بل" لپاره د انتقال ده يو مضمون بل مضمون ته او همزه يې لپاره د انكار دى له دې سببه چې يهودانو ته نصيب من الملك پيدا اسي لكه يهودانو چې به ويل سيصير الملك اليهم. وجه د انكار يې داده چې ملك او رياست لره لوازم سته چې هغه په

يهود و کي نسته ولې رئيس او بادشاه د قوم بايد په غايت سخاوت سره موصوف وي پر خوار او غريبو د رعيتو او په يهودو کي اعلى درجه د بخل موجود ده.

**ترجمه:** آيا يهودو لره به پيدا سي يوه ادنى برخه د رياست. يعني داسي نه سي کېدای ولې که دوی ته يوه برخه د رياست و رسېږي دوی به نه ورکوي هيڅ چاته برابر د حقير شي چي نقير دی لکمال بخلهم فکيف يعطيهم الله الملک.

**يوه سه:** چي نقير يو کوچنی غار دی د خورما د مندکي په شا کي وهو مثل لغاية الحقارة کالفتيل. نو چي دوی په وخت کي د رياست نقير وچاته نه ورکوي نو د ذلت او مسکنت په وخت کي به چاته څه شی ورکړي. نو گويا د سعدي شيرازي د بيت مصداق دوی دي.

بخيل ار بود زاهد بحر وبر    بهشتى نباشد بحکم خبر

## اَمْ يَحْسُدُوْنَ النَّاسَ

**يوه سه:** چي کلمه د "ام" دلته هم منقطع ده په معنا د بل آه ده. او ابن عباس ﷺ او حسن بصري رحمه الله وايي چي له "الناس" څخه يوازي عليه الصلوة والسلام مراد دی "حسدوه على ما احل الله من کثرة النساء حيث قالوا ليس هم محمد الا النکاح" او بعض مفسران وايي چي مراد له "الناس" څخه عليه الصلوة والسلام او ټوله اصحاب مراد دي.

**درويش وايي:** وهو الاوفق بلفظ الناس في العرف او حسد يې ددوی سره پر نبوت او پر قرآن او پر زياتوالي د عزت ددوی او فتح د قرئ وو او نصرت الهي يوماً فيوماً.

**درويش وايي:** چي دا شيان په حسد سره د ېر لائق تر کثرة النساء.

## عَلٰى مَآ اٰتٰهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ

چي دوی ته خدای ورکړي دي خپل له فضله څخه وهو الامور المذکورة آنفاً.

**درويش وايي:** چي ضمير د جمع هم پر دې دلالت کوي چي حسد د يهودانو د عليه الصلوة والسلام او د ټولو اصحابو سره و. نه يوازي د عليه الصلوة والسلام سره، او قتادة رحمه الله وايي چي مراد له "الناس" څخه عرب دي ولې چي

خدای ﷻ نبي محمد ﷺ په دوی کي او قرآن يې په عربي ژبه نازل کړی، درویش وايي چي دا توجیه هم مناسبه ده.

فَقَدْ آتَيْنَا آلَ إِبْرَاهِيمَ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَآتَيْنَاهُمْ مُلْكًا عَظِيمًا

نو په تحقیق موږ و آل ته د ابراهیم چي د علیه الصلوة والسلام اسلاف او نیکه گان دي، والمراد من آل ابراهیم اسماعیل او اسحاق او یعقوب او نور انبیاء چي چي د یعقوب زامن وه. کتاب یعني التوراة والانجیل والزبور.

**پوه سه:** چي لام د کتاب لپاره د جنس دی نو دغو ټولو کتابو ته شامل دی او ورکړی مو و حکمت یعني نور علوم ماسوی له کتاب څخه. او موږ ورکړی و دوی ته سلطنت ډېر لوی، کما ملک یوسف وطالوت و داؤد وسلیمان علیهم السلام وغیرهم من اولاد ابراهیم ﷺ. نو خدای ﷻ ومحمد ﷺ ته هم کتاب او نبوت ورکړی دی لکه هغو ته بلکي افضل تر هغو. نو تاسي ولي حسد ورسره کوئ. نو ددې آیت ربط د ماقبل سره یعني "ام یحسدون الناس آه" داسي دی چي که باعث ستاسي د حسد د علیه الصلوة والسلام او د اصحابو سره دا وي چي پر علیه الصلوة والسلام او اصحابو خپل فضل کړئ بالامور المذکورة من قبل. نو دا خو باعث د حسد نه دی، ولي چي "قد آتینا آل ابراهیم آه" او ابراهیم ستاسي د اسلافو هم جد دی او د علیه الصلوة والسلام هم جد اعلی دی فمالکم کیف یحسدون ایها الیهود مع محمد ﷺ.

**درویش وايي:** چي تاریخ وايي چي د سلیمان ﷺ درې سوه د ولور مایني وې او اووه سوه يې مینځیانې وې چي ټولې زر کېږي د وطي لپاره. او د داؤد ﷺ سل مایني وې. او د علیه الصلوة والسلام په دغه وخت کي نهه مایني وې. نو تاسي ولي پر علیه الصلوة والسلام عیب د کثرة الزوجات وایاست

**درویش وايي:** چي دغه ځوابونه چي خدای ﷻ یهودانو ته ورکړه. نو یهودان له اعتراض څخه پر علیه الصلوة والسلام او اصحابو ساکت سوه.

فَمِنْهُمْ مَنْ آمَنَ بِهِ

نو بعض له یهودانو څخه ایمان راوړی و پر علیه الصلوة والسلام لکه عبدالله

بن سلام او دده ملګري.

**پوه سه**: چي کلمه د "فا" لپاره د تفصيل د يهودانو د حال ده.

وَمِنْهُم مَّن صَدَّ عَنْهُ ۚ

او بعضو له يهودانو څخه ډېره وګرځېده له ايمان راوړلو څخه پر نبي ﷺ.

وَكَفَىٰ بِجَهَنَّمَ سَعِيرًا ۝

او کافي دی دغو يهودانو لره چي د ايمان راوړلو څخه يې منعه وکړه جهنم دوزخ سوځونکی دوی لره، يعني که چېري دوی ته عذاب في الدنيا هم ورنه کړل سي خو د جهنم عذاب يې بس دی، او که عذاب په دنيا کي ورکړه سو، نو دوی به خسر الدنيا والآخرة وي.

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِنَا سَوْفَ نُصْلِيهِمْ نَارًا ۖ

په تحقيق هغه کسان چي کفر وکړي او منکر سي له آيتو څخه چي قرآن عظيم الشان دی ژر دی چي موږ به دوی داخل کړو اوور ته يعني جهنم ته په ورځ د آخرت.

**پوه سه**: چي دا آيت بيان دی د ماقبل آيت يعني "ومنهم من صد عنه" تر پايه پوري.

**درويش وايي**: چي روح البيان وايي چي په دې آيتو کي يعني له "الم تر الى الذين اوتوا آه" څخه تر "کفى بجهنم" پوري داسي په زړه پوري بيان کړی دی چي خدای ﷻ په آيات سابقه وو کي د يهودانو عقائد زائغه او اخلاق سيئه و تولي دنيا ته رسوا کړه اول يې جهل شديده ددوی بيان کړی چي عبادت د بتانو افضل دی تر توحيد او تر عبادت د خدای وحده کمامر تفصيله في ملاقات کعب بن الاشرف اليهودي ورفقائه مع ابو سفيان في مکة، دويم خدای ﷻ دوه غاية ذميمه خويونه بيان کړه چي بخل او حسد دی، بخل دادی چي يو سړی وهيڅ چاته نه ورکوي يو شی بما آتاه من النعم حيث قال لا يؤتون الناس نقيراً، او حسد دادی چي تمنی ددې کوي چي خدای دې ومخالف ته د دوی هيڅ نعمت نه ورکوي، کما قال الله تعالى "ام يحسدون الناس" نو بخل او حسد په دې کي خو شريکان دي چي منع د نعمت له بله غواړي، لکن بخيل د خدای ﷻ نعمت پر ده

باندي بل چاته نه ورکوي. او حاس دا غواړي چي خدای ﷻ دي نعمت خپل و محسود ته ورکوي فهما شر الرزائل. او سبب د دواړو دي بدو خويو جهل دی په کتب الهيه وو سره. قال السعدي الشيرازي رحمه الله.

شور بختان به ارزو خواهند مقبلان را زوال نعمت وجاه
گرنه بیند بروز شپره چشم چشمه آفتاب را چه گناه
راست خواهی هزار چشم چنان کور بهتر که آفتاب سیاه

وقد قال العلماء. الحسود لا يسو.

**درویش وايي**: چي حسد د چا و محسود ته تاوان نه کوي بلکې حسد کالحسک من تعلق به هلک. که د چا حسد سري ته تاوان کولای درويش ته به هيڅ نعمت الهي نه وای پاته سوای لکن د حاسد انو د حسد سره سره نعم الهيه پر درويش روز افزون علی المزيد دي الحمدلله. او زه وايم.

هم يحسدونني وشر الناس کلهم من عاش في الناس غير محسود

او بخل چي ضد يې احسان دی داسي يو خوی دی چي انسان خو څه کوي حيوانان هم په احسان مسخر کېږي. وقد قيل بالبر يستعبد الحر. سعدي شيرازي وايي.

خورش ده بکنجشک وکبک وحمام که یک روزت افتنده یابی بدام
زر از بهر خوردن بود ای پسر زبهر نهادن چه سنگ وچه زر

**درویش وايي**: چي د معراج په حديث کي راغلي دي چي آنحضرت ﷺ له دوږخ کتل کوله، نو يو سړی يې وليدی په اور کي چي اور شاوخوا پر راګرځېدلي ولکن دا سړی يې نه مسه کاوه، نو عليه الصلوة والسلام له جبرئيل عليه السلام څخه پوښتنه وکړه چي دا سړی څوک دی چي اور يې نه مسه کوي؟ جبرئيل عليه السلام ورته وويل چي دا حاتم طائي دی. چي په تواريخو کي په غايت سخاوت او کرم سره شهرت لري، نو حاتم چونکه مشرک و. نو په دوږخ کي خو به وي لکن په سبب د سخا يې اور نه مسه کوي، نو جود او سخاء له سري څخه لېري کوي عذاب د دنيا او د عقبی وسبب لحصول الملک في الدنيا والعقبی انتهی.

**درویش وايي:** چي پښتو ژباړه د کلام د روح البيان سره د زيادت د عاصي له خوا پای ته ورسېده.

**كُلَّمَا نَضِجَتْ جُلُودُهُمْ بَدَّلْنٰهُمْ جُلُودًا غَيْرَهَا**

هر وخت چي وسوځي پوستوکي ددوی يعني د دوږخيانو، موږ وربدلوو دوی ته نور پوستوکي غير له اولو پوستوکو تاچه عذاب يې نوی سي.

**پوه سه:** چي د "جلود" بدل به يا داسي وي چي هغه جلود بعينه پر بل صورت کي، او يا داسي چي له هغو پوستوکو څخه اثر د احراق زائل کړي تاچه بيرته اثر د احساس د عذاب پکښي پيدا کړي. قال ابن عباس ﷺ "يبدلون جلوداً بيضا" يعني غير محرق لکه امثال د کاغذانو کما روی عنه البغوي رحمة الله عليه.

له ابن عمر ﷺ څخه روايت دی چي دا ايت په وړاندي د عمر ﷺ وويل سو، نو معاذ بن جبل ﷺ وويل چي زما سره ددې آيت تفسير سته "يبدل في کل ساعة مائة مرة" معاذ ﷺ زياته هکذا سمعت رسول الله ﷺ. او بعض راويان د حديث وايي چي په يوه ساعت کي يې يو سل او شل واره ور بدلوي، او بعض راويان وايي چي په يوه ساعت کي يې شپږ زره واره وربدلوي، او بعض راويان وايي چي په يوه ساعت کي يې اويا زره واره وربدلوي.

**درویش وايي:** چي والاعتماد على رواية معاذ بن جبل. والعلم عند الله.

**لِيَذُوقُوا الْعَذَابَ**

تاچي دائم پاته سي دوی لره احساس د عذاب الهي.

**إِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَزِيزًا حَكِيمًا**

په تحقيق سره خدای ﷻ غالب دی لا يمنعه شئ عما يريد، او کفارو ته عذاب ورکوي پر مقتضیٰ د حکمت.

**وَالَّذِينَ اٰمَنُوا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ سَنُدْخِلُهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهٰرُ خٰلِدِينَ فِيهَا أَبَدًا**

او هغه کسان چي ايمان يې راوړی وي پر خدای ﷻ په توحيد سره، او پر عليه

الصلوة والسلام باندي په نبوت سره او پر قرآن باندي بانه من عبدالله او اعمال صالحه یعنې موافق د شریعت سره یې هم کړي وي، ژر دی چې مونږ به دوی داخل کړو جنتونو ته چې بهیږي به لاندي تر درختو د هغو جنتو ولې "یعنې څلور ولې" اوبه، شیدې، عسل، شراب او دوی به ابد الآباد په دغو جنتو کې چې نه به مرگ وي او نه ایستل له جنتو څخه.

لَهُمْ فِيهَا أَزْوَاجٌ مُطَهَّرَةٌ

**پوه سه**: چې ابو سعید الخدري ﷺ له علیه الصلوة والسلام څخه نقل کړی دی په تفسیر کې د "مطهرة" چې دا زوجات به پاکې وي له حیض، اودس مات، بولو، گرنگو، گرویو، له ولد څخه او له مني څخه.

وَنُدْخِلُهُمْ ظِلًّا ظَلِيلًا

او مونږ به داخلوو جنتیان له په سایه کې.

**پوه سه**: چې "ظلیل" صفت مشبه دی لپاره د تاکید د "ظل" کقولهم یوم ایوم ولیل لئیل وما اشبه ذالک، نو د سایې معنا داده چې لمر یې نسي زائلولای بلکې همیشه به وي ولې چې په جنت کې لمر نسته.

**پوښتنه**: په جنت کې چې لمر نسته چې سړی د هغه په گرمۍ ازار سي، نو فائده د ادخال د جنتیانو په ظل ظلیل کې څه ده، بلکه خبره داده چې په دنیا کې هغه ځای چې همیشه پر سایه وي نور د لمر نه ور رسیږي هوا یې بد بویه وي او تاواني وي فما معنی وصف الجنة بالظل الظلیل؟

**ځواب**: قال امام الهمام فخر الدين الرازي رحمه الله في تفسيره الكبير، چې بلاد د عربو چونکه په نهایته گرمۍ کې ډېر گرم وه، نو سایه ددوی په بلادو کې سبب د یو راحت ده، نو ظل کنایه ده له راحت څخه، نو معنا د آیت داده چې جنتیان به په راحت کې وي، او توصیف چې یې په ظلیل سره وکړی، نو یې معنا داده چې جنتیان به په نهایت راحت کې وي، کما ورد في الحدیث النبوي "السلطان ظل الله في الارض ای السلطان العادل راحة الله" په مځکه کې یعنې راحت دی د

رعیتو لپاره. قال امام الرازي رحمه الله هذا ما یمیل الیه خاطري.

**درویش وايي:** چې په صحیح حدیث کې راغلي دي چې علیه الصلوة والسلام وویل چې په جنت کې یوه داسې درخته سته چې که پر آس سپور سړی په سایه کې د هغې درختې سل کاله رفتار وکړي نه یې سې قطع کولای، او که تاسې ددې تصدیق غواړئ، نو دا آیت ووایاست "وظل ممدود" او په جنت کې هغه نعمتونه سته من الثمار والقصور والحور العین وغیرها چې نه د چا سترګو لیدلي دي او نه د چا غوږو اورېدلي دي، یعنې بالتفصیل او نه د چا پر زړه ورګرځېدلي دي یعنې تصور د هغو نعمتو هم چا نه دی کړی یعنې بالتفصیل که یې تاسې تفصیل غواړئ له قرآن څخه نو د قرآن دا آیت ووایاست "فلا تعلم نفس ما اخفی لهم من قرة اعین" نو د یوې درې ځای د جنت خیر تر دنیا ومافیها، نو ددې تصدیق لپاره تاسې وویاست "فمن زحزح عن النار وادخل الجنة فقد فاز" وقال رسول الله ﷺ چې اهل الجنة یعنې د رجال جعد یعنې د سر وېښتان به یې کټ کټ وي چې دا د وېښتانو غایت حسن دی "جرد مرد" بدن به یې له وېښتانو خالي وي او د بې رېږې هلکانو پر ډول به وي "لیس لهم شعر الا في الراس" وېښتان به یې ګرده بدن نه لري مګر پر دغو ځایو سر، ورځې او بانوګان، ولې چې ددغو ځایو وېښتان د نر لپاره زینت دی یعنې پر ځیګر، پښو، لاسو، بغلو، او ځیږو خسه به یې هیڅ وېښته نه وي، ولې چې هغه زینت نه دی، او د ټولو جنتیانو قد به د آدم علیه السلام رنګه وي یعنې شپېته ګزه، او عمر به یې درویشت کاله وي، سپین زیبا رنګونه به یې وي، او زرغونه کالي به وي الی غیر ذالک من النعم.

فقیه ابو اللیث السمرقندي وايي که څوک دا مذکوره نعمتونه غواړي، نو پر پنځو شیانو دې دوام وکړي (۱) خپل نفس یعنې ځان به له ټولو ګنهو څخه منع کوي قال محقق الشعرا..

ونهی النفس بفرمود الله		بایدت ترک هوا وترک ګناه

(۲) په لږ دنیا دې راضي اوسي ولې چې ثمن د جنت ترک د دنیا دی، قال

الشاعر    این زن زانیه شوی کش دنیارا    گر علي وار طلاقش ندهم نامردم

(۳) سړی به پر ټولو عباداتو حریص وي چې شاید دا عمل به سبب د مغفرت او د دخول د جنت وي او شاید دا به وي، وهکذا علماء وایي "به بها نمی بخشد... وبه بهانه می بخشد" قال السعدي الشیرازي رحمه الله.

عمل باید اندر طریقت نه دم    که سودی ندارد دم بی قدم

(۴) د صالحانو کسانو سره به محبت کوي او ددوی سره دي نشست او برخاست کوي، قال الشاعر.

نخست موعظه پیر مجلس این حرفست ....که از مصاحب ناجنس احتراز کنید

نو پر انسان لازمه ده چې مصاحب دي د اهل خیر او صلاح وي، ولې چې صحبت تاثیر لري، او بل دا چې یو صالح چې خدای ﷻ وبخښي بیا د نورو یارانو مصاحبانو شفاعت کوي، قال السعدي الشیرازي قدس سره.

امید است از آنان که طاعت کنند    که بي طاعتانرا شفاعت کنند

(۵) له خدای ﷻ څخه دي ډېر خواستونه کوي چې ماته جنت راکړې او خاتمه مي پر ایمان وګرځوې، قال الشاعر.

غنیمت شمارند مردان دعاء    که جوشن بود پیش تیر بلا

إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ إِلَىٰ أَهْلِهَا

په تحقیق خدای ﷻ تاسي ته درکوي امانت شیان و هغه چاته چې تاته یې امانت درکړې دی،

**یوه سه:** چې مفسران د قرآن عظیم الشان په یوه خوله ددې آیت شان نزول داسي بیانوي په عباراتو مختلفه وو سره، چې نبي کریم ﷺ کله مکه معظمه فتحه کړه او ښار ته د مکې داخل سو، نو عثمان بن طلحه د کعبې دروازه بنده کړه او کیلي یې د ځان سره یوړه. او علیه الصلوة والسلام چې کیلي ځني وغوښتله عثمان چې هنوز کافر و منع یې وکړه او وه یې ویل چې که زه په دې پوهېدلای چې دی رسول د خدای ﷻ دی نو به مې کیلي نه وای ځني منع کړې،

نو علیه الصلوة والسلام و علي ﷺ ته وویل ورسه کیلي په زوره ځنې واخله، علي ﷺ ورغلی د عثمان لاس یې وپېچی او کیلي یې ځنې واخستله او د کعبې شریفې خونه یې خلاسه کړه او ورداخل سو او دوه رکعته نفل یې پکښې وکړه دی چي راووتی عباس ﷺ ورته وویل چي کیلي ماته راکړه تاچي لکه سقایه د زمزم چي زما په تصرف کېده سدانة د کعبې یعنې حفاظت د خونې د کعبې به هم زما سي یعنې کیلي به یې زما په تصرف کي سي. نو دا آیت نازل سو نو علیه الصلوة والسلام علي ﷺ راوغوښتی او ورته وه یې ویل کیلي بیرته عثمان ته ورکړه او عذر د لاس پېچلو ورته ووایه. نو علي ﷺ ورغلی عثمان ته یې اول عذر د لاس پېچلو ووایه او کیلي یې بیرته ورکړه، عثمان ورته وویل چي اول دي کیلي زما څخه په زوره واخستل او زهیر دي هم کړم او اوس عذر کوې او کیلي دي بیرته راوړه. نو علي ﷺ دا آیت ورته تلاوت کړی یعنې چي کیلي بیرته تاته درکول په امر سره د خدای ﷻ دي، نو عثمان وویل اشهد ان لا اله الا الله واشهد ان محمد رسول الله. نو جبرائیل ﷺ و نبي ﷺ ته راغلی او ورته وه یې ویل سدانت د کعبې به د عثمان په لاس کي وي ابداً.

تاریخ د اسلام وایي چي څه وخت چي عثمان و مدینې منورې ته هجرت کاوه کیلي د کعبې مبارکې یې وخپل زوی شیبه ته وسپارل، نو کیلي د کعبې مبارکې به په لاس کي د عثمان د اولاد وي تر قیامته پوري.

**درویش وایي:** چي مظهري ﷺ په ځای کي د هجرت داسي عبارت راوړی دی فلما مات عثمان دفع الی اخیه شیبة، والله اعلم بالصواب في هذا الباب.

په حدیث شریف کي په صحیح سند سره راغلي دي چي عمر بن الخطاب ﷺ وایي چي علیه الصلوة والسلام د کعبې له خونې را ووتی او دا آیت یې وایه، عمر ﷺ وایي فداه ابي وامي چي ما نه و اوریدلی دا آیت دمخه تر دغه نو ظاهره داده چي دا آیت د کعبې مبارکې په خونه کي نازل سو.

**یوه سه:** علماء رحمهم الله قدیماً وحدیثاً دا وایي چي په قرآني آیاتو کي اعتبار د عموم لره د لفظ دی خصوص ته مورد د اعتبار نسته. یعنې دا اوسني آیت که

څه هم په شان کي د کعبې د کيلی دی چي د عثمان په لاس کي وې، لکن چونکه لفظ د امانات عام دی، نو نور امانات هم پکښې داخل دي. له انس ﷺ څخه روايت دی قال قلما خطبنا رسول الله ﷺ الا قال لا ايمان لمن لا امانة له ولا دين لمن لا عهد له. ای الوفاء بالعهد" او په حديث کي د بخاري په روايت د ابو هريره ﷺ يو له علاماتو څخه د نفاق دا گڼل سوی دی "اذا اوتمن خان" يعنې چي امين وګڼل سي دی خيانت کوي يعني اداء د امانت نه کوي.

**يوه سه:** چي امانت خاص په وديعت پوري نه دی چي په پښتو يې امانت بولي چي د وديعت معنا داده چي يو سړی وچاته نقود يا متاع وغيره کښېږدي او ورته ووايي چي هر وخت زما په کار سوه رابه يې کړې، بلکې امانت هر حق ته د چا چي پر چا باندي وي هم شامل دی او اداء يې واجب ده و اهل ته د هغه حق. مثلاً د يو سړی پر بل پور باندي وي دا پور امانت واجب الاداء دی. عاريت هم په امانت کي داخل دی مثلاً يو طالب علم له يو چا څخه کتاب عاريت يوړی دا هم امانت دی الی غير ذالک من العواري فتدبر في امثلة الامانات.

**وَإِذَا حَكَمْتُم بَيْنَ النَّاسِ أَن تَحْكُمُوا بِالْعَدْلِ**

او چي تاسي حکم کوئ په منځ کي د خلګو تاسي به حکم کوئ په عدل سره، يعني مطابق د شريعت غراء سره او مراعات د يو جانب به خلاف الشريعة نه کوئ په سبب د قرابت يا د رشوت وغير ذالک، خواه سړی قاضي وي که حاکم وي يا محکم بين المتخاصمين وي.

**يوه سه:** چي حکم بالعدل هم له جملې څخه د امانات دی. او خلاف له هغه څخه خيانت دی.

**فائده:** دا جمله داخله تر هغه ايت لاندي ده "ان الله يامركم. والتقدير ان الله يامركم اذا قضيتم وحكمتم بين الناس آه" له ابو ذر ﷺ څخه روايت دی چي ما عليه الصلوة والسلام ته وويل چي ما عامل او حاکم پر يو عمل وګرځوه، عليه الصلوة والسلام راته وويل "انک ضعيف" او دا عمل امانت دی او په قيامت

رسوایي او ندامت دی "الا من اخذها بحقها و ادی الذي عليه فيها" وفي روايت مسلم اني اراک ضعيفا" يعني قابل د اداء امانت د عمل دي يولم "واني احب لک ما احب لنفسي" او زما پر تا هغه شی پېرزو دی چي زما پر ځان پېرزو دی "لاتامرن على اثنين ولا تولين مال يتيم" ته امارت مه کوه پر دوو کسانو او کفالت د مال د يتيم هم مه کوه، او وروسته يې زياته کړې ده چي اطاعت د خدای ﷻ او د خدای د رسول ﷺ او د اولوا الامر هم امانت دی يعني په دې درو کي هم بايد خيانت ونه کړل سي.

إِنَّ اللَّهَ نِعِمَّا يَعِظُكُم بِهِ ۗ إِنَّ اللَّهَ كَانَ سَمِيعًا بَصِيرًا

په تحقيق خدای ﷻ ښه بولي هغه شی چي خدای تاسي ته نصيحت کوي په هغه سره په تحقيق خدای ﷻ اورېدونکی دی ستاسي د اقوالو او ليدونکی دی ستاسي د احوالو، والمراد بسمعه تعالى وبصره تعالى العلم بالمسموعات والعلم بالمبصرات لا السمع بآلة الاذن ولا البصر بآلة العين لانه تعالى ليس بجسم ولا ذي اعضاء كما ثبت في كتب عقائد اهل السنة والجماعة.

**پوه سه:** چي د اعراب له لاري "نعم" فعل مدح دی او کلمه د "ما" نکره ده په معنی د شيئاً او "يعظکم" صفت د "ما" دی او ضمير مجرور و "ما" ته رجع دی او مخصوص بالمدح يې محذوف دی. والتقدير نعم شيئاً يعظكم به تادية الامانة والحكم بالعدل وهذا الاخير هو المخصوص بالمدح.

**فائده جليله:** پوه سه چي دا آيت يعني "ان الله يامركم ان تؤد الامانات آه" بيا تر دې ځايه پوري "ان الله نعما يعظكم آه" يو جامع آيت د ټولو امورو شرعيه وو، والتفصيل چي معاملة د انسان به يا د خدای ﷻ سره وي او يا د نورو بندګانو سره او د ځان سره، ولا بد من رعاية الامانة في جميع هذه الاقسام، قسم اول چي معامله د خدای ﷻ سره د هغه فعل د ټولو ماموراتو د خدای ﷻ دی او پرهېز کول دي د ټولو منهياتو د خدای ﷻ قال العلماء وهذا الجزء لاساحل له. قال ابن مسعود ﷺ الامانة في كل شئ لازمة في والوضوء والجنابة والصلوة والزكوة والصوم وغير ذالک. مثلاً د ژبې امانت دا دی چي ژبه به نه استعمالوي

په درواغو، غیبت، شیطانت، کفر، بدعت او په پوچ ویلو کي وغیرها، او امانت د سترګو به محرماتو ښځو ته په شهوت نه ګوري، او امانت د غوږو دادی چي رباب او نور ملاهي به نه په اوري او فحش او د کفر خبري به نه اوري وعلی هذا فقس جمیع الأعضاء، حاصل یې دادی چي هر عضو به په هغه شي استعمالوي چي خدای ﷻ هغه عضو د هغه کار لپاره پیدا کړی وي، قال السعدي رحمه الله.

زبان از بهر شکر وسپاس	بغیبت نگرداندش حق شناس
گذر گاه قرآن وپند است گوش	به بهتان وباطل شنیدن مکوش
دو چشم از پی ضع باری نکوست	نه عیب برادر بود گیر د وست

او دوهم قسم چي رعایت د امانت د ټولو خلګو سره په هغه کي داخل دی رد د ودائعو او د عواریو او تطفیف په کیل او وزن کي به هم نه کوي، او د خلګو عیوب به نه پاشي، او امراء به عدل کوي د رعایاوو سره او علماء به عدل کوي د عوامو سره یعنې علماء به عقائد حقه او اعمال شرعیه ور ښیي، او هغه اعمال به ور ښیي چي په هغو کي نفع د عوامو وي په دنیا او آخرت کي، او ماینه به د مېړه سره په امانت ژوند کوي یعنې زنا، به نه کوي الی غیر ذالک، او دریم قسم چي امانت د انسان دی د خپل ځان سره هغه دادی چي مسلمان به هغه کار کوي چي دده نفع پکښې وي في الدین والدنیا، او له شهوت پرستی او غضب او سوء الخلق وغیرها څخه به ځان ساتي، وهذا معنی قول من اعطي له الکلم الجامعة رسول الله ﷺ "کلکم" راع وکلکم مسؤل عن رعیة، وقال لا ایمان لمن لا امانة له"

**درویش وایي**: چي ګرانو مطالعه کونکو په دې تفسیر کي په باب کي د امانت خبري راڅخه اوږدې سوې، غرض مي نصیحت وتاسي ته خدای ﷻ دې په دارینو خوشحاله کړي هغه څوک چي د درویش نصیحت په غوږو د رضا او محبت واوري حتی عمل هم په وکړي، حافظ شیرازي قدس سره وایي.

امروز قدر پند عزیزان شناختم	یارب روان ناصح ما از تو شاد باد
پند حکیم محض حق است ومحض خیر
فرخنده بخت آنکه بسمع رضا شنید

**درویش وایي:**

غرض نقشیست کزما یاد ماند	که هستی رانمی بینم بقائی
مگر صاحبدلی روزی برحمت	کند درحق این مسکین دعائی

**يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَاُولِي الْاَمْرِ مِنْكُمْ**

اې هغه کسانو چې ایمان یې راوړی دی تاسې اطاعت او فرمانبرداري د خدای کوئ. او اطاعت کوئ د رسول چې محمد ﷺ دی. او د خاوندانو د امر پر تاسې باندې چې ستاسې څخه وي یعنې مؤمن وي.

**درویش وایي:** چې "منکم" په قید سره د هغه "اولوا الامر" خارج سو چې مسلمان نه وي لکه په لویه وچه کې د هندوستان چې اولوا الامر مشرکین دي هغه اطاعت نه دی لازم، او په بعضو دولتو کې اولوا الامر امریکایان وي.

**درویش وایي:** چې بعض مفسران وایي چې په دې باره کې راغلي دي چې علیه الصلوة والسلام پر یو لښکر خالد بن ولید ﷺ آمر گرځولی و او په هغه لښکر کې عمار بن یاسر ﷺ هم و، نو دا لښکر روان و او هغه قوم ته ورسېدی چې دوی یې اراده درلوده. نو لښکر په سفیدو کې هغه ځای ته ورسېدی او کافران د هغه ځای چې خبر سوه ټوله تښتېدلي وه او وطن یې خالي پرې ایښی و. مگر یو سړی د هغه قوم چې عمار ﷺ ته ورغلی و او دا یې ورته ویلي وه چې زه مسلمان سوم "واشهد ان لا اله الا الله واشهد ان محمداً عبده ورسوله" نو عمار ورته وویل "ینفعک اسلامک فاقم" یعنې ستا اسلام تاته گټه کوي. نو دلې اوسه. نو سهار چې خالد ﷺ غارت وکړی خلگ خو ټوله تښتېدلي. نو خالد پاته سړی ونیوی. عمار ﷺ ورته وویل دا سړی خوشې کړه دې اسلام راوړی دی وهو في امان مني. نو د خالد بن ولید او عمار تر منځ ناوړه خبرې دوه ارځینزي وسوې. نو چې کله مدینې منورې ته راغله ددې موضوع مرافعه و علیه الصلوة والسلام ته وسوه. نو علیه الصلوة والسلام د عمار ﷺ امن ودغه سړي ته خو قبول کړی. لکن عمار ﷺ یې نهي کړی بېله آمر لښکر وچاته امان مه ورکوئ.

نو دده په حضور کي خالد بن وليد هغه ناوړه خبره وعمار ته تکرار کړه، نو عليه الصلوة والسلام وخالد ته وويل "من احب عماراً احبه الله ومن ابغض عماراً ابغضه الله ومن لعن عماراً لعنه الله.

**درويش وايي**: چي هغه ناوړې خبري چي ما ذکر کړې هم دغه وې. فاعتذر اليه خالد" نو خالد و عمار ته عذر وکړی او هغه يې راضي کړی. فنزلت هذه الآية في ذالک لکن مع ذالک العبرة لعموم اللفظ لا لخصوص المورد وسيأتي تفصيله.

**درويش وايي**: چي مذکور شان نزول ابن جرير او ابن ابي حاتم له سدي څخه روايت کړی دی، لکن بخاري او مسلم او اصحاب السنن الاربعة وايي چي دا آيت په شان کي د عبدالله بن حذافة چي عليه الصلوة والسلام په يوه سريه کي استولی و نازل سوی دی وباقي القصة کمامرت.

**پوښتنه**: اولوا الامر څوک دي؟

**ځواب**: ابو شيبه له ابو هريره ﷺ څخه روايت کړی دی چي اولوا الامر اميران د لښکر وه.

**درويش وايي**: چي دا يو لفظ عام دی او ټولو قومندانانو ته د عساکر اسلاميه وو علی تفاوت درجاتهم شامل دی. له حضرت علي ﷺ څخه روايت دی "حق علی الامام ان يحکم بما انزل الله ويؤدي الامانة. نو چي امام داسي وکړي، نو حق دی پر رعاياوو چي دده حکم به اوري او اطاعت به يې کوي. له حضرت ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل "من اطاعني فقد اطاع الله ومن عصاني فقد عصی الله" دا له دې سببه چي امر او نهي د عليه الصلوة والسلام په امر د خدای ﷻ دي قال عز من قائل "وما ينطق عن الهوی ان هو الا وحي يوحی" عليه الصلوة والسلام زياته کړه "ومن يطيع الامر فقد اطاعني ومن يعص الامر عصاني" متفق عليه.

**درويش وايي**: چي ټوله مفسرين او فقهاء په يوه خوله وايي دا وجوب د اطاعة الامر خاص دی په هغه امير پوري چي امر دده مخالف د شرعي شريفي سره نه وي. او د خلفاء راشدينو پر نقشه روان وي. نو ځکه صاحب د روح البيان وايي

"هم امراء الحق وولاة العدل كالخفاء الراشدين ﷺ ومن يقتدي بهم من المهتدين كعمر بن عبد العزيز وغيرهم. واما امراء الجور والاعتساف بمعزل عن العطف على الله ورسوله في وجوب الطاعة فانهم اللصوص المتغلبة لاخذهم اموال الناس بالقهر والغلبة بل بعض الامراء يجعل اميراً بمعولة الكفار كالامريكيين وغيرهم.

**درویش وايي:** چي په اوسني زمانه کي به مصداق د اولوا الامر په شرائطو مذکوره په ټوله اسلامي نړۍ کي نه وي اللهم الا ماشذ وندر.

**نکته:** خدای ﷻ داسي وویل "اطیعوا الله واطیعوا الرسول و اولی الامر منکم" یعني له اولوا الامر سره یې اطیعوا نه وواییه. تعلیماً للادب مع الله ورسوله فافهم.

**درویش وايي:** چي قاضي ثناء الله چي تفسیر مظهري دده تصنیف دی چي په سنه ۱۲۲۵ هـ کي دی وفات سوی دی. دده له وفات څخه تقریباً دوه سوه کاله تېر سوي دي. د هم د اولوا الامر تفسیر کړی دی چي دا آیت شامل دی وفقهاؤ، علماؤ او مشائخو ته. یعنې پیران چي مریدانو ته تلقین ورکوي بل اولى لانهم ورثة الانبياء وخازنوا احكام الله واحكام رسوله" انتهى.

**درویش وايي:** چي د مظهري رحمه الله مراد د تېرو سوو زمانو علماء او فقهاء او مشائخ دي او یا مراد دده د زماني دي. نه د دور حاضر یعني سنه ۱۴۲۷ هـ وقبل ذالک خصوصاً په ننبار کي د کوټي چي فقیه ددې زماني بعض داسي علماء هم سته چي په اصطلاح ددوی یې وړه دوره بولي چي په څلورو میاشتو کي څلور جلده هدایه شریفه او در مختار او جلالین. بیضاوي ورسره و طالبانو ته یې په درس وايي فكيف يمكن فهم الطالب ذالك. داسي فقهاء امانت نه لري بلکې د طالبانو سره خیانت کوي.

او داغه رنګه علماء د دور حاضر په کوټه کي ودي درجې ته د خیانت رسېدلي دي چي پر دېوالو د جامع ګانو یې اشتهارونه لګولي وي چي فلانی مولوي صاحب دوره نحوه وصرف په دوو میاشتو او فلانی مولوي صاحب دوره تفسیر په دوو میاشتو وهکذا دورة المنطق ودورة الرياضي الى غير ذالک په دوو

میاشتو کې طالبانو ته درسوي، نو انصاف په کار دی چې طالبان په څرنګه علوم مذکوره په دوو میاشتو کې زده کړي. د مولوي صاحب خو دا یقین وي چې زده کولای خو یې نه سي لکن دده غرض دا وي چې پر ما یوه ډله طالبان را تول وي زما به شهرت وي. دا ټوله کارونه خیانت دی د طالبانو بېچاره ګانو سره. نو هم دا سبب دی چې طالبان په ورته دورو مروجه وو کې علوم وایي. نو بیا چې دوره حدیث وکړي او په اصطلاح لنګوټه وتړي د مراح یا زرادي یا هدایة النحو. ایساغوجي الی غیر ذالک پر درس باندي قدرت نه لري، د کوټې په ښار او په مضافاتو کې تخميناً زر (۱۰۰۰) طالبان لنګوټې تړي ګمان نه کوم چې په دې زرو کې پر صحیح درس د علوم مروجه کتابو دې لس نفره قادر وي، او بل خیانت بیا د بعضې ملا یانو د مقتد یانو سره دادی چې دی غني بلا شائبه وي بیا هم دی له مقتد یانو څخه زکاتونه ټولوي او اضحیه نه کوي او سرسایه نه ورکوي، اللهم الا سراً یعنې چې مقتد یان په خبر نه سي بیا به زکوٰة نه ورکوي ، او حج که څه هم بلا ریب پر فرض وي نه یې کوي. ولې چې په حج کې خو ډېره رسوایي د غناء ده، نو بېرېږي چې زکوٰة به یکلخته رابانديِ بند سي.

واعظان کین جلوه در محراب ومنبر میکنند
چون بخلوت میروند آن کار دیگر میکنند

**درویش وایي:** چې آفتونه ټوله د پښتنو په علاقه کوټه او مضافاتو کې محصور دي، د پاکستان په پنجاب، لاهور، کراچي وغیره کې نظامي درس پر خپل ترتیب دی، په کوټه کې هم بعضې حقیقي مدرسې سته چې درس یې پر ترتیب روان دی او په ښه تحقیق سره روان دی ولله الحمد . او د بعض مساجدو علماء هم په دورو کتابونه نه وایي بلکې حسب المقدور هر څو کتابونه چې درسوي په ښه غور سره یې درسوي او طالبان حسب الطاقة په کتاب پوه کوي.

او بعض ملا یان داسې هم سته چې د مقتد یانو د زکاتو په خاطر یې د استاذانو حقوق تر پښو لاندې کړي دي، او ځانو ته مفتیان هم وایي....... مصرع

بدین عقل ودانش باید گریست

واما مشائخ الدور الحاضر چې د خليفه ګانو په نامه ياديږي دادي چې دوی پيري واسطه د ټولولو د اموالو د مريدانو لپاره ګرځولې ده. نو بعض له دې پيرانو څخه يوه شپه د يو مريد پر کور ير غل وروړي او هلته تر پرزې پورې ځان په ورجو او غوښو موړ کړي بلکه ورځ د بل مريد پر کور وهکذا. نو که يې د مريد په ګوته د زرو غمی داره ګوتمی وليدل نو مريد ته وايي چې ته راکه دا څرنګه ښه غمی داره ګوتمی ده. مريد چې يې ورکړي دی يې پخپله ګوته کړي بيرته يې وکاږي مريد ته يې ونسي، مريد له شرمه ورته ووايي چې پير صاحب يا آغا صاحب دغه ګوتمی يې ستا کرار يې پير صاحب په ګوته کړي. او داسي خليفه ګان هم سته چې د مريدانو ښځي خو هيڅ ستر نه ځني کوي، ولې چې د عوامو جاهلانو مريدانو خو دا خيال دی چې پير صاحب د هر چا مور او پلار دی. نو خليفه صاحب پسي ګوري که د يو مريد غوره ښائسته لور او يا خور وليدل، نو بله ورځ و هغه مريد ته ووايي چې ما خوب ليدی چې ستا لور يا خور ما په نکاح کړې وي، د جاهل مريد خو دا عقيده وي چې د پير صاحب خوب حق دی، کرار خور يا لور په نکاح ورکړي. چې ډېرو خليفه ګانو په دې چل ول دوې درې مايني پيدا کړي دي.

**درويش وايي**: چې ورته کارونه د خليفه ګانو د دور حاضر نور هم ډېر دي او دوی نو ځانو ته مشائخ وايي حقيقت خو دادی چې دوی ډاکو ګان دي مشائخ له کومه دي. حاصل دا چې حقيقي شيخ او د مريدي ور شخصيت په اوسني زمانه کي ډېر نادر دی بايد عوام له استخارې څخه کار واخلي او د چا په خوږو خبرو خطا نه وزي او د خدای ﷻ د دوست او شيخ کامل مريدي وکړي.

**درويش وايي**: چې دا و بيان د امام مظهري رحمه الله د قول چې ده په خپل تفسير کي ليکلی وه چې فقهاء. علماء او مشائخ هم تر اولوا الامر لاندې دي بلکې بطريق الاولی.

**درويش وايي**: چې شايد زما په دغه اظهاراتو به بعض فقهاء. د دور حاضر او بعض علماء. د اوسني عصر او بعض خليفه ګان د اوسنی زمانې ناراضه سوي وي لکن پرواه نه لرې، ولې ګفته شده تو حق بګوی اګر هيچ کس رانيايد پسند.

اوس به بیرته رجوع و تفسیر ته د قرآن عظیم الشان وکړو.

**فَإِنْ تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ**

که ستاسي نزاع (جګړه) پیدا سوه په یو شي کي یعني په هغو شیانو کي چي ستاسي امیر تاسي په امر کړي واست. یعني بعضو علماؤ ویل چي اطاعت د امیر په دغه کار کي واجب دی، او بعضو ملا یانو ویل چي اطاعت د امیر په دغه کار کي جائز نه دی، نو تاسي رجوع وکړئ هغه شی یعني حکم د هغه شي و خدای ﷻ ته یعني الی کتاب الله چي قرآن پاک دی (ای من نصه واشارته ودلالته و مقتضاه، کما فصل الثلثة ذالک في کتب اصول الفقة) او وه رسول الله ﷺ ته چي دی ژوندی وي، او پس له وفاته دده و احادیثو مبارکه وو ته.

**پوښتنه:** د اجماع الامة او د قیاس ذکر ونه کړه سو؟

**ځواب:** اجماع او قیاس په کتاب او سنت کي داخل دي، ولي چي د څلورو مذهبو فقهاء وایي چي د اجماع الامة لپاره یو سند غواړي من کتاب الله ای من انواعه الاربعة المذکورة او من سنة رسوله ﷺ، او دغه رنګه قیاس لره مقیس علیه غواړي من کتابه تعالی او من سنته رسوله ﷺ والحاصل" وروسته تر رجوع وماذکره ته که شرع شریفي اجازه د اطاعت د امیر درکړه خو اطاعت یې وکړه والا فلا، په هغه حدیث کي چي روایت یې بخاري او مسلم کړی دی له ابن عمر ﷺ څخه داسي روایت راغلی دی چي علیه الصلوة والسلام وویل چي اطاعت د امیر المؤمنین لازم دی که د مامور خوښه وي او که یې نه وي خوښه مالم یؤمر بمعصیة فان امر بمعصیة فلا سمع ولا طاعة لانه لا طاعة للمخلوق في معصیة الخالق، او له علي ﷺ څخه روایت دی "لاطاعة لاحد في معصیة انما الطاعة في المعروف" متفق علیه، وفي الهدایة که یو والي یا حاکم حکم کړی وپه یو شي سره بیا یې قاضي ته د محکمې ورواستاوه چي دا حکم امضاء کړه قاضي دي هغه حکم امضاء کړي حتماً مګر نه دي امضاء کوي که هغه حکم د والي یاحاکم مخالف و له کتاب الله څخه، مثلاً حاکم په یوه دعوه کي چي مدعي یو شاهد درلودی د بل شاهد په ځای کي حاکم مدعي ته قسم ایښی و، ولي چي دا حکم د والي یا حاکم مخالف دی

له دې آيت څخه "فاستشهدوا شهيدين من رجالكم" او يا له حديث څخه مخالف وي لکه حاکم چي حکم کړی وي چي هغه ښځه چي مېړه يې درې طلاقه ورکړي وي، په صرف عقد د بل مېړه سره و زوج اول ته روا کېږي يعني وطي د زوج ثاني نه غواړي، ولي چي دا حکم مخالف له هغه حديث مشهور څخه دی چي روايت يې حضرت عائشې ﷺ کړی دی په باره کي د زماعه ﷺ د مايني چي عليه الصلوة والسلام ورته وويل "لاحتى تذوقي عسيلته ويذوق عسيلتک.

**درويش وايي**: چي دا اوږد حديث مذکور دی په بخاري وغيره کي، وقد مر بيانه وتفصيله في سورة البقرة، او يا حکم د حاکم مخالف وي له اجماع څخه لکه چي حاکم حکم کړی وي چي د مذبوحې متروک التسمية عامداً غوښې حلالي دي، ولي چي دا حکم دی د صدر اول يعني صحابه کرامو ﷺ له اجماع څخه کما في کتب السير مخالف دی.

که قاضي مجتهد حکم کړی و په يوه مسئله کي وروسته مجتهد ته يا نورو ته ښکاره سوه چي دا حکم د کتاب الله او يا له سنت رسول الله څخه مخالف دی، نو پر مجتهد او نورو خلګو دا لازمه ده چي رجوع وکتاب الله يا سنت رسول الله ﷺ ته وکړي او اجتهاد د مجتهد دي پرېږدي، بيهقي رحمه الله په خپل کتاب کي چي نوم يې مدخل دی په اسناد صحيح د عبدالله بن المبارک ﷺ څخه روايت کړی دی، دی وايي چي ما له ابو حنيفه رحمه الله څخه واورېدل ده وويل ماجاء عن النبي ﷺ فعل الراس والعين" يعني پر سر او پر سترګو زما قبول دی، او داغه رنګه له حضرت ابو حنيفه رحمه الله څخه روايت دی چي تاسي پرېږدئ زما قول په حديث د رسول الله ﷺ او داغه رنګه په قول د صحابه کرامو ﷺ، او داغه رنګه له ابو حنيفه رحمه الله څخه روايت دی "فاذا صح الحديث فهو قولي.

## إِن كُنتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ

که تاسي ياست چي ايمان مو راوړی وي پر خدای ﷻ او پر ورځ د آخرت.

**يوه سه**: چي دا جمله شرط ده پر جزا، يې ماقبل دلالت کوي يعني فردوه الى الله ورسوله.

ذٰلِكَ خَيْرٌ وَّاَحْسَنُ تَاْوِيْلًا ﴿۵۹﴾

او هم دغه رد د حکم و خدای او و رسول ته ښه دی ستاسي لپاره تر هغه چي ستاسي په دماغو کي یې قرار نیولی وي. او ښه دی په مآل کي من تاویلکم بلا رد.

په حدیث شریف کي راغلي دي چي یو منافق مسلمان چي نوم یې بشر و. د یو یهودي سره یې په یوه شي کي دعوه وه. نو یهودي ورته وویل چي راځه چي پر علیه الصلوة والسلام شریعت سره وکړو. ولي چي یهودي په دې پوهېدی چي علیه الصلوة والسلام رشوت نه اخلي او نه د چا مراعات کوي، او منافق ورته وویل چي راځه چي پر کعب بن الاشرف فیصله سره وکړو. ولي چي منافق پوهېدی چي کعب رشوت خوره دی، خیر خو علیه الصلوة والسلام ته راغله. علیه الصلوة والسلام منافق په ملامت کړی. نو چي را ووتل منافق ورته ټینګ سو چي دا فیصله زه نه منم راځه چي پر عمر فیصله وکړو. نو عمر ﷺ ته چي دواړه راغله. نو یهودي ورته وویل چي زما او د بشر تر منځ خصومت و، علیه الصلوة والسلام ته ورغلو بشر یې ملامت وباله. نو بشر پر فیصله د علیه الصلوة والسلام نه سو قانع. نو ده وویل چي راځه چي پر عمر ﷺ فیصله وکړو. نو دادی موږ تاته راغلو، نو عمر ﷺ وبشر ته وویل دا د یهودي خبره رښتیا ده؟ بشر ورته وویل هوا نو عمر ﷺ ورته وویل چي تاسي یو ګړی ودرېږي زه کورته ځم بیرته راځم، نو عمر ﷺ کور ته ولاړی او پټو یې پر ځان وپېچی او توریې تر پټو لاندي نیولې وه، چي را ووتی توره یې کش کړه او منافق یې په وواهه ځای پر ځای یې مړ کړی او دا یې وویل چي زما قضاوت دغه دی د هغه چا لپاره چي په قضاء د خدای او د رسول د خدای نه وي راضي. نو دا آیت نازل سو.

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ يَزْعُمُوْنَ اَنَّهُمْ اٰمَنُوْا بِمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ وَمَآ اُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ يُرِيْدُوْنَ اَنْ يَّتَحَاكَمُوْٓا اِلَى الطَّاغُوْتِ

آیا ته نه ګورې و هغو کسانو ته چي دوی وایي یعني په قول باطل سره "چي له زعم څخه دلته مراد دی" چي دوی ایمان راوړی دی پر هغه کتاب چي پر تا نازل

سوی دی یعنې القرآن العزیز او پر هغه کتاب چې تر تا دمخه نازل سوی دی یعنې التورات دوی اراده لري چې تحاکم او فیصله خصوماتو و طاغوت ته ورورې چې مراد څني دلته کعب بن الاشرف دی.

**پوه سه**: چې د "طاغوت" وزن فعلوت دی او د مبالغې صیغه ده لکه رحموت جبروت کعب بن الاشرف خدای ﷻ طاغوت وباله لکثر طغیانه کما هو المشهور في احواله واقواله في شان دین الاسلام وفي شان محمد ﷺ.

**فائده**: حضرت عمر رضی الله عنه چې د هغه منافق سر په توره پرې کړی، نو جبرائیل علیه السلام و علیه الصلوة والسلام ته وویل چې عمر رضی الله عنه فرق دی په منځ کې د حق او باطل فمسي بالفاروق.

**درویش وایي**: چې یو کتاب په نامه د الفاروق سته چې په هغه کې تول مفصل احوال د امیر المؤمنین عمر بن الخطاب رضی الله عنه او دده تولي کارنامې او فتوحات پکښې تحریر دي من شاء فلیشتري الکتاب المذکور من المکاتب في بلدة کویټه.

**پوښتنه**: په قصه کې د عمر بن الخطاب رضی الله عنه خو یو منافق و یعنې بشر کمامر او په آیت کې "الی الذین" په صیغه د جمع راغلی دی؟

**ځواب**: و بشر ته ورته نور منافقان هم وه لکه الجلاس بن الصامت، معتب بن قشیر، رافع بن زید، نو ځکه یې صیغه د جمع راوړه.

**درویش وایي**: چې بعض مفسران ددې آیت شان نزول داسې بیانوي چې د یهودانو دوه قومه وه په مدینه منوره او شاوخوا کې د بني نضیر او بني قریضه په نامه یادېدل او په قومي لحاظ په زمانه کې د جاهلیت بني النضیر ترفع درلوده پر بني قریضه وو چې نتیجه یې دا وه چې که چېرې د بني قریضه یو سړي د بني نضیر یو سړی وژلی وای، نو قاتل څو یا قصاصېدی او یا یې سل وسق خرما ورکول. یعنې دیت چې هر وسق شپېته صاع و. او که د بني نضیر یو سړي د قریضه یو سړی وژلی وای، نو قاتل نه قصاصېدی او دیت یې فقط شپېته وسق و. نو څه وخت چې علیه الصلوة والسلام ومدینې منورې ته هجرت وکړی، نو

يهودان درې قسمه سوه، يو قسم مخلص مسلمانان سوه لکه عبدالله بن سلام ﷺ او دده ملګري او بعض يهودانو د دوارو قبيلو په نفاق سره ايمان زاوړی، او يو قسم جهراً وعلانية پر هوديت پاته سوه، نو د بني نضير يوه سړي د قريضه يو سړی قتل کړی. نو په دې موضوع خصومت پيدا سو، بني نضير ورته وويل چي زموږ او ستاسي تر منځ دا فيصله په جاهليت کي سوې وه چي زموږ سړی به ستاسي د قتل په سبب نه وژل کيږي او صرف شپېته وسق خورما به درکوو اوس هم هغه فيصله ده. نو بني قريضه وو ورته وويل چي دا خو زموږ او ستاسي فيصله وه د جاهليت په وخت کي چي تاسي بني نضير پر موږ برواست اوس خو موږ او تاسي سره وروڼو يو دين مو يو دی يعنې اسلام فلا فضل لکم علينا في الدين. نو منافقانو ددوی وويل چي راځئ چي پر ابو برزة اسلمي چي کاهن و فيصله وکړو. او مسلمانانو مخلصانو ددوارو ډلو وويل چي عليه الصلوة والسلام ته به ورسو هر څه چي په دين د اسلام کي حکم و هغه ته به غاړه کښېږدو فانزل الله آية القصاص وهذه الآية من قوله تعالى "الم تر الى الذين" بيا تر پايه پوري، نو پر دې شان نزول مراد له طاغوت څخه ابو برزة اسلمي کاهن دی.

**درويش وايي**: چي فوائد شتّى متعلق په اولوا الامر پوري دادي.

(۱) قال رسول الله ﷺ که چا معامله کول د خلګو سره يعني والله اعلم من الامر نو يې ظلم نه کاوه پر دوی او چي خبري به يې کولې د خلګو سره درواغ به يې نه ورته ويل، او چي د خلګو سره به يې وعده وکړه خلاف د وعدې يې نه کاوه فهو من کملت مروّته وظهرت عدالته ووجب اخوته يعني رعيت بايد ده ته د ورور په ستر ګو وګوري يعني اطاعت يې وکړي.

(۲) لابد للامراء من خوف الله وخشيته باجراء الشرائع والاحکام الاسلامية واجراء السنن النبي ﷺ حتى يملأ الله قلوب الناظرين اليهم رعباً وهيبةً يعني وان کان الهيبة في الظاهر کالخلفاء الراشدين ﷺ ومن مشى على اقدامهم.

**درويش وايي**: چي موصوف په دغو صفاتو سره امراء په اوسني زمانه کي هيڅ نسته اللهم الا نادراً کما لايخفى.

(۳) تاریخ اسلامي وايي چي د روم بادشاه و امیر المؤمنین عمر ﷺ ته بعضې جامې او څه خوراکي مواد د خپلو حکومتي خلګو په لاس سره د جاه او جلال ورکړه، نو هغه قاصدان چي مدینې منورې ته راغله پوښتنه یې وکړه چي د امیر المؤمنین قصر چېرې دی، نو خلګو ورته وویل چي امیر المؤمنین یو لوی سرای هم نه لري فضلاً عن القصر کما توهمتم بلکې هغه په یو ډېر کوچني سرای کې ژوند کوي چي د سرای دروازه یې توره ده او د سرای دېوال یې نهایت زوړ دی. نو یو چا چي یې سرای ور وښووی. دوی چي دروازه ور وټکول عبدالله بن عمر ﷺ ورته راووتی او قاصدانو ته یې وویل چي هغه اوس کور ته دوه دی. وخوړل او دره یې واخستل دباندي ووتي بیا چي عبدالله بن عمر ﷺ وکتل عمر ﷺ د یو دېوال و سایې ته بیده و دره یې تر سر لاندي کړې وه. نو یې قاصدانو ته وویل چي هغه دی امیر المؤمنین بیده دی. قاصدان چي راغله ورته ودرېدل عمر ﷺ یې په خواره خوب بیده ولیدی. نو یې داسې وویل "عدلت عدالت دي کړی د رعیتو سره "فامنت" نو زړه دي بېغمه دی "فنمت حیث شئت" نو بیده یې هر ځای چي دي زړه غواړي "وامرائنا ظلموا فاحتاجوا الی الحصون والجیوش" او زموږ امیرانو ظلمونه کړي دي، نو ځکه دوی د خپل محافظت لپاره مجبور دي وقلعو او لښکروته........ سعدي شیرازي قدس سره وايي

| | |
|---|---|
| بادشاهی که طرح ظلم افگند | پای دیوار ملک بکند |
| نکند جور پیشه سلطانی | که نیاید زگرگ چوپانی |

اردشیر وايي چي دینداري د سلطنت تادای دی او عدل یې چوکي داري ده، نو هغه دېوال چي پر مځکه تادای نه لري هغه ژر نړېږي. او هغه بادشاهي چي چوکیدار نه لري له منځه ځي، قال العلماء الظلم عار وجزائه نار والاجتناب عنه واجب علی کل مسلم وعاقل ولو کان کافراً" نه وینئ چي نوشیروان سره له کفره په عدل سره د نوشیروان عادل نوم د تاریخ په پاڼو کې ثبت کړی. او حجاج بن یوسف سره د ظاهري مسلماني د ظلم په سبب د سفاک نوم په تاریخ کې پرېښو ومن الله التوفیق...... بیت

د عبید په زړه کې نور نور ډېر شیان دي
که یې بیان کړي حاسدان هر ګوره ډېر دي

وَقَدْ أُمِرُوٓا۟ أَن يَكْفُرُوا۟ بِهِۦ وَيُرِيدُ ٱلشَّيْطَٰنُ أَن يُضِلَّهُمْ ضَلَٰلًۢا بَعِيدًا ﴿٦٠﴾

او حال دا دی چې دوی امر کړه سوي وه یعنې د الله پاک له خوا چې دوی دې کفر کوي په طاغوت سره یعنې له طاغوت څخه دې مخالفت کوي که طاغوت انسي وي لکه کعب بن الاشرف او یا ابو برزة اسلمي. او که طاغوت جني وي لکه ابلیس و اولاده واتباعه. او اراده لري شیطان چې تاسي ګمراهان کړي په ضلال بعید سره له حق څخه.

حاصل د آیت دا دی چې مسلمانان به مخالفت کوي له طاغوته د هر قسم د اقسامو مذکوره وو چې وي. او دا غه رنګه مؤمنان مامور دي په دې سره چې دوی به مخالفت کوي د یهودانو او نصارٰی وو خصوصاً الامریکیین والانکلیسیین. او مخالفت به کوي له کاهنانو او شیطانانو څخه او بېزاري به کوي له دوی څخه.

**درویش وایي**: چې بد دی حال د هغو کسانو چې امریکایان یې هم کاسه او هم کوزه وي او هم دوی یې اهل مشوره وي. قال رسول الله ﷺ من اتٰی کاهناً" یعنې غیب ویونکي ته "فصدقه بما یقول" او تصدیق یې وکړی په هغو خبرو چې کاهن کولې "او اتٰی حائضاً" یعنې جماع یې وکړه د ماینې سره په وخت کې د حیض "او اتٰی امرئة في دبرها" او وطي یې وکړې د ماینې سره په دبره کې "فقد برئ مما نزل علی محمد" نو له هغه دین څخه چې پر محمد ﷺ نازل سوی دی بېزاره سو. روی هذا الحدیث اصحاب السنن بسند صحیح عن ابي هریرة ﷺ قاله المظهري

وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا۟ إِلَىٰ مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ وَإِلَى ٱلرَّسُولِ

او چې وه به ویل سوه و منافقانو ته چې تاسي راسئ و هغه شي ته چې خدای ﷻ نازل کړی دی او رسول الله ﷺ ته راسئ.

**پوه سه**: چې مو ږ ضمیر د "لهم" و منافقانو ته راجع کړی. ولې چې دا آیت په

شان کي ددوی نازل سوی دی بقرینة مابعیده. او له عطف څخه د "ولی الرسول" په قرینه ددې چې اصل په عطف تغایر دی بین المعطوفین چې "الی الرسول" غیر دی لـه "ماانزل الله" څخه چې قرآن دی. او داغسـي هم ده ولـي چې رسول الله ﷺ به گاهي حکم کاوه په وحي غیر متلو سره چې آحادیث مبارکه وه چې راغي. او گاهي به یې اجتهاد سره کاوه علی من جوز الاجتهاد للنبي ﷺ.

## رَاَيْتَ الْمُنٰفِقِيْنَ يَصُدُّوْنَ عَنْكَ صُدُوْدًا ۝٦١

ته وینې چې منافقان ستا څخه روی گرداني کوي وېل چاته. ولې چې په بل چا کي دوی د رشوت ځای هم ویني او د قومیت ځای هم ویني. او په تا کي هیڅ شی بېله حق ویلو منافقان نه ویني.

**پوه سه:** چې "صدوداً" مفعول مطلق دی د "یصدون".

**پوښتنه:** خدای ﷻ دمخه ومنافقانو ته د "لهم" ضمیر راوړی او دلته یې اسم ظاهر د دوی راوړی حکمت یې څه دی؟

**ځواب:** حکمت تقبیح ددوی د حال ده په دغه اسم قبیح سره.

**درویش وایي:** چې منافق او حق ویونکی ضد دي، منافق د حق گویه تل خلاف وي.

## فَكَيْفَ

استفهام لپاره د تعجب دی وحال ته د منافقانو. والمعنی فکیف لایستحیون من قولهم الآتي مع ظهور حالهم لکل ذی بصیرة.

## اِذَآ اَصَابَتْهُمْ مُّصِيْبَةٌ

چې دوی ته ورسېږي یو مصیبت چې عمر رضی الله عنه د دوی یو منافق مر کړی کمامر.

**پوه سه:** چې "اذا" دلته د صرف ظرفیت لپاره دی نه د استقبال لپاره کما هو اصل معناه لان المصیبة المذکورة امر ماض ههنا.

## بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيْهِمْ

چې دوی وروسته تر حکم د علیه الصلوة والسلام و عمر رضی الله عنه ته محاکمه وروړه

ثُمَّ جَآءُوكَ

بیا تا ته راسي یا د عذر لپاره او یا د طلب د دم المقتول لپاره.

يَحْلِفُونَ بِاللَّهِ إِنْ أَرَدْنَا إِلَّا إِحْسَانًا وَتَوْفِيقًا ﴿٦٢﴾

دوی قسمونه اخلي حلفاً كاذباً لظهور حالهم. زمونږ نه وه اراده په تحکيم د عمر ﷺ مگر نه فیصله په منځ کې د خصمينو په وجه حسن سره، او موافقه د خصمينو مو غرض وه، یعني ستا مخالفت مو غرض نه و او نه ستا له حکمه سخط یعني بغض کوو، یعني مونږ بېربدلو چې عليه الصلوة والسلام خو حق حکم کوي او حق خو ترېخ وي، نو طرف د متخاصمينو به له تا څخه ناراضه سوی وای او زمونږ اصل غرض صلح ددغو متخاصمينو په منځ کې وه او ستا څخه بېربدلو چې تا به صلح نه وای کړې، نو عمر ﷺ ته مونږ له دې جهته ورغلو چې دی به صلح وکړي او متخاصمين به سره راضي کړي.

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ يَعْلَمُ اللَّهُ مَا فِي قُلُوبِهِمْ

دوی هغه کسان دي چې خدای ﷻ خبر دی په هغه شي چې ددوی په زړو کې دی یعني نفاق، نو کاذب قسمونه ددوی ته فائده نه کوي.

فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ

نو ته مخ واړوه د قبول د عذر ددوی او یا د دوی له مطالبې څخه د دم د مقتول دده چې عمر ﷺ قتل کړې فان دمه هدر.

وَعِظْهُمْ

او دوی ته نصیحت وکړه چې نفاق پرېږدئ او په اخلاص مسلمانان سئ.

وَقُل لَّهُمْ فِي أَنفُسِهِمْ قَوْلًا بَلِيغًا ﴿٦٣﴾

او ووایه دوی ته په باره کې د ځانو ددوی یو قول بلیغ مؤثر في القلوب. او حسن بصري ﷫ وایي چې قول بلیغ دادی چې دوی ته ووایه چې یو وخت به خدای ﷻ ناگاه ستاسي د قتل حکم صادر کړي. ولې داسي بېرول ددوی د زړه



Scanned by CamScanner

پېغ ته رسېږي او بعض مفسرین ددې آیت داسې ترجمه کوي فاعرض عنهم ای عن عقابهم لئلا یقول الکفار ان محمداً یقتل اصحابه فیعرض النضرة في قلوبهم عن الاسلام وعظهم ای باللسان وقل في انفسهم آه. یعنې في الخلوة ولې چې نصیحت په پټه گټور دی تر علانیت نصیحت.

## وَمَآ اَرۡسَلۡنَا مِنۡ رَّسُوۡلٍ اِلَّا لِيُطَاعَ

موږ نه دی استولی یو رسول له رسولانو څخه مگر نه ددې لپاره چې دده اطاعت دې وکړه سي. لان اطاعة الرسول اطاعة الله وهو مقصود من الرسالة.

**پوه سه**: چې استثناء دلته مفرغه ده ای ما ارسلناه لشیئ من الاشیاء الا لیطاع.

## بِاِذۡنِ اللّٰهِ

ای بسبب اذنه تعالی وامره المبعوث الیهم چې دوی به ددغه اطاعت کوي، نو څوک چې په حکم د رسول نه وي راضي او اطاعت یې نه کوي، نو مستحق د قتل دی، ولې چې دغه سړی خو رسالت د دغه رسول نه مني لکه عمر ﷺ چې هغه منافق قتل کړی چې د علیه الصلوة والسلام په حکم نه و راضي.

## وَلَوۡ اَنَّهُمۡ اِذۡ ظَّلَمُوۡۤا اَنۡفُسَهُمۡ

که چېرې دغه منافقین هغه وخت چې دوی ظلم کړی وپر خپلو ځانو باندې په سبب د نفاق او د تحاکم الی الطاغوت.

**پوه سه**: چې کلمه د "لو" چونکه فعل غواړي. نو ځکه یې مفسرین داسې بولي ولو ثبت انهم آه.

## جَآءُوۡكَ

که راغلي وای وتاته اې محمد ﷺ یعنې په اخلاص سره او له نفاق څخه یې توبه کښلې وای.

**پوه سه**: چې "جاؤاک" خبر دی د "ان" واذا الظرفیة متعلق به.

## فَاسۡتَغۡفَرُوا اللّٰهَ

او طلب د بخښنې یې له خدای څخه کړی وای په توبه سره له نفاقه او علیه الصلوة والسلام ته یې عذر کړی وای مما فعلوا بالاخلاص وصمیم القلب.

# وَاسْتَغْفَرَ لَهُمُ الرَّسُوْلُ

او طلب د بخښنې کړې وای دوی لره رسول ﷺ.

**پوه سه**: چي داسي يې نه وويل فاستغفرت كما هو مقتضى الخطاب في قوله جاؤاک لپاره د تعظيم د شان د عليه الصلوة والسلام په وصف سره د رسول، او لپاره د تنبيه پر دې چي شان د رسول دادی چي عذر د مجرم قبلوي ولو كان الجرم عظيماً.

# لَوَجَدُوا اللّٰهَ تَوَّابًا رَّحِيْمًا ﴿۶۴﴾

دوی به پيدا کړی وای خدای ﷻ يعني يقين به يې سوی وای پر خدای ﷻ چي قبلونکی د توبې دی چي په اخلاص سره وي. او زائد پر قبول د توبې رحم کونکی دی في الغاية چي سيئات د تائب په حسناتو وربدلوي.

**پوه سه**: چي شان نزول د وروسته آيت په اتفاق د ائمة الحديث الستة داسي بيان سوي دي چي زبير بن العوام ﷺ د انصارو د يو سړي سره خصومت يعني دعوه وه په واله کي د حرة يعني يو جاري مانده وچي دواړو خپلي مځکي په اوبه ولې لکن د زبير ﷺ مځکه لوړه وه چي ولې ته يې بند نه وای ور اچولی اوبه نه ورختلې. نو انصاري ورته وويل چي ولې ته به بند نه ور اچوې که ستا مځکي ته درخېژي او که نه. نو دا موضوع و عليه الصلوة والسلام ته پېش سوه. نو عليه الصلوة والسلام و زبير ته وويل چي ته والې ته بند ور اچوه چي ستا مځکه اوبه سوه بيا يې انصاري ته ور ايله کوه. نو انصاري و عليه الصلوة والسلام ته وويل چي تا دا حکم له دې سببه وکړی چي زبير ﷺ ستا د عمه زوی دی. نو د عليه الصلوة والسلام رنګ ډېر تغير سو، ورروسته عليه الصلوة والسلام وزبير ته وويل چي خپله مځکه اوبه کړه بيا تر هغو اوبه انصاري ته مه ور ايله کوه څو اوبو د مځکي پندلو نه وي پټ کړي، نو انصاري چي عليه الصلوة والسلام ته درد ورروستي زبير ته يې پوره خپل شرعي حق ورکړی او دمخه چي کومه فيصله عليه الصلوة والسلام کړې وه او زبير ته يې صرف دا ويلي وه چي ستا مځکه صرف اوبه سوه انصاري ته اوبه ور ايله کوه د دواړو مراعات عليه الصلوة والسلام کړي وه، چي انصاري و عليه الصلوة والسلام

ته درد ورورستي نو زبير ته يې خپل پوره حق ورکړي.

**پوښتنه**: انصاري څرنګه داسي د ادب خلاف خبره و نبي ﷺ ته کوله؟

**ځواب**: دا سړی د اوس يا د خزرج د قبيلې منافق و. انصاري يې په دې وباله چي په نصب ددوی سره شريک و.

**پوښتنه**: بعض مفسران لکه بغوي رحمه الله وايي چي دغه سړی چي له زبير رضي الله عنه سره يې دعوه وه حاطب بن ابي بلتعة و. لکن مظهري رحمه الله وايي چي دا خبره غلطه ده. ولې چي حاطب خو انصاري نه و بلکې مهاجر و. او بل کامل مسلمان و چي د بدر په غزاء کي هم شامل سوی و. نو څرنګه به هغه داسي کفر امېزه خبره و عليه الصلوة والسلام ته کوله.

**درويش وايي**: چي بغوي رحمه الله روايت کوي چي دغه دوه کسان يعني زبير رضي الله عنه او هغه بل په نامه انصاري چي د عليه الصلوة والسلام له خوا راووتل مقداد بن الاسود رضي الله عنه په لاره کي ولاړ و او يو يهودي هم له مقداد سره ولاړ و. نو مقداد پوښتنه ځني وکړه چي دعوه چا وګټل؟ هغه انصاري ورته وويل چي دعمه زوی يې وګټل او د خولې کونج يې سره کش کړی له پسخنده. يهودي پوه سو چي استهزاء يې په حکم د عليه الصلوة والسلام وکړه، نو يهودي وويل قاتل الله هؤلاء يشهدون انه رسول الله او بيا يې قضاء او حکم متهم بولي. يعني د عمه د زوی مراعات يې وکړی. نو له دې روايت څخه صراحةً معلومه سوه چي مخاصم د زبير رضي الله عنه منافق و لان الاستهزاء بحکم رسول الله ﷺ کفر باجماع الامة المرحومة.

**فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ**

**درويش وايي**: چي بعض مفسرين وايي چي کلمه د "لا" زائده ده کما في "لااقسم بيوم القيامة" او ربک قسم دی، او بعض مفسرين وايي چي کلمه د "لا" لپاره د نفي ده ای ليس الامر کما فعل الذين يزعمون انهم مؤمنون ثم لا يرضون بحکمک ثم استانف القسم بقوله وربک "قسم په رب ستا دی چي دوی مؤمنان نه سي کېدای.

حَتّٰى يُحَكِّمُوْكَ فِيْمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ

تر هغه وخته پورې چې دوی په تا محکم کړځوي په هغه منازعاتي او مختلف فیها احکامو کې په منځ کې ددوی لکه د زبیر او انصاري چې په والـه کې د حره اختلاف وو او ته یې محکم کړې.

ثُمَّ لَا يَجِدُوْا فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوْا تَسْلِيْمًا ﴿٦٥﴾

**پوه سه**: چې جمله د "ثم لا یجدوا" عطف ده پر "یحکموک" باندې، والمعنی وروسته ستا تر محکم والي به نه پیدا کوي په زړو کې خپل تنګي او شک د هغه حکم څخه چې تا قضا په وکړه او تسلیمېږي به وتا ته انقیاداً وطوعاً بلا کراهة لحکمک "تسلیماً" مفعول مطلق دی.

**پوه سه**: چې په دې آیتو کې دلیل دی پر دې چې که چا رد کړی یو شی له احکامو څخه د او یا له اوامرو څخه د رسول اللهﷺ، نو هغه د اسلام د فراخي دائرې څخه ووتی خو رد یې په سبب د شک وي یا پر وجه د سرکښی.

والدلیل علی هذا چې صحابه کرامو ﷺ پر مانعینو د زکوٰت یعني پر وجه د انکار له فرضیت څخه د زکوٰة او دوی ویل چې دا صرف یو معاونت چې مورد علیه الصلوة والسلام کاوه وروسته تر وفات د علیه الصلوة والسلام حکم د ارتداد وکړی او جنګ یې ورسره وکړی او اولادونه یې په سبي ځني راوستل.

**پوه سه**: چې متابعت د رسول اللهﷺ فرض عین دی په فروض عینه وو کې او فرض کفایي دی په فرض کفایه وو کې کصلوة الجنازة مثلاً، او واجب دی په واجباتو کې لکه وتر اضحیه وغیرهما، وسنة في السنن وهکذا، ومخالفته تزیل نعمة الاسلام اعاذنا الله تعالی.......... سعدي رحمه الله

خلاف پیمبر کسی ره گیرند　　　که هرگز بمنزل نخواهد رسید

نو نبي کریمﷺ دلیل دی د حق د لارې او مخالفت یې دلیل د ضلالت دی، حافظ شیرازي وایي

بکوی عشق منه بې دلیل راه قدم　　　که من بخویش نمودم صد اهتمام ونشد

وفي الحدیث الصحیح قال رسول اللهﷺ لا یؤمن احدکم حتی یکون هواه تبعاً

لما جئت به.

## وَلَوْ اَنَّا كَتَبْنَا عَلَيْهِمْ

اى لو ثبت ولي چي وروسته تر لو فعل ضروري دى كه موږ فرض كړو پر دغو كسانو چي وايي چي موږ ايمان راوړى دى او سره د هغه ستا په حكم نه وي راضي وهم المنافقون لان سوق الكلام في المنافقين. او دا نه ده روا چي ضمير د عليهم دي وتولو مؤمنانو د زمانې د عليه الصلوة والسلام راجع وي اى الصحابة ﷺ، ولي چي څرنگه به صحيح وي حكم پر صحابه كرامو كه زه پر دوى يو شى فرض كړم دوى يې نه كوي، او سره ددې چي خداى ﷻ مدح د اصحابو كړې ده په دې آيت سره "كنتم خير امة اخرجت للناس" وقوله تعالى في حقهم "يسارعون في الخيرات" او عليه الصلوة والسلام ويلي دي خير القرون قرني والصحابة داخلون في قرنه ﷺ. او بل دليل دادى كه ضمير راجع وي و اصحابو ته د عليه الصلوة والسلام، نو بايد چي اصحاب د موسى ﷺ افضل واى تر اصحابو د عليه الصلوة والسلام ولي چي اصحاب د موسى ﷺ چي امر سوه په توبه كي د عبادت العجل په قتل د ځانو هغو هم دغه كار وكړى.

## اَنِ اقْتُلُوْٓا اَنْفُسَكُمْ

چي خپل ځانونه مړه كړئ اى يقتل بعضهم بعضاً يعني في التوبة عن اعراضكم عن حكمك الى غيرك لكه بني اسرائيل چي په زمانه كي د موسى په توبه كي د عبادة العجل په دهغه قتل الانفس امر سوي وه.

## اَوِ اخْرُجُوْا مِنْ دِيَارِكُمْ

او يا وځئ له خپلو وطنو څخه او له خپلو ساريو څخه لكه بني اسرائيل په خروج له مصر څخه امر سوه.

## مَّا فَعَلُوْهُ اِلَّا قَلِيْلٌ مِّنْهُمْ

نه به واى دغه كار چي قتل د ځانو دى او يا وتل د خپلو وطنو او سرايو دى مگر لږو كسانو ددوى.

**درویش وایي**: چې په دې مقام کې یو دقیق سوال ستد هغه دا چې روح البیان ضمیر د "علیهم" ومنافقانو ته راجع کړی دی حیث یقول علی هؤلاء المنافقین، وروسته یې په تفسیر کې د الا قلیل منهم داسي ویلي دي وهم المخلصون، نو سوال دادی چې مخلصین خو په منافقینو کې نه وه داخل. نو استثناء څرنګه ځني صحیح کېږي. او داسې ځواب هم څوک نه سي ورکولای چې استثناء منقطع ده. ولې چې ضمیر د منهم چې راجع و منافقانو ته دی په مستثنی کې موجود دی.

**درویش وایي**: چې ددې سوال ځواب مظهري رحمه الله داسې ورکړی دی بتوفیق الله تعالی ایاهم للاخلاص بعد النفاق.

**درویش وایي**: چې دا صرف یو احتمال دی. نو صحیح په ځواب کې د اشکال مذکور دادی چې ضمیر د علیهم راجع سي و منافقینو ته په شمول د بعض قلیل د مؤمنانو لکه اهل البدو. نو استثناء به صحیح سي. او د قلیل منهم څخه به اراده د مخلصانو هم صحیح سي او حکم د قلت به هم صحیح سي فتامل تاملاً دقیقاً والله اعلم بالصواب والیه المرجع والمآب.

وَلَوْ اَنَّهُمْ فَعَلُوْا مَا يُوْعَظُوْنَ بِهٖ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ وَاَشَدَّ تَثْبِيْتًا ۝

او که چېرې دوی کړی وای هغه کار چې دوی ته نصیحت په هغه کار سره کېږي چې متابعت دی د رسول ﷺ په خوښه سره او په کمال رغبت سره، نو ددوی لپاره به دا متابعت خیر وایي یعني په دنیا او اخرت کې، او ډېر ښه به وایي از روی تحقیق د ایمان ددوی یعني ایمان به یې له شک او شبهې څخه وتلی وای.

**یوه سه**: چې نصب د "تثبیتاً" بناء دی پر تمیز له نسبت څخه د اشد وفاعل ته.

**یوه سه**: چې حسن بصري او مقاتل رحمهما الله وایي چې دا آیت چې نازل سو حضرت عمر، عمار بن یاسر، عبدالله بن مسعود او نورو ګڼ شمېر صحابه وو رضي الله عنهم وویل والله لو امرنا یعني بقتل الانفس لفعلنا والحمد لله الذي عافانا" یعني په دې امر مشکل سره یې نه کړو مکلف، نو علیه الصلوة والسلام ته چې ددوی دا خبره ورسېده داسې یې وویل "ان من امتي لرجالاً الایمان في قلوبهم اثبت من

الجبال الرواسي" په تحقیق زما په امت کي داسي کسان سته چي ایمان ددوی په زړو کي محکم دی تر پر خپل ځای ولاړو غرو.

**وَإِذًا**

یعني که دوی دا فعل کړی وای "وهذا عطف على قوله تعالى لكان خيراً لهم"

**لَّآتَيْنَاهُم مِّن لَّدُنَّا أَجْرًا عَظِيمًا ﴿٦٧﴾**

موږ به ورکړی وای له خپلي خوا څخه تفضلاً ثواب زائد تر اعمالو ددوی. او ثواب د تثبت پر دین باندي ثواب لوی یعني ثواباً لا یقادر قدره لان ماعده العظيم جل جلاله عظيماً فلا يحيط به الفهم والعقل.

**وَلَهَدَيْنَاهُمْ صِرَاطًا مُّسْتَقِيمًا ﴿٦٨﴾**

او موږ به دوی ته هدایت کړی وای د لاري سمي چي تګ پر هغه لاره سړی و خدای ﷻ ته رسوي. وفي الحديث الصحيح "من عمل بما علم ورثه الله علم مالم يعلم" که څوک عمل وکړي په هغه علم چي ده زده کړی دی خدای ﷻ به و هغه ته میراث ورکړي د هغو شیانو د علم چي دده نه و زده. وفي الحديث الصحيح "لايكون احدكم كالعبد السوء ان خاف عمل يعني والا لا. ولا كالاجير السوء ان لم يعط لم يعمل. وكن ماقيل من لم يركب الاهوال لم نيل الاموال.

**درویش وایي:** چي اموال خسیسه عند الله بیله د ډېرو شدائدو نه پیدا کېږي فکیف ینال رضى الملك الجبار والاقامة في دار القرار بدون احراق اهواء النفس الامارة بعشق ونار. رزقنا الله تعالى واياكم رضى العزيز الغفار في الحيوة المستعار.

**درویش وایي:** لکه څنګه چي د امراض ظاهره وو دواګاني سته. داغه زنګه د عصیان د مریضانو مجربه دوا سته وهو التوبة بالاخلاص بحيث لا يعود الى الذنب كما لا يعود الحليب الى الضرع.

**درویش وایي:** چي په یو حدیث کي راغلي دي چي بعض محدثینو حسن ګڼلی دی. چي یو سړی و علیه الصلوة والسلام ته راغلی او وه یې ویل "یارسول الله انک لاحب الي من نفسي وولدي" ته پر ما ګران یې تر ځان او تر عیال، او زه چي ګاهي

پر کور یم ستا محبت مي په زړه کي راسي، نو مي په کور کي صبر نه کېږي حتی چي زه راشم او ستا مبارک مخ ونه وینم "واذا ذکرت موتي وموتک عرفت انک اذا دخلت الجنة رفعت مع النبیین واني ان ادخلت الجنة خشیت ان لا اراک" او زه چي په یاد کړم خپل مرګ او ستا مرګ زه پوهېږم چي ته چي داخل سې و جنت ته ته به پورته کړه سې د نبیانو ومقام ته یعني د هرو مقاماتو ته د جنت او که زه چیري داخل سم و جنت ته زه بېرېږم چي په جنت کي به تا ونه وینم ولي چي ته به په اعلی درجاتو کي د جنت مقیم یې او زه به په ډېرو کښتو درجو کي د جنت یم. یعني نو څرنګه به دي ووینم او بیا به مي صبر څرنګه کېږي؟ علیه الصلوة والسلام هیڅ ځواب ور نه کړی حتی چي جبرائیل ﷺ دا آیت نازل کړی.

## وَمَنْ يُطِعِ اللَّهَ وَالرَّسُولَ

څوک چي اطاعت وکړي د خدای ﷻ په اداء کي د فرائضو او داغه رنګه په ترک کي د منهیاتو قطعیه وو او اطاعت وکړي په اداء کي د سنتو.

## فَأُولَٰئِكَ مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِم مِّنَ النَّبِيِّينَ

نو دغه کسان ملګري وي د هغو کسانو چي خدای ﷻ د هغو کسانو احسان کړی دی او نعمت یې ورکړی دی په دنیا او آخرت کي چي هغه عبارت دانبیاء علیهم السلام دی.

**پوه سه:** چي بغوي رحمه الله وایي چي دا آیت په شان کي د ثعبان رضی الله عنه چي ازاد شده مریی و د علیه الصلوة والسلام او ډېر سخت محبت یې د علیه الصلوة والسلام سره درلودی او د علیه الصلوة والسلام له لیدو یې هیڅ صبر نه درلودی یوه ورځ ثعبان رضی الله عنه و علیه الصلوة والسلام ته راغلی رنګ یې ډېر تغیر خوړلی و او په مخ کي یې آثار د غم اوحزن ښکاره کېدل، نو علیه الصلوة والسلام پوښتنه ځني وکړه چي ولي متغیر اللون او مغموم یې؟ ثعبان رضی الله عنه ورته وویل چي زه نه ناجوړی یم او نه مي پر یو ځای درد سته لکن زه چي تا ونه وینم ډېر سخت وحشت راته پیدا کېږي تر هغو چي تا وینم. اوس زما آخرت پیاد سو او دا

مي په زړه کي راوګرځېدل چي په ورځ د قيامت خو به عليه الصلوٰة والسلام په درجات عاليات کي د انبياء عليهم السلام وي او زه که جنت ته ورهم سم په کښته منازلو کي به يم، نو تا به نه وينم نو زه به څرنګه صبر کوم په دې سبب مي رنګ تغير خوړلی دی او مغموم يم فانزل الله هذه الآية.

**درويش وايي:** چي مفسرين وايي چي عبرت عموم لره لفظ دی چي "فاؤلئک" دی خصوص لره مورد نه دی. او درويش وايي چي ددې آيت مختلف شان نزولونه په احاديثو کي راغلي دي لکن منافات نه سره لري په ټولو کي دي نازل وي.

**فائده:** په يو صحيح حديث کي راغلي دي چي صحابه کرامو ﷺ له عليه الصلوٰة والسلام څخه پوښتنه وکړه چي څرنګه به وي زموږ او ستا ملاقات په جنت کي "وانت في الدرجات العاليات من الجنة ونحن في المنازل السافلة منها" نو عليه الصلوٰة والسلام داسي ځواب ورکړی "ان الاعليين ينحدرون الى من هو اسفل منهم فيجتمعون في رياضها فيذكرون ما انعم الله عليهم ويثنون عليه"

**ژباړه:** د لوړو درجو خلګ راکښته کېږي الى من هو اسفل و جنت ته، هغه چا چي تر دوی کښته دي له جنتيانو څخه، نو دوی يعني اعلى او اسفل په باغو کي د اسفل د جنت سره جمع سي، نو دوی يو له بل سره د خدای ﷻ د نعمتو بيان کوي پر دوی باندي او حمد وايي د خدای ﷻ پر ما انعم باندي.

**درويش وايي:** چي يو دار الاقامة او منزلت د عالي او د سافل دی هغه خو سره جلا دی، او يو ځای کېدای نه سي، او يو ملاقات او ليدل دي د سافل سري لکه صحابه کرام ﷺ او نور اولياء کرام رحمهم الله علي المرتبة والمنزلة لره لکه عليه الصلوٰة والسلام چي محبوب د ټولو و هغه ته لار خلاصه ده لکه په دې نژدې حديث کي چي بيان سوه، او عين ممکنه ده که څه هم ممنوع نه ده بعض سوافل دي د ملاقات او ديدار لپاره په اجازه د لوړو درجو لرونکو و ملاقات ته دوی په منازلو کي د هغو بعض اوقات ورسي لکه په دې دنيا کي چي يو مريی په اجازه د مولی د هغه کور ته د ملاقات لپاره ورتلای سي.

**درويش وايي:** چي مسلم، ابو داؤد او نسائي له ربيعه بن کعب اسلمي ﷺ

څخه روايت کړی دی، ربيعه رضي الله عنه چي ما به د اوداسه اوبه او نور د ضرورت شي لکه مسواک وغيره و عليه الصلوة والسلام ته وروړی، نو يوه ورځ يې راته وويل "سلني" زما څخه يو شي وغواړه؟ ما ورته وويل يا رسول الله ﷺ "اسئلک مرافقتک في الجنة" زه ستا څخه غواړم يو ځای ستا سره په جنت کي. عليه الصلوة والسلام راته وويل "اوغير ذالک" يا بل شي وغواړه. ما ورته وويل "هو ذاک" زما سوال هم داغه دی" يعني د بل شي سوال نه کوم. عليه الصلوة والسلام راته وويل "فاعني على نفسک بکثرة السجود" يعني زما سره ته کومک وکړه ستا پر نفس باندي يعني ته به زما سره په جنت کي يو ځای کېږي په ډېرو سجدو سره يعني لمونځو سره. له دې حديث څخه دا معلومه سوه چي مرافقت د ربيعه بن کعب رضي الله عنه د عليه الصلوة والسلام سره په جنت کي چي عليه الصلوة والسلام منظور کړی لکن دا له خواصو څخه د ربيعه رضي الله عنه دی والله اعلم بالصواب.

**فائده**: په دې آيت کي خدای جل جلاله کلمه د "نبيين" وويل او لفظ د "مرسلين" يې نه وو، په حکمت يې څه دی؟

**ځواب**: عدد د انبياء على نبينا وعليهم الصلوة والسلام ډېر دی تر رسولانو، په صحيح حديث کي راغلي دي چي له عليه الصلوة والسلام څخه چا پوښتنه وکړه "کم النبييون" انبيا څو دي. ده ورته وويل "مائة الف واربعة وعشرون الفا" وفي رواية مائة الف واربعة وعشرون الفا" بيا هغه چا پوښتنه ځني وکړه چي رسولان به دوی کي څو دي؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل درې سوه ديارلس جماً غفيراً.

**مسئله**: د انبياء عليهم السلام په ايمان کي دي عدد معين نه ذکر کوي لما علمت من اختلاف الروايتين بلکي داسي به وايي چي زما پر ټولو انبياء عليهم السلام باندي ايمان دی. او د رسولانو په عدد کي اختلاف نه سته. نو که مرسلين ذکر سوي وای فقط درې سوه ديارلس ته به شامل وای. فافهم هذه الفائدة الجديدة في هذه الآية الکريمة.

وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَآءِ وَالصّٰلِحِينَ

عطف دی پر نبيين باندي.

**پوه سه:** چي په دې آیت کي خدای ﷻ الذين انعم الله عليهم پر څلورو برخو وېشلي دي پر ترتیب د منازلو ددوی في القرب الى جنابه تعالى وتقدس. اوله ډله په انبیا علیهم السلام وبلله څکه چي دوی سره له کمال خدا داده په تکمیل د نورو انسانانو په توحید او نورو صفاتو عالیه وو او اعمال صالحه وو سره وبذل غاية مجهودهم في هذا الطريق وتحمل المشاق والشدائد والصبر عليها في ابلاغ الهداية الى كافة الخلق. نو انبیا علیهم السلام پس له کمال علمي او عملي پر تکمیل د نورو هم گمارل سوي دي.

او دویم قسم یې صدیقون ذکر کره چي صدیق صیغه د مبالغې ده ای المبالغ في الصدق والاخلاص في الاقوال والافعال الى النهاية التقوى چي قوت نظري او قوت عملي ددوی وغاية الصفا ونهاية التهذيب ته رسېدلی دی.

او دریمه درجه یې شهدا. دي چي د غاية حب الهي له کبله او د محبت د اعلاء د کلمة الله او د حفاظت د دين مبين د اسلام له دښمنانو څخه یې خپل خوږ ژوند او خپل گران روحان په ښیندلي دي.

او څلورمه ډله یې صالحان بندگان نامزد کړي دي چي هغو ته له امور شرعيه پر ځای کړي وي او له منهیاتو څخه د دين یې ځان ساتلی وي اللهم اجعلنا منهم.

**درويش وايي:** چي خواجه عبد الله انصاري مدفون شهر هرات قدس سره په بیان کي د څلورمې ډلې داسې ویلي دي.

حبذا قومی که داد زندگی را داده اند | ترک دنیا گفته اند واز همه ازاده اند
روزها باروزها درگوشها بنشسته اند | بازشبها در قیام بندگی استاده اند
نفس خود را قهرکرده روح کرده پر فتوح | زاد تقوی برگرفته بهر مرگ آمده اند
طرفة العيني نبوده غافل از حضرت ولي | سیلها بااین همه از دیدها بکشاده اند
یکزمان از نوح همچون نوح فارغ نیستند | همچو یحی گوئیا از بهر زاری زاده اند
زآب تاب تب الى الله غسل کرده آن کسان | روی خود برخاک پای مسجدبنهاده اند
ربنا گویند ازان لبیک عبدي می شنوند | جمله سرمست الست از جرعه این باده اند
راحتی دیدند وذوقی یا فتند از انس وجان | روز شب در کونج خلوت برسر سجاده اند

تا بدنیا آمدند از کلبه کتم عدم سوی حضرت جزنیاز وناله نفرستاده اند
پیر انصاری تو میدانی که ایشان کیستند فرقه بی کرو فروز مره دل ساه اند

درویش میگویند که اکثر اهل الله و اولیاء الله درلباسی وافعال واقوال واحوال چناچه خواجه عبدالله انصاری رحمه الله بیان فرموده میباشند. لکن گاهی اهل الله در لباس شاهی وفقر قلبی خودرا نمودار میگرداند. چناچه حضرت جامي رحمه الله درحال مرشد خود را خواجه عبید احرار قدس سره را بدین عنوان آورده اند.

چو فقر اندر قبای شاهی آمد بتدبیر عبید الله آمد

چناچه در انبیاء کرام این دو قسم موجود بوده ببین جاه وجلال سلیمان عليه السلام ونظر کن به فقر وکشنگی ماهواره حضرت سید البشر محمد ﷺ راکه موافق ابیات خواجه عبدالله انصاری بوده. راهي است که مختار پیامبر خدا محمد مصطفی بوده، وراه مرشد حضرت الجامی خواجه عبید الله رحمه الله راهی است که سلیمان بن داوٗد بر آن بوده.

درویش میگوید رائهای اولیاء الله مختلف هست لکن مقصود بالذات که تقرب الی الله ووصل عریان است یک است رزقنا الله وایاکم التقرب الی الله جل جلاله به هر طریق که باشد.

درویش میگوید که ماها علماء عصر حاضر میگویم که حدیثکه در آن آمده که "علماء امتي کانبیاء بني اسرائیل" مایان هم در آن داخل میباشم ونیز میگویم که مایان تمنٰی راههای صالحین داریم چه گوئید این دعوی واین تمنی درست است ویا خیر؟

**جواب:** این دعوه خیالست ومحالست وجنون. الا ماشاء الله واین تمنی اشتهاء کاذب است مثل اشتها مریض مرض محرقه بگوشت وغیره الا نادرآفي بعض العلماء من العصر الحاضر. زیرا که موانع سدراه والدعوی المذکور درین عصر موجود هستند بد ترین موانع تکبر است که سر چشمه آن در ابلیس بوده که به همگان معلوم است. هم ازین تکبر ابلیس پلید. سعدي شیرازي چنین حکایت نموده

تکبر عزازیل را خوار کرد بزندان لعنت گرفتار کرد

دوم حقد وحسد که سرشالان آن یهودان مدینه بودند در عصر نبوی. سوم عدم مراعات سنت نبوي ﷺ که سبب ناراضی آن حضرت ﷺ خواهد بود در قبر انور حجره مبارکه. چهارم غیبت وبهتان که اکثر ماها مثل نمک طعام استعمال مینمایند.

درویش میگوید عمر او به {۹۰} خواهد رسید تجربه بسیار دارم من علماء صالح دیده ام که علم انها فقط بر کنز وقدوری شرح الیاس مستخلص محصور بوده لکن زهد وتقوی وخوف خدا وامتثال امر الهي واجتناب از نواهی باند ازه بود که همه وهمه اولیاء الله بودند. امروز علم چهاره علوم در علماء عصر حاضر موجود است لکن در میدان عمل اسپهای آنان لنگ است ودر منهیات روان دوان میروند وفرق مختلفه هوا وهوس از دین مبین وعقائد اهل سنت والجماعة برگشتند مثل وهابیه وسلفیه وغیر آن ... ع قیاس گیر از زمستان مابهار مرا.

وَحَسُنَ أُولَٰئِكَ رَفِيقًا ﴿٦٩﴾

یعنې ښه دي دغه څلور صنفه چي ذکر کړه سوه.

**یوه سه:** چي "رفیقا" منصوب دی من نسبته حسن الی اولئک او یا حال دی له "اولئک" څخه.

**سوال:** اولئک" خو جمع دی. نو "رفیقا" يې جمع ولي راوړی؟

**خواب:** د رفیق اطلاق پر یوه او جمع دواړو کېږي.

ذَٰلِكَ

یعنې مرافقت سره منعم علیهم کي څه عمل ددوی نه وي کړی.

الْفَضْلُ مِنَ اللَّهِ

دا د خدای ﷻ فضل او احسان دی.

**یوه سه:** چي "ذالک" مبتدا، ده او "الفضل" يې صفت دی او خبر يې "من الله" دی او یا "الفضل" خبر دی د "ذالک" او "من الله" يې حال دی ای کائنا من الله.

وَكَفَىٰ بِاللَّهِ عَلِيمًا ﴿٧٠﴾

او کافي دی خدای ﷻ خبر په سبب د ذالک اللحوق.

**پوه سه:** چي کلمه د "با" زائده ده پر فاعل باندي هر ځای چي په قرآن کریم کي راسي. والحاصل ان سبب لحوق المحب بالمحبوب من عمل کعمله وذالک المحبة امر لا یعلمه الا الله تعالی او کرام کاتبین هم نه دي په خبري، وعن انس ﷺ ان رجلاً قال یا رسول الله ﷺ الرجل یحب قوماً ولم یلحق بهم ای من حیث اعمالهم فقال النبي ﷺ المرء مع من احب رواه احمد والبخاري ومسلم، وفي البخاري ومسلم عن عبد الله بن مسعود وانس قال قال رجل یا رسول الله ﷺ متی الساعة قال ویلک ما اعددت لها قال ما اعددت لها الا اني احب الله ورسوله انت مع من احببت یعني الرسول ﷺ لعدم المکان لله تعالی، قال انس ﷺ فما رئیت المسلمین فرحوا بشيء بعد الاسلام فرحهم بهذا" انس ﷺ وایي ما نه دی لیدلی مسلمان چي خوشحاله سوی دی وي په یو شي پس له اسلامه لکه خوشحالي ددوی په دي قول د علیه الصلوة والسلام انت مع من احببت. ولي صحابه ﷺ ټوله محبین د علیه الصلوة والسلام غایة الحب فیکونون معه ﷺ في الجنان لا في الدرجة والمنزلة بل في الزیادة والملاقات هر وخت چي ددوی اراده سي اللهم اجعلنا منهم بفضلک وکرمک فانک علی کل شئ قدیر وبالاجابة جدیر.

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا خُذُوا حِذْرَكُمْ

ای هغه کسانو چي ایمان یې راوړی دی درسره اخلئ حذر خپل.

**پوه سه:** چي "حِذر" بکسر الحاء وسکون الدال و "الحَذَر" بالفتحتین معناهما واحد ای ما یحذر به عن العدو من السلاح والخیل وغیرهما وقد جاء المثل والمثل والاثر علی الوزنین المذکورین.

فَانْفِرُوا ثُبَاتٍ

وځئ د جهاد ته د کافرانو "ثبات" جمع ثبة په معنا د جماعت یعني عشرة فما فوقها کذا روی عن ابن عباس ﷺ، فالمعنی جماعات متفرقة او دی سرایا وایي جمع د سریة.

أَوِ انْفِرُوا جَمِيعًا ﴿٧١﴾

او یا وځئ جهاد ته سره جمع چي ودې ته غزوه وایي.

وَإِنَّ مِنكُمْ لَمَن لَّيُبَطِّئَنَّ

او په تحقیق بعض ستاسي ځنې. هغه کسان چي له جهاد ځنې تاخیر کوي او ځان کاږي وهم المنافقون. دا جمله عطف ده علی خذوا حذرکم باندې عطف القصة علی قصة الی قوله فلیقاتل.

**پوښتنه**: منافقان خو کافران وه نو په منکم کي څرنګه داخل کړه چي مراد ځني مؤمنان دي؟

**ځواب**: دخول ددوی په اعتبار د ایمان قولي او ظاهري دی لا باعتبار الکفر الباطني والقلبي.

**بوه سه**: چي مراد له "لمن آه" ځنې ابن ابی واصحابه دي چي په غزاء کي د احد یې تخلف مختار کړی.

**فائده**: کلمه د لام په "لیبطئن" کي لپاره د قسم محذوف دی تقدیره وان منکم والله لیبطئن ای یتخلفون عن الجهاد.

**بوه سه**: چي "لمن" اسم دی "ان" لام د ابتدا. چي پر داخل کړي په سبب د فصل بالخبر وهو منکم کما هو القانون النحوي.

فَإِنْ أَصَابَتْكُم مُّصِيبَةٌ

نو که تاسي ته به اې مؤمنانو ورسېدی یو غم لکه شکست او شهادت لکه په احد کي چي اووپا کسه شهیدان مسلمانانو له لاسه ورکړه او شکست یې هم په برخه سو.

قَالَ قَدْ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيَّ إِذْ لَمْ أَكُن مَّعَهُمْ شَهِيدًا ﴿٧٢﴾

نو دا منافق وېیي خدای ﷻ د پر احسان او انعام پر ما وکړی په دې سبب چي که د مسلمانانو په میدان جنګ کي حاضر وای، نو ماته په قتل په برخه سوی وای یا به مي جراحت په برخه سوی وای.

وَلَئِنْ أَصَابَكُمْ فَضْلٌ مِّنَ اللَّهِ لَيَقُولَنَّ كَأَن لَّمْ تَكُن بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُ مَوَدَّةٌ

او كه چېرې ورسېږي فضل له جانبه څخه د خداى ﷻ وتاسي ته لكه فتح پر كفارو، هر آئينه دا منافق وايي له ډېره غمه څخه كما يدل عليه التاكيد بالنون الثقيلة. او لفظ د "كان" مخفف د مثقل دى اسم يې ضمير شان محذوف دى لم تكن بالتا، واليا، قرائتان متواترتان. ولي چي اسم د "يكن" چي لفظ مودت دى او مونث غير حقيقي تذكير او تانيث د فعل دواړه يې روا دى په منځ كي ستاسي مسلمانان او د منافق.

**پوه سه:** چي جمله د "لم تكن آه" په منځ كي د "ليقولن" او مقوله د هغه چي ياليتني دى. والمعنى په داسي شان كي وي منافق لكه ستاسي او دده تر منځ مودت او شناخت نه و لان محبتهم كان المال ولم يصل اليهم شئ من الغنيمة وهذه مقوله القول.

يَا لَيْتَنِي كُنتُ مَعَهُمْ فَأَفُوزَ فَوْزًا عَظِيمًا ﴿٧٣﴾

**پوه سه:** چي اصل منادى محذوفه ده اى يا قومي كشكي زه ملګرى واى د مسلمانانو په دغه ګټور جنګ كي. نو ما په برى پيدا كړى واى لوى برى يعني الغنيمة. والمعنى ماته به هم د غنيمت لويه برخه را رسېدلې واى.

فَلْيُقَاتِلْ

نو جنګ دي كوي.

**پوه سه:** چي دا كلمه معطوفه ده پر "خذوا حذركم" باندي. او په دې جمله كي التفات دى له خطاب څخه د "خذوا" و غيبت ته د "فيقاتل آه"

فِي سَبِيلِ اللَّهِ الَّذِينَ يَشْرُونَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا بِالْآخِرَةِ

په لاره كي د خداى ﷻ يعني صرف او صرف لپاره د اعلاء كلمة الله يعني "لا اله الا الله. يعني لا لغنيمة ولا لاظهار الشجاعة ولا للعصبية وغير ذالك وهم المخلصون من المؤمنين. نو پر دې تقدير موصول فاعل دى د "يشرون" او بعض مفسرين وايي چي شراء پر خپل معنا ده اى يختارون الحيوة على الآخرة وهم المنافقون.

**سوال**: منافقان كله في سبيل الله جنګ كوي فما معنا كونهم مخاطبون بالقتال؟

**ځواب**: د آيت معنا پر دې تقدير داده چې منافقان دي د ځانه سره فكر وكړي او ايمان بالاخلاص دي راوړي او له نفاقه دي توبه وكاږي او بيا دي قتال في سبيل الله وكړي ناچه دا نفاق ددوى حسرت ونه ګرځي پر دوى په دنيا او آخرت كې. وهذا مثل ان تقول للجنب صل اى اغتسل عن الجنابة ثم صل وامثلته كثيرة. او داهم احتمال سته چې مخاطب په فليقاتل سره دي مؤمنان مخلصان وي لكه په خذوا حذركم كې او له موصول ځخه دي مراد كافران او منافقان وي چې دوى حيوة الدنيا پر آخرت خوښه كړې ده. نو شراپر دې تقدير هم پر خپله معنا ده او موصول مذكور محلاً منصوب مفعول به د. فليقاتل دی.

وَمَنْ يُقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَيُقْتَلْ أَوْ يَغْلِبْ فَسَوْفَ نُؤْتِيهِ أَجْرًا عَظِيمًا

او څوک چې جنګ كوي د كافرانو سره په لاره كې د خداى ﷻ. نو ووژل سي يعني شهيد سي او يا غالب سي پر كافرانو يعني په جنګ كې ژوندى پاته سي. نو ژر دى چې ژه په ده ته وركړم ثواب لوى يعني په ورځ د آخرت. ولې چې ده خو خپل جهد وكړى حسب طاقت او په اعلاء د كلمة الله يې كوشش وكړى. نو چې دى ووژل سي او اعلاء د كلمة الله ده په جنګ سره حاصله نه سوه. نو ثواب د بذل النفس او د بذل الجهد خو خداى ﷻ پاک يقيناً وركوي. نو كه دى غالبه سي سره د اعلاء د كلمة الله احراز د غنيمتو خو يې هم وكړى. نو دې سري ته هم خداى اجر عظيم وركوي. او پيدا كول د غنيمت دده و اجر ته تاوان نه كوي كه دده نيت خالص وي د اعلاء كلمة الله لپاره او لپاره د اعزاز د دين وي لا الغنيمة.

له ابو هريره رضي الله عنه ځخه روايت دى چې بخاري او مسلم راوړى دى چې نبي عليه السلام وويل چې خداى ﷻ وعده د مغفرت كړې ده د هغه چا سره چې ووځي په لاره كې د خداى ﷻ "لا يخرجه الا ايمان بي وتصديق برسلي ان ارجعه بما نال من اجر وغنيمة او ادخله الجنة. وعن ابي هريرة رضي الله عنه ايضاً قال قال رسول الله ﷺ مثال او حال د

مجاهد في سبيل الله لکه حال د هغه سړي چي روژې نيسي او ولاړ وي پر لمونځو او آيات د خدای يکښي وايي او سستي نه کوي نه په روژه کي او نه په لمونځو کي حتی يرجع المجاهد في سبيل الله. وفي الحديث الصحيح قال رسول الله ﷺ جاهدوا المشركين باموالكم" تاسي جهاد کوئ له مشرکينو سره په مالو سره. يعني انفاق کوئ او خرچه ورکوئ و مجاهدينو ته "وانفسكم" او په خپلو ځانو سره يعني پخپله هم په جهاد کي درېږه "والسنتكم" او په خپلو ژبو سره ښېرا کوه مشرکينو ته د شکست او ماتي خوړلو او مسلمانانو ته دعا، کوه د نصرت او غنيمت.

## وَمَا لَكُمْ لَا تُقَاتِلُونَ

او څه سوي دي په تاسي باندي چي جنگ نه کوئ، کلمه "ما" استفهاميه مبتدا، ده "ولكم" يې په اعتبار د متعلق يې خبر دی ای ماثبت لكم.

دا جمله حال ده عامل يې "ثبت" دی. والمعنى ماثبت لكم تاركين القتال والاستفهام للانكار على الترک.

## فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَالْمُسْتَضْعَفِينَ

په لار کي د خدای ﷻ يعني لاعلاء كلمة الله "والمستضعفين" عطف اسم الجلالة ای في سبيل الله المستضعفين ای في خلاصهم بحذف المضاف من ايدي المشركين بمكة. قال ابن عباس ﵁ كنت انا وامي من المستضعفين وليس مقصوده الحصر فيهما.

## مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ وَالْوِلْدَانِ

بيان للمستضعفين يعني له لويو خلکو څخه چي به ضعيفه وه او د هجرت طاقت به يې نه درلودی او ښځي چي دوی د سفر لار ومدينې ته يوازي نه سوای قطعه کولای او بچه مرده هلکان چي د مشرکينو د مکې د ډېرو کړاوو سره مخامخ وه.

## الَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا أَخْرِجْنَا مِنْ هَٰذِهِ الْقَرْيَةِ الظَّالِمِ أَهْلُهَا

هغه مستضعفين چي دوی به په مناجات او دعا کي داسي ويله مونږ وباسې له دغه قريې څخه يعني مکه "ربنا" منادی بحذف حرف النداء يعني ياربنا.

**پوه سه:** چې لفظ د "قریه" په اصطلاح د قرآن عام دی ښار ته هم وایي، چې ظالم دي اهل ددې قریې.

**پوه سه:** چې لفظ د ظالم که څه هم لفظاً د قریه لکن تذکیر یې په اعتبار د مسند الیه المذکر المذکور بعدها یعني اهلها.

وَاجْعَلْ لَّنَا مِنْ لَّدُنْكَ وَلِيًّا ۚ وَّاجْعَلْ لَّنَا مِنْ لَّدُنْكَ نَصِيْرًا ۝

او ګرځوي ستا له خوا څخه یو څوک چې ته ولي زموږ کار وکوي او موږ ته راکړې ستا له خوا کومک کونکي زموږ چې د مشرکانو ازار زموږ څخه منع کړي.

**درویش وایي:** چې ددوی خواست خدای ﷻ قبول کړی چې علیه الصلوة والسلام مکه مکرمه فتح کړه او عتاب بن اسید ﷺ یې حاکم پر مکه مقرر کړی چې علیه الصلوة والسلام مدینې ته تلی چې هغه د هر مظلوم کسات له ظالمه څخه اخستی.

اَلَّذِیْنَ اٰمَنُوْا یُقَاتِلُوْنَ فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ ۚ

هغه کسان چې ایمان یې راوړی وي دوی جنګ کوي په لار کې د خدای ﷻ ای الطریق الموصل الی الله وهو طاعته واطاعة رسوله.

وَالَّذِیْنَ كَفَرُوْا یُقَاتِلُوْنَ فِیْ سَبِیْلِ الطَّاغُوْتِ

او هغه کسان چې کافران دي هغه جنګ کوي په لار کې د شیطان.

**پوه سه:** چې "طاغوت" صیغه د مبالغې ده که څه هم سرکښ ته وایي لکه دمخه چې تېره سوه چې کعب بن الاشرف ته یې طاغوت وویل، لکن مراد دلته رئیس اعظم د طاغوتانو دی یعني الشیطان کمایدل علیه مابعده.

فَقَاتِلُوْۤا اَوْلِیَآءَ الشَّیْطٰنِ ۚ

نو تاسې جنګ کوئ سره د دوستانو د شیطان.

اِنَّ كَیْدَ الشَّیْطٰنِ كَانَ ضَعِیْفًا ۝

په تحقیق مکر د شیطان ضعیفه دی، ولې چې مکر د شیطان محصور دی صرف پر وسوسه باندې.

**تنبیه**: د بدر په غزاء کې چې د مشرکانو تعداد زر نفرو ته رسیدلی او ټول هم مسلح وه او هم د سپر تیاشیان ورسره وه شیطان په رنګ د سړي ورته راغلی او ابو جهل یې تر لاس ونیوی او داسې یې ورته وویل "لاغالب لکم من الناس الی اخیر الآیة في موضع آخر من القرآن" وروسته چې شیطان ملکي ولیدلې چې د مسلمانانو د ضعف په خاطر چې تعداد یې درې سوه دیارلس و دوه اسان، پنځه اوښان او اته توري ورسره وې او علیه الصلوة والسلام د ډېرو دلسوز زارۍ په سبب میدان جنګ ته راغلي. نو شیطان د ابو جهل لاس ایله کړی او د شا پر خوا روان و او ابو جهل ته یې وویل "اني بريء منکم اني اری مالاترون اني اخاف الله والله شدید العقاب" وهذا اللفظ عبارة القرآن ناقلاً لقول الشیطان في موضع آخر من القرآن. والمعنی زه بېزاره یم ستاسې څخه زه وینم هغه څه چې تاسې یې نه وینئ یعني اللعین الملائکة او زه له خدای ﷻ څخه بیرېږم.

**درویش وایي**: چې معنا د بیرې د لعین له خدای ﷻ څخه داده چې دا ملکي خدای ﷻ زما پر قتل ونه ګماري والله اعلم بالصواب.

**یوه سه**: چې شیطان خو مخلوق دی او یو رزیل ملعون دی نو دده کید نسبت به وکید ته د باري ﷻ چې خالق د عالمیانو دی او عالم په حال د ټولو کائناتو العلویات والسفلاتو دی یې څه نسبت وي بلکې د نیست او هست نسبت به یې وي.

**پوښتنه**: خدای ﷻ دلته کید د شیطان ضعیف ویلی او په صورت یوسف کې یې د ښځو کید ته عظیم ویلي دی "ان کیدکن عظیم" وجه یې څه ده؟

**ځواب**: شیطان خو وسوسه د زنا په زړه کې د سړي ور اچولای سي. نور خو یې زنا ته نه سي مجبوره کولای لکن یوه فاحشه زانیه بنانسته ښځه چې په خلوت کې سړي ته ورسي لامحاله زنا په کولای سي الا من عصمه الله، داغه رنګه شیطان به د دوو ورونو تر منځ په وسوسه سره عداوت پیدا کړي لکن یو په بل نه سي وژلای او ښځه یو ورور په بل ورور وژلای سي، مثلاً د یوه ماینې کاذبانه خپل مېړه ته وویل چې ستا ورور زما څخه مچه واخستل او زه یې و زنا ته دعوت کړم، خو ما په ډېر خیګر خونی ځان ځنې خلاص کړی. نو ددې ښځي مېړه

ورځي بیلا تحقیق خپل ورور په ګولی. ولي مثلاً . دوه وروڼه د یوه مور او پلار چي د ېر سره خوشحاله وي ښځي سره جلا کولای سي.

سمع شنیده واقعه: په یوه قریه کي دوه وروڼه وه چي یو یې ملاصوفي نومېدی او بل شېر نومېدی بزګري او باغواني یې کولې. ډېر سره ګران وه او دوارو مایني درلودې. یوه ورځ شېر وخپلې ماینې ته ویلي وه چي زما او د ملاصوفي داسي ښه ورور ګلوي ده چي دا څو کاله چي مورږ تاسي راواده کړي یاست ما وده ترخه خبره نه ده سره کړې. نور وروڼه چي دواړه ماینې ولري له لږ وخت کي په وېش سره جلا سي. د شېر ماینې ورته وویل چي مورږ ښې ښځي یو تا او ستا ورور نه سره جلا کوو. شېر ورته وویل چي ستاسي په شیطانت مورږ نه سره جلا کېږو. خیر دا خبره خو د شېر او د ماینې ډېره دمخه سوې وه.

**درویش وایي:** چي په پخوا زمانه کي او اوس هم د صحراء د خلګو دا رواج دی چي چونکه په ژمي قصابي نه کېږي. نو هر کور والا که څه هم مسکین وي د کال د سره یو ښه وری راتسي او ښه خواړه او اوربشي ورکوي تاچي وژمي ته ښه تیار سي. نو په ژمي یې حلال کړي. او دې ته صحرایان لاندی وایي. دا پوسه چي حلال کړي له هډکو څخه خلاصي غوښې جلا کړي او پر هغو غوښو ډېره مالګه واچوي او پر مني یې وځړوي (منی داوي چي یوه اوږده محکمه لکره په مځکه کي ښخه کړي او پر سر یې یو بل کوچنی لرګی ټینګ وروتړي او هغه بې هډوکو غوښې نیمې د لوږ لرګي پر یوه خوا او نیمې یې پر بله خوا ور واچوي تاچه وچې سي. بیا کوچنی. کوچنی. کترې ځني جوړې کړي او بیا یې تولە ژمي په کتو کي خوري چي مزه داري غوښې وي. او د لاندي په ورځ پخوا دا قانون و چي په محل کي به چا لاندی وکړی د محلې له هر کور څخه به یې یو یو سرې مابنام مېلمه کاوه او ذلبند او لری به یې باندي کړی او ورجي به یې هم ورسره پخې کړې مابنام به یې د کلي مېلمانه ماړه کړه او خپلو کورو ته به ولاړه. خو ددې اصطلاح سره موافق ملاصوفي او شېر هم یو ښه غټ پوسه د کال له سره څخه راتیولی و د لاندي ورځ چي راغله شېر د مځکي د خروبولو لپاره تللی و. ملاصوفي پوسه

حلال کړي او پر مروجه قانون یې سنبال کړي او د ماښام د مېلمنو کار یې هم برابر کړي. شپږ هم ماښام ته راورسېدی او د مېلمنو کار او خدمت پای ته ورسېدی. شپږ وایي زه چې خونې ته ورغلم ماینه مې په یو کونج کې ناسته ده، ما ورته وویل چې څه کوې دلته غلې ناسته یې. دې د کاذبانه ژړا په لهجې راته وویل چې داغسې ناسته یم، خو ما ته ژړا د پېر ګروم راوستې او دې ته مې وویل چې اخیر څه پېښه ده دې بیا وژړل خو زه یې ډېره متاثر کړم، نو ما ورته وویل چې ژر راته ووایه چې څه پېښه ده. دې په ژړا کې راته وویل چې نن چې دې لالا پوسه حلال کړې او نس یې ور څیرې کړې خپل زوی چې یې ورغلی هغه لوی پښتورګی یې په لاس ورکړی او زما یتیم چک چې ورغلی هغه دونده کوچنی پښتورګی یې ورکړی. شپږ وایي چې ماینې مې وویل چې تر اوسه لا زما د زوی پلار ژوندی دی ملا صوفي داسې ظلم ورسره وکړی دا که خدای ناخواسته پلار یې مړ سي ملا صوفي به څرنګه ظلمونه ورسره وکړي. شپږ وایي ما ورته وویل چې دغسې به یې نه وي کړي، دې راته وویل په خدای که یې بل ډول کړي وي. شپږ وایي ما ماینې ته وویل چې زه به هم د ملا صوفي خوښ سم چې د مني پر سر به غوښې ورسره ووېشم او آئینده به زما او دده وېش سره جلا وي. شپږ وایي چې د ډېره درده ما ور ناري کړه چې لا لا؟ ملا صوفي په خپله خونه کې و. ماینې راته وویل چې څه یې کوې؟ ما ورته وویل چې هم دا ننه شپه دده سره وېش کوم، ما ینې راته وویل اوس یې پرېږده شپه ده سهار به وېش ورسره وکړې. شپږ وایي زما زوروونه دې چې دباندې ور ووځم او د ملا صوفي سره یې معلومه کړم ماینه مې خونې ته کشوې چې اوس یې پرېږده، په اخیر کې یې راته وویل چې د یوه پوسه په دوو پښتورګو کې تا تر اوسه یو لوی یو او بل کوچنی لیدلی دی. او بیا یې راته وویل چې تا خو ویله چې ما او ملا صوفي ډېره سره ګران یو. ما ورته وویل چې مور ښځې ښې ښځې یو چې تاسې نه سره جلا کوو، او اوس مې څرنګه په درواغو وېش ته اماده کړې. شپږ وایي ما ورته وویل چې خدای ﷻ مو دې ستاسې له شر او تګیه وساتي.

**درویش وایي:** چې له دې اوږدې قصې څخه زما مطلب دادی چې مېږه باید د ماینې خبره بلا تحقیق او تامل پر غوږ ونه نیسي او عمل په ونه کړي. لهذا ښځو ته د حبائل الشیطان لقب ورکړه سوی دی یعنې د شیطان رسۍ، اول مکر د ښځې چې سړی له هوشه باسي د درواغو ژړا ده چې د هرې ښځې رسماً زده ده.

**درویش وایي:** چې دا رنګه واقعات شنیده او دیده ما ته معلومې دي لکن په تفسیر کې بالا ګنجائش د قصو نسته، نو دا قصه په قرار د مشت نمونه خروار ویولئ.

## اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ قِيْلَ لَهُمْ

ته نه ګورې هغو کسانو ته چې وویل سوه دوی ته له جانبه د رسول الله ﷺ، بغوي ؒ له کلبي ؒ څخه روایت کړی دی چې په هغه وخت کې چې علیه الصلوٰة والسلام په مکه مکرمه کې وُ او ازار د اهل مکې پر مسلمانانو تر اندازې دېر سو، نو عبد الرحمن بن عوف الزهري، مقداد بن الاسود الکندي، قدامة بن مظعون الجهني، سعد بن ابي وقاص او نور ګڼ شمېر مسلمانانو ؓ قبل ان یهاجروا له علیه الصلوٰة والسلام څخه اجازه د جنګ وغوښتل د کفارو سره د مکې، نو علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل:

## كُفُّوْٓا اَيْدِيَكُمْ

تاسې باند کړئ خپل لاسونه یعنې ځانونه له جنګ څخه د کفارو د مکې، ولې چې زه په جنګ سره ددوی نه یم امر سوی.

## وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ

او لمونځ کوئ او زکوٰة ورکوئ، یعنې ځانونه په لمونځو او زکاتو چې تاسې په امر سوي یاست مشغول کړئ، ولې چې په لمونځو او زکاتو سره د نفس تصفیه راځي، نو دا جهاد دی د نفس امارة بالسوء سره، او جهاد د نفس سره مقدم دی تر جهاد د کفارو سره، ولې اصلاح د ځان مقدمه ده تر اصلاح د بېګانه چې کفار دي، نو ځکه خدای ﷻ جهاد له نفس سره پر هر مسلمان فرض عین ګرځولی دی، او جهاد له کفارو سره فرض کفایي الا في بعض الاحوال چې کافران د

مسلمانانو ځکه اشغال کړي.

**پوه سه**: چې استفهام د "الم" لپاره د تعجب دی او ځای د تعجب یې هغه دی چې وروسته تر امر بالقتال یوې ډلې له جنګ ځخه ډډه وکړه او د کفارو بیره یې په زړو کې پیدا سوه، اوسره ددې چې دوئ تولـه اماده باش وه و قتال ته دمخه تر امر بالقتال کمایدل علیه قوله تعالی "کفوا ایدیکم آه" لان الامر بالکف عن الشئ انما یکون بعد القصد الی ذالک الشئ.

## فَلَمَّا كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقِتَالُ

پس هغه وخت چې قتال د کفارو سره پر دوی فرض سو، یعني وروسته تر هجرت د علیه الصلوة والسلام مدیني ته. نو هغه پر دوی سخته پرېوته او جبن یې مختاره کړی. ولې چې دوی له ازاره د کفارو خلاص سوه او ژوند یې په راحت سو.

## إِذَا فَرِيقٌ مِّنْهُمْ يَخْشَوْنَ النَّاسَ كَخَشْيَةِ اللَّهِ

**پوه سه**: چې "اذا" د مفاجات او جواب د "لما" دی او "فریق" مبتدا، ده او "منهم" یې صفت دی. نو نکره مخصصه سوه دلته یې ابتدا، صحیح ده کما تقرر في النحو، او "یخشون" یې خبر دی او اضافت په خشیة الله اضافت دی د مصدر و مفعول ته او "کخشیة" په محل کې د مفعول مطلق تشبیهي دی، ومعنی الآیة ناببره یوه ډله له دوی ځخه بیرډله د خلګو یعني لـه کافرانو ځخه یې داسې بیره وه لکه سړی چې له خدایه بیرېږي.

## أَوْ أَشَدَّ خَشْيَةً

او یا سخت تر بیرېدلو له خدای ﷻ ځخه.

**پوښتنه**: بیرېدل له کافرانو ځخه په مثل د بیرېدلو له خدای ﷻ ځخه او یا اشد تر هغه خو کفر دی، نو ځرنګه به نسبت ددغې به ومسلمانانو ته وسي؟

**ځواب**: دا کلام مبني پر مجاز دی په دې ډول چې دغو کسانو چې ژر امتثال د خدای د امر په قتال کې د کفارو او جبن یې مختار کړی او د نفس په خوله یې وکړه، نو خدای ﷻ ذکر کړی په دې سبب چې شدة الخشیة من الکفار تر خشیة

له خدای ﷻ څخه او مراد یې مسبب دی اعني التقاعد من القتال وعدم المسارعة الیه وهذا لا یستلزم ان یکون في الواقع خشیتهم من الناس من خشیتهم من الله بلکې بعض وخت د نفس او د شیطان په بناءسته کولو د یوې ګناه هغه ګناه وکړي او له عذاب څخه غافل وي او یا طمع د مغفرت له خدای ﷻ څخه وي مثلاً یو سړی له خلګو څخه په پټه زنا وکړي طمعاً لغفرانه. نو ددې معنا خو دانه ده چې ددې زاني دا عقیده ده چې خلګ اشد عذاباً دي تر خدای ﷻ او ډېر قدرت لري پر عذاب دده تر خدای ﷻ. او په دې آیت سره خوارج دلیل وایي چې مرتکب د ګناه کبیرې کافر دی. ولي دغه کسان چې له جهاد څخه کښېنستل دا خو یوه ګناه ده چې دوی وکړه او خدای ﷻ دغه کسان ډېر بېرېدونکي وبلل د خلګو تر بېرې له خدای ﷻ څخه وهذا کفر بواح؟

ددې ځواب دادی چې موږ دمخه وویل چې دا کلام محمول پر مجاز دی، یعني سبب ذکر دی او مراد ځني مسبب دی. البته که کلام محمول پر حقیقت وای، نو د خوارجو دلیل لره به وجه وای.

**پوښتنه:** خدای ﷻ و مجاز ته څه ضرورت لري؟

**ځواب:** قرآن مجید د عربو پر ژبه نازل دی او په عربي ژبه کې فصاحت او بلاغت دی چې پر صحیح مذهب هم داغه فصاحت او بلاغت فائقه سبب د قرآن د اعجاز دی، مبني دی في الاکثر علی المجازات والاستعارات کما لا یخفی علی من تبع کلام العرب العرباء وتتبع القرآن العزیز حتی یجد فیه من المجازات العدیدة والاستعارات الکثیرة.

**درویش وایي:** چې که څوک زما په دغو خبرو کې شک لري د حسد له لارې یا د تعصب له لار، نو دي دی د اصول فقه کتابونه ښه په غور سره مطالعه کړي، او یا دي مطول او مختصر په معاني وو کې مطالعه کړي چې دغه کتابونه د ډېرو مجازاتو او استعاراتو مثالونه له قرآن عزیز څخه پېشوي.

**پوښتنه:** عبیدالله تا خو خبرې د عوامو تر فهم ډېرې کړې او ستا تفسیر خو پښتو و د عوامو لپاره؟

**خواب**: زه منم چي زما تفسير په پښتو ژبه دی، لکن ما داسي نه دي ويلي چي زما تفسير صرف او صرف د عوامو لپاره دی. بلکې زما په تفسير سره عوام هم فائده اخستلای سي او بې حسده ملايان هم فائده ځني اخستلای سي. او دا خبره ما ډېر وارونه په دې تفسير کي کړې ده قطعاً لعرق الحسد والطعن والغيبة والبهتان. ولهذا اقول.

هم يحسدونني ولا ابالي فشر الناس من عاش يوماً غير محسود

**وَقَالُوا رَبَّنَا لِمَ كَتَبْتَ عَلَيْنَا الْقِتَالَ ۚ لَوْلَا أَخَّرْتَنَا إِلَىٰ أَجَلٍ قَرِيبٍ ۗ**

او دوی وايي چي اې زموږ ربه ولي دي پر موږ فرض کړی جنګ د کافرانو سره يعنې خو موږ په قتال کي وژل کېږو. او ولي دي موږ ببله جنګه ځنډولو تر اجل د مرګ چي نژدې دی په خپلو کورو کي چي پر خپلو فراشو مړه سوي وای.

**فائده**: دا دوې جملې يعنې "لم كتبت آه" ولو لا اخرتنا آه" يې په عطف سره نه راورې. اشاره ورې ته ده چي دوی به ګاهې يوه جمله ويله او ګاهې به يې دا بله جمله ويله. او مجموع دواړې يو کلام نه دي.

**يوه سه**: چي دا ددوی خبري پوښتنه نه ده له حکمت څخه د واجبولو د جنګ د کفارو سره. ولي چي هغه حکمت خو هر چاته معلوم دی چي اعلا. د کلمة الله ده او تخليه ده د مځکي له کفر څخه. بلکې دا ددوی تمنی ده چي مدة د کف عن القتال لږ څه زيات کړي حذراً من الموت.

**قُلْ مَتَاعُ الدُّنْيَا قَلِيلٌ ۚ**

ته ورته ووايه چي تمتع او نفعه اخستل د دنيا په منافعو سره لږ ده. يعنې نسبت و منافعو ته د آخرت. او بل د دنيا منافع سريع الزوال دي. نو که تاسي ته مهلت هم درکړه سي او عمرونه مو هم زيات سي فرضاً. نو فائده يې څه ده؟

**وَالْآخِرَةُ خَيْرٌ لِّمَنِ اتَّقَىٰ**

او ثواب د آخرت چي جنت دی مع نعيمها التي لاعين رئيت ولا اذن سمعت ولا خطر علي قلب بشر كما جاء في الحديث الصحيح. چي يو له هغو ثوابو څخه په

جهاد في سبيل الله پورې مربوط او تقاعد او سستي له جهاد څخه نه کول دي. او ثواب د آخرت خیر دی تر ثواب د دنیا چې د یو څو ورځو په تمتع پورې مربوط دی. او ثواب د آخرت د هر دوام داره دی تر ثواب د دنیا.

وَلَا تُظْلَمُونَ فَتِيلًا

او فتیل چې ډیر ادنی شی دی پر تاسي ظلم نه کیږي یعني چې ستاسي ثواب دي کم کړل سي.

**بوه سه:** چې نعمتونه د آخرت ښه دي تر نعمتو د دنیا من وجوه.

(۱) نعم د دنیا لږ دي او نعمتونه د آخرت ډیر دي (۲) نعم د دنیا قطع کیږي په مرګ سره د سړي. او نعم د آخرت ابدي دي لعدم الموت فيها (۳) نعم د دنیا ملګري دي د غمو او آفتو او د طبیعت د خلاف کارو سره. او نعم د آخرت د ټولو کدوراتو، غمو او آفتو څخه خلاص دي (۴) نعم د دنیا چې سړی هر څونده سرمایه داره وي په دې نه پوهیږي چې سبا ورځ به څه حال وي، او نعم د آخرت یقیني دي تر ابد پورې. نو نتيجه یې داده چې عاقل سړی اختیار کړي هغه شی چې خیر دی من کل وجه او پریږدي هغه شی چې شر وي من کل وجه. محقق شیرازي وايي.

عمارت یا سرای دیگر انداز — که دنیا را اساسی نیست محکم
فریدون را سر آمد بادشاهی — سلیمان برفت از دست خاتم
وفاداری مجوی از دهر خونخوار — محالست انگبین درکام ارقم
مثال عمر سر بر کنده شمعیت — که کوته باز میباشد دمادم
ویا برفی گذاران بر سر کوه — کزو هر لحظه خبرتی میشود کم

**درویش وايي:** چې یوه سړي له بل سړي څخه سرای رانیوی. نو دواړه و حضرت علي ﷺ ته راغله چې موږ ته قباله را وکاږه. نو علي ﷺ داسي قباله درنوشته کړه "بسم الله الرحمن الرحیم اما بعد: فقد اشترى مغرور من المغرور دارا أدخل فيها في سكة الغافلين لا بقاء لصاحبها فيها" او د سرای حدود اربعه یې داسي [illegible] کړه "الحد الاول ينتهي الى الموت والثاني الى القبر والثالث الى الحشر والرابع الى الجنة او النار والسلام" علي ﷺ چې دا قباله پر مشتري

وویل هغه بیرته سرای و بائع ته رد کړی او ثمن یې تولـه خیرات کړی و تزهد في طلب الدنیا وهکذا یکون العارف.

**حکایت:** یو عارف بالله ته ته یو چا وویل هل تعرف الله فغضب العارف وقال هل ترائي اعبد من لا اعرفه. سائل ورته وویل "هل تعصي من تعرفه قال لا" سعدي عمری که میرود بهمه حال سعی کن .... نادر رضای خالق همچون بسر بری

**پوه سه:** چې په رد کې د هغه قول د منافقانو چې دوی په باره کې د مقتولینو د احد د جنګ دا ویل "لو کانوا عندنا ماماتوا وما قتلوا" دا آیت مبارک نازل سو.

أَيْنَ مَا تَكُونُوا يُدْرِكْكُمُ الْمَوْتُ وَلَوْ كُنْتُمْ فِي بُرُوجٍ مُشَيَّدَةٍ

هر چیرې چې تاسي یاست مرګ به پیدا کوئ یعنې مرګ به در رسیږي عند حلول الاجل الموعود. که څه هم تاسي یاست په لوړو قلعو کې چې ډېرې محکمې وي، او قتاده رحمه الله وایي چې "شید" و ګچو ته وایي، نو د شید معنا داده چې په ګچو وهل سوي وي لپاره د غاية الاستحکام.

**پوه سه:** چې منافقانو او یهودانو د مدینې منورې به ویل چې زموږ مېوې او کښتونه مخ پر نقصان روان دي د کومه وخته چې دغه سړی او اصحاب دده د مدینې ښار ته راغلي دي، نو دا آیت نازل سو.

وَإِنْ تُصِبْهُمْ حَسَنَةٌ يَقُولُوا هَٰذِهِ مِنْ عِنْدِ اللَّهِ

که دوی ته ورسیږي یو ښه والی یعنې فراخي د رزق او هر وخت بارانونه او د کښتو ښه ښه حاصلات وي، نو دوی وایي چې دا د خدای جل جلاله له لوري دي پر موږ یې پېرزو ینه وکړه.

وَإِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَقُولُوا هَٰذِهِ مِنْ عِنْدِكَ

او که دوی ته ورسیږي یو خصلت یعنې یو له بدو شیانو لکه قحط او لږ والی د مېوو او د حاصلاتو او د کښتو، نو دوی تاته وایي چې دا شیان ستا له لوري موږ ته پیښ سوه یعنې ستا د سوی پالی او شومتوب له سببه ده.

قُلْ كُلٌّ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ ؕ

ته ورته ووایه چي هر یو له حسنې او سیئې څخه له جانبه د خدای ﷻ دي حسب ارادته لانه هو الخالق على الاطلاق. یعنې حسنه په تفضل او احسان دی او سیئه يې انذار او انتقام دی على مقتضى حكمته، او پر خدای ﷻ دا نه ده روا چي له چا څخه انتقام اخلي په شوم د بل چا، نو نسبت د شوم و علیه الصلوة والسلام ته کول او سره ددې چي دوی په کفر او معاصیو کي غرق دي دا ددوی لوی حماقت دی او ظاهر البطلان خبره ده.

فَمَالِ هٰٓؤُلَآءِ الْقَوْمِ لَا يَكَادُوْنَ يَفْقَهُوْنَ حَدِيْثًا ﴿٧٨﴾

پس څه عارض پېښ سو دغه قوم ته یعنې کافرانو ته چي قریب نه ده چي دوی به پوه سي په خبره. یعنې بالفعل پوهېده خو بېخي نسته.

**پوه سه:** چي بعض مفسرین وايي چي مراد له حدیث څخه قرآن مبارک دی، ولي که د قرآن پر آیتو دوی ښه غور کړی وای، نو دا به ورته معلومه سوې وای چي خیر او شر ټول له جانبه څخه د خدای ﷻ دي حسب حکمته و ارادته، او دا به هم ور معلومه سوې وای چي خدای ﷻ چا ته عذاب نه ورکوي په عمل یا په شوم د بل چا. او بعض مفسران وايي چي په هیڅ شي نه پوهېږي فهم کالانعام بل هم اضل فضلاً عن فهم القرآن.

**فائده:** متعلقة بقوله اینما تکونوا آه" پوه سه چي د علماء پر دې اجماع ده چي مرگ لره نه مرض معلوم سته او نه سن معلوم سته او نه اجل معلوم سته حکمت د خدای ﷻ دادی چي مسلمان باید هر وخت د مرگ لپاره آماده باش وي.

وفي الحدیث اکثروا ذکر حازم اللذات یعني الموت. وقال الله تعالى "کل نفس ذائقة الموت" نو باید همېشه د مسلمان مرگ په سترگو او په زړه وي. او په مال او قصورو غره نه سي، ولي چي دا شیان به پاتېږي او دی به ځني ځي. او دلیل ته هم ضرورت نسته ولي چي هر سړي دا حال په مشاهده لیدلی دی. بیت

پند گیر از مصائب دیگران　تا نگیرند دیگران زتو پند
نرود مرغ سوی دانه پراز　چو دیگر مرغ بیند اندر بند

قال السعدي الشيرازي قدس سره

جهان اى پسر ملک جاويد نيست ز دنيا و فادارى اميد نست

نه بر باد رفتى سحرگاه وشام سريري سلمان عليه الصلوة والسلام

بآخر نديدى كه برباد رفت خنک آنکه با داد و دانش برفت

مسلمان لره پکار ده چي په خير باقي بعد الموت كي دنيا مصرف كړي لكه يو مدرسه وقفي جوړه كړي او يا پول جوړ كړي او يا په علوم دينه وو كي يو كتاب تصنيف كړي، او يا يو مسجد د مسلمانانو د لمونځو لپاره جوړ كړي. لكن داسي مسجد نه چي په منځ كي د مسلمانانو تفريق پيدا كوي او يا و قديم مسجد ته د ضرر رسولو لپاره وي، ولي كه د باني هغه نيت وي هغه ته بيا مسجد ضرار وايي او لمونځ پكښي مكروه دى.

## مَآ اَصَابَكَ مِنۡ حَسَنَةٍ فَمِنَ اللّٰهِ

هغه چي تاته ورسيږي اې انسانه يو نعمت لكه مال او دولت او صحت وعافيت دا له جانبه څخه د خداى ﷻ ده صرف فضل او احسان د خداى ﷻ دى. يعني په عباداتو سره كه څه هم موافق د شريعت غراوي كه فرائض او نوافل وي، كه بدني او مالي وي همه و همه د خداى ﷻ د موجوده نعمتو شكر نه په اداء كيږي فضلاً عن استحقاق الاجر والجنة، ولهذا قال خير البشر ﷺ من من احد يدخل الجنة الا برحمة الله قيل ولا انت قال ولا انا" رواه البخاري ومسلم عن ابي هريره رضي الله عنه.

## وَمَآ اَصَابَكَ مِنۡ سَيِّئَةٍ فَمِنۡ نَّفۡسِكَ

او هغه چي تاته ورسيږي يوه سيئه يعني البلاء ، من فقر ومرض وغير ذالک، نو هغه ستا د نفس د خوا دى يعني نفس ته باعثه كيږي پر بعضي معاصيو، نو دا سيئه د هغو معاصيو جزاء او عقوبت دى پر دې دنيا ، او ستا جزاء ده د سيئه عملو يعني د بل چا له شوم څخه نه ده لكه يهودانو او منافقانو د فقر او مسكنت نسبت و شوم ته د عليه الصلوة والسلام او اصحابو رضي الله عنهم كاوه. نو دغه انسان مصيبت زده كه كافر وي نو دا دنيا وي مصيبت يو نمونه خداى ﷻ ورښيي د

عذاب اخروي، او كه مصيبت زده شخص مسلمان وي، نو دا مصيبت دنيوي به يې كفاره سي د ګنهو دده، او يا به يې د درجو د لوړوالي سبب سي. په متفق عليه حديث كي راغلي دي چي روايت يې بي بي عائشي رضي الله عنها كړى دى "ما من مصيبة تصيب المسلم الا كفر الله بها عنه حتى الشوكة يشاكها" نسته يو مصيبت چي مسلمان ته ورسيږي مګر نه خداى جل جلاله دده ګناه وررژوي په هغه مصيبت سره حتى يو څوز (اغزى) چي په جګ سي.

## وَأَرْسَلْنٰكَ لِلنَّاسِ رَسُولًا

**پوه سه:** چي جار او مجرور متعلق دي په "ارسلناك" پوري نو "رسولا" يا مفعول مطلق او يا حال دى لپاره د تاكيد، نو ترجمه يې داسي ده چي موږ ته استولى يې و خلګو ته رسول. يا حال كوونک رسولاً. او كه جار او مجرور په رسولاً پوري متعلق وي، نو يې معنا داسي ده موږ ته استولى يې رسول و ټولو خلګو ته يعني عموم د خلګو فائده كوي لكه په بل آيت كي چي راغلي دي "وما ارسلناك الا كافة للناس" يعني ستا رسالت يوازي په عربو پوري نه دى خاص، بلكي د عربو او عجمو دواړو رسول يې بلكي د جن لپاره هم رسول يې.

## وَكَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيدًا ﴿٧٩﴾

كافي دى خداى شاهد ستا پر رسالت باندي چي له جملي څخه د شاهدى د خداى نزول القرآن المعجز ونصب سائر المعجزات وبالخصوص خاتم النبوة قال الشيخ فريد الدين العطار.

| | |
|---|---|
| دعوتش فرمود به هر خاص وعام | نعمت خود را باو كرده تمام |
| مبعث امت وي نكوهش بتان | امت او بهترين امتان |
| برميان دو كتف خورشيد وار | داشته مهر نبو ت آشكار |

**پوه سه:** چي په منځ كي د دوو ورو د عليه الصلوة والسلام مهر نبوت اشاره ده وعصمت ته دده له وسوسه څخه د شيطان. ولي خناس مردود له مابين الكتفين څخه خپل خرطوم داخلوي او د انسان و زړه ته يې رسوي او هلته په زړه كي

وسوسې ور اچوي، نو كه سړى ذكر د خداى ﷻ خنس يعنې شيطان يې ترشا سي وكذالك سمي بالخناس،

**يوه سه:** چي مهر نبوت د عليه الصلوة والسلام د ورو په منځ كي يوه غوښنه وه په اندازه د خيمې د تني. او يا د يو مرغه د هگۍ، او د هغه پر شا وخوا باندي وېښتان وه مائل و خضرت ته. او پر هغه غوښنه په قدرت الهي نوشته وه محمد نبي امين.

مَنْ يُّطِعِ الرَّسُوْلَ فَقَدْ اَطَاعَ اللّٰهَ

يعني څوک كه اطاعت د رسول وكړي هغه اطاعت د خداى كړى دى. ولي چي رسول ﷺ خو مبلغ دى او آمر په حقيقت كي خداى ﷻ دى.

**يوه سه:** چي بغوي ﷫ وايي چي څه وخت چي به عليه الصلوة والسلام دا ويل "من اطاعني فقد اطاع الله ومن احبني فقد احب الله" نو بعض منافقانو به ويل ما يريد هذاء الرجل الا ان نتخذه رباً كما اتخذت النصارى عيسى بن مريم ربا" نو دا آيت نازل سو يعني چي عليه الصلوة والسلام به دا ويل من اطاعني فقد اطاع الله" هر چاچي زما اطاعت وكړى، نو د خداى ﷻ اطاعت يې وكړى او څوک چي زما سره محبت كوي نو په تحقيق د خداى ﷻ سره يې محبت وكړى.

وَمَنْ تَوَلّٰى فَمَآ اَرْسَلْنٰكَ عَلَيْهِمْ حَفِيْظًا ﴿٨٠﴾

**يوه سه:** چي "ومن" مبتداء ده خبر يې محذوف دى. وقوله "فما ارسلناه آه" دليل دى د خبر محذوف، والتقدير "من تولى عن طاعتک فلا تهتم به" كه څوک ستا له فرمانبردارى څخه سر وغړوي نو يې غم مه كوه، ولي چي مونږ ته نه يې استولى پر دوى باندي محافظ د اعمالو ددوى. ولي چي ما عليک الا البلاغ المبين وقد بلغت الرسالة وعلينا الحساب. نو "حفيظاً" حال دى د كاف له ضمير څخه د مفعول د "ارسلناک"

وَيَقُوْلُوْنَ طَاعَةٌ

يعني منافقان وايي چي تا به دوى امر كړه په يو شي سره "طاعة" خبر د محذوف مبتداء ده اى امرنا طاعة.

**پوښتنه:** حق خو دا و چې دوی "طاعة" په نسب سره ویلای وای یعنې نطیعک طاعة لکن دوی عدول ورفع ته وکړی للدلالة علی الدوام والثبات.

فَإِذَا بَرَزُوا مِنْ عِنْدِكَ بَيَّتَ طَائِفَةٌ مِنْهُمْ غَيْرَ الَّذِي تَقُولُ

نو چې دوی ووځي ستا له حضور څخه تغیر او تبدیل ورکوي، کذا فسره قتاده والکلبي لفظ "بیت" او ابو عبیده رحمه الله وایي چې معنا د "بیت" قدروا لیلاً غیرما اعطوک من العهد نهاراً. نو پر دې تقدیر مشتق له "بیتو ته" څخه دی. یوه ډله ددوی غیر له هغه چې دې طائفې به ویل فالضمیر في تقول راجع ای الطائفة، یعنې درواغ او مخالف د هغه خبرې کوي چې ستا په حضور کې کړې وه من العهد والوصیة والنصیحة.

وَاللَّهُ يَكْتُبُ مَا يُبَيِّتُونَ

او خدای جل جلاله نوشته کوي یعنې امر ورکوي چې نوشته کړي ملکي مایبیتون تاچه دوی ته پوره جزاء ورکړي، او یا دآیت معنا داده چې خدای جل جلاله نوشته کوي په جمله کې د مایوحی الیک تاچې تاهم خبر کړي په اسرار د دوی.

فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ وَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ

نو ته اعراض وکړه ددوی څخه او باک مه په کوه، او یا معنا داده چې پر دوی مخامخ ملامتیامه وایه او اخبار او اعلان مه کوه په نومانو ددوی د اصحابو، او ته تکیه پر خدای جل جلاله کوه په ټولو کارو کې خصوصاً د منافقینو په باره کې.

وَكَفَى بِاللَّهِ وَكِيلًا ﴿٨١﴾

او کافي دی خدای جل جلاله تا لره "وکیلاً" یعنې چې تفویض د ټولو کارو خدای جل جلاله ته وکړې.

أَفَلَا يَتَدَبَّرُونَ الْقُرْآنَ

آیا فکر نه وهي منافقان په قرآن کې، اول په نظم کې د قرآن او دویم په معنا کې د قرآن او په هغه عجائب او غرائب او فصاحت او بلاغت فائقه کې د قرآن، او په قصص موافقه وو کې د قرآن چې د تورات او انجیل سره دی او په امثال بنائسته وو کې د قرآن الی غیر ذالک. تاچه دوی ته به دا واضح سي چې قرآن

کلام البشر نه دی.

وَلَوْ كَانَ مِنْ عِنْدِ غَيْرِ اللّٰهِ

او که چیرې وای قرآن له جانبه د غیر الله لکه مشرکانو چې به ویل چې محمد ﷺ دا قرآن له ځانه جوړوي په کرار کرار که د خدای له خوا وای. نو په یوه وار به نازل سوی وای لکه تورات او انجیل.

لَوَجَدُوا فِيهِ اخْتِلَافًا كَثِيرًا ﴿٨٢﴾

دوی به پیدا کړی وای ډېر اختلاف. یعنې معاني د قرآن به سره نقیض وای یو د بله سره. او الفاظ د قرآن بعض فصیح او بلیغ یعنې پر قانون د عربیت به برابر وي. او به یې رکیک خلاف البلاغة وای. او بعضې قصې به یې د تاریخ سره برابرې وای او بعضې به یې د تاریخ خلاف وای. او د بعضو سورتو اتیان بالمثل به یې کېدای سوای. ولې قوت بشري دونده توان او طاقت نه لري چې دونده لوی کتاب دی یې مذکوره نواقصو جوړ کړي.

**پوښتنه**: په قرآن مبارک کې خو ناسخ او منسوخ سته. نو دا اختلاف نه دی او که څرنګه؟

**ځواب**: یا دا اختلاف په اعتبار د احوالو د خلګو دی او د مصالح د زمانو دی.

**درویش وايي**: چې تحقیق د نسخ په تفسیر کې د هغه آیت مطالعه کړه "ماننسخ من آية او ننسها الى آخير الآية"

وَإِذَا جَاءَهُمْ أَمْرٌ مِّنَ الْأَمْنِ أَوِ الْخَوْفِ أَذَاعُوا بِهِ ؕ

چې و به رسېدی دوی ته یعنې منافقانو ته او یا ضعیف الرای مسلمانانو ته یو شی له حال څخه د سرایا وو چې علیه الصلوة والسلام به یوه خوا او بله خوا ته استولې وې که به د امن حال و چې فتح پر دښمن به وه او سلامت د سرایا به وه او یا له خوف څخه چې شکست د مسلمانانو به پکښې و. نو دغو منافقانو او یا دا ضعیفه مسلمانانو به دستي دا خبرونه ونشر او اشاعت ته وسپارل او د علیه الصلوة والسلام د نشر او اشاعت فکر به یې نه ساتی.

**یوه سه**: چې بغوي رحمه الله په شان نزول کې ددې آیت داسې ویلې دي چې علیه

الصلوة والسلام به کوچني فوجونه د لسو کسانو څخه نیولې بیا تر څلورو سوو کسو پوري بعضې باندې او قریو ته د کافرانو استوله د جنګ لپاره چي هغو ته په عربي سرایا ویل کېدل چي له سِر څخه ماخوذ دی یعنې په پټه استول، نو چي سرایا به غالبه سوې پر کافرانو او یا به مغلوبه سوې منافقانو کشف الحال ددوی کاوه په ذریعه د جاسوسانو، نو دستي به یې حال د سرایا وو که په غالبه وکه مغلوب په مدینه کي مسلمانانو ته شائع کړی، دمخه تر دې چي د علیه الصلوة والسلام سره مشوره وکړي، نو په صورت کي د مغلوبیت د سرایاوو د مدینې والو زړونه به ضیعف او غم جن سوه، او دغه بعض ضعیف الرای مسلمانانو به هم ورته اشاعت کاوه، او یا به علیه الصلوة والسلام ودوی ته خبر ورکړی بما اوحی الیه من فتح او ظفر او یا د تخویف وحي به یې ورته بیان کړې دوی به دستي شائع کړې.

**پوښتنه**: په دې اشاعت د خبر د سرایا وو یا امن او یا خوف څه مفسده وه چي خدای ﷻ په ذم کي د منافقانو داخبره وکړه؟

**ځواب**: خبره د امن د سرایا چي خصم و اوري د ځان په ساتنه وپر کوشش کوي، او که د هزیمت د سرایاوو خبر واوري جنګ ته نوره ادامه ورکوي.

وَلَوْ رَدُّوهُ إِلَى الرَّسُولِ وَإِلَىٰ أُولِي الْأَمْرِ مِنْهُمْ

او که دوی رد کړی وای خبر د امن او خوف د سرایاوو رسول الله ﷺ او خاوندانو ته د رایې یعنې الصحابة الکرام کابی بکر وعمر وعثمان وعلي ﷺ، ولې دوی صاحب د بصارت دي.

**پوښتنه**: چي دغه مذکوره صحابه کرام چي اولوا الامر یې وبلل، ولې چي نور صحابه له دوی څخه امر غوارې غالباً او یا امر په معنی د مشورې دی او نبي ﷺ به ددوی سره مشوره کول دمخه تر دې چي خلګ به یې په یو شي سره امر کول او خلګ یې امر کول بالاقتداء بهم، چناچه ترمذي د ابو سعید الخدري ﷺ څخه روایت کړی دی چي علیه الصلوة والسلام وویل اقتدوا بالذین من بعدي ابی بکر وعمر رضي الله عنهما.

لَعَلِمَهُ الَّذِينَ يَسْتَنْبِطُونَهُ مِنْهُمْ

**پوه سه:** چي اصل معنا د د استنباط استخراج ده يعني يستخرجون بانظارهم يعني الصحابة مايليق بذالك الامر من الاشاعة او الاخفاء. والمراد بالموصول النبي ﷺ و اولوا الامر من الصحابة ﷺ.

**فائده:** په راوړو کي د موصول اقامة د اسم ظاهر ده په ځای کي د ضمير لاز الحال يقتضى ان يقال لعلمهم لسبق ذكر النبي ﷺ و اولى الامر قريباً. والنكتة فيه اظهار فخامة شانهم.

وَلَوْلَا فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهُ

که نه وای فضل او رحمت د خدای پر تاسي قريشو باندي خصوصا او پر ټولو عربو عموماً يعني بارسال الرسول العربي القريشي وانزال القرآن بلسان العرب.

لَاتَّبَعْتُمُ الشَّيْطَانَ إِلَّا قَلِيلًا ﴿٨٣﴾

تاسي به متابعت کړی وای د شيطان مگر لږو کسانو.

**پوه سه:** چي استثناء راجع ده وضمير ته د "اتبعتم" يعني ستاسي څخه به لږ کسان وايي چي د اضلاله د شيطان په دعوت وشرک ته به يې ځان ساتلی.

**پوه سه:** چي بعض انسانانو ته خدای ﷻ عقول سليمه ورکړي وي چي له خيرو څخه د هوا او هوس او خواهشاتو نفسانيه وو يې خلاص کړي وي. نو هغه خپل نوراني زړه په دې خدای ﷻ پوه کړي چي عبادت د بتانو پوچ او بې اصله کار دی، لکه زيد بن عمر بن نضيل، رقة بن نوفل ابن عم خديجة الزهراء زوجة النبي ﷺ. نو دا يوه بله نوع ده له فضل څخه د خدای ﷻ "يعطيه من يشاء." او بعض مفسرين يې حذف د موصوف مفعول مطلق بولي والتقدير "اتبعتم الشيطان الا اتباعاً قليلاً" يعني في بعض الامور. ولي چي د ځان ساتنه له متابعت څخه د شيطان له تعليماتو څخه د قرآن عزيز او د تبليغاتو د رسول الله ﷺ لاس ته راځي. ولي عقول د خلکو په حسن د بعضو کارو او په قبح کي د بعضو کارو کافي نه دی. نو بايد خبرونه د سرايااوو من الفتح والهزيمة تاسي تر امر د رسول الله ﷺ ځندولی وای او

قبل الوقت او قبل امره ﷺ مو شائع کړی نه وای.

**درویش وايي:** چي پر دې تقدير ربط د آيت "ولو فضل الله آه" د مخني آيت سره "ولو ردوه آه" ښه واضح سو فافهم فانه سانح عزيز.

**درویش وايي:** چي شيخ نجم الدين قدس سره په تاويلاتو نجميه وو کي داسي ويلي دي چي شايد دا استثناء يعني الا قليلاً به و ابوبکر صديق ﷺ ته راجع وي. ولي چي ابو بکر ﷺ دمخه تر بعثت د عليه الصلوة والسلام رسولاً دده سره هم رايه و، چي عبادت د بتانو لکه چي قريشو کاوه باطل او اغلظ کار باله.

**درویش وايي:** چي چونکه خدای ﷻ دمخه حال د هغو کسانو بيان کړی چي له جنګ څخه د کفارو يې ډېره کول او ددوی قولونه يې هم بيان کړه "وقالوا ربنا لم کتبت علينا القتال آه" او ددوی حال يې هم بيان کړی بقوله تعالی "يخشون کخشية الله آه" په دې آيت کي يوازي خدای ﷻ عليه الصلوة والسلام مخاطب وګرځاوه ولو کان وحده او وعده د نصر يې ورسره وکړه او دا خدای ﷻ ورته ښکاره کړه وتاته تاوان نه رسوي او د قتل د غير پر تا مواخذه نسته.

## فَقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ

ته اې محمد ﷺ جنګ کوه په لار کي د خدای ﷻ. يعنې که څه هم نور مسلمانان له جهاده کښېني او تا يوازي پرېږدي.

## لَا تُكَلَّفُ إِلَّا نَفْسَكَ

تاته تکليف نه درکول کېږي مګر په فعل د خپل ځان بحذف المضاف يعني تاته ضرر نه کوي مخالفت او تقاعد عن القتال ددوی. بغوي ﷫ وايي چي ابو سفيان چي له جنګ څخه فارغه سو او اوويا کسه نامور صحابه کرام ﷺ يې شهيدان کړه چي په هغو کي سيد الشهداء حمزه ﷺ هم و، نو ابو سفيان و عليه الصلوة والسلام ته ور ناري کړې اوس خو داغه مړي بس ته په راتلونکي کي به زه او ته په بدر صغری کي بيا يو جنګ سره کوو عليه الصلوة والسلام ورته وويل ان شاء الله تعالی. نو د بدر صغری د مېلې موسم د ذی القعدې له اول څخه شروع کېدی. نو چي وخت د بدر صغری راورسېدی، نو عليه الصلوة والسلام

مسلمانانو ته بلنه د وتلو وركړه د بعضې مسلمانانو دا خروج خوښ نه و، كذا خرج ابن جرير عن ابن عباس ﷺ، نو عليه الصلوة والسلام وويل "والله لاخرجن ولو وحدي" زه به وزم بدر صغرى ته كه څه هم يوازې يم.

وَحَرِّضِ الْمُؤْمِنِينَ

او ته باعث كوه مسلمانان پر جنګ د كفارو او پر خروج و بدر صغرى ته. ولې چې ستا وظيفه تبليغ او تحريض دى، وما عليك الا البلاغ المبين.

عَسَى اللَّهُ أَنْ يَكُفَّ بَأْسَ الَّذِينَ كَفَرُوا

شايد خداى ﷻ به بند كړي ستاسې جنګ د هغه كسانو سره چې كافران دي يعنې ابو سفيان وحزبه.

**يوه سه:** چې "عسى" ويل د خداى پاک لكه وعداه محتوم ده، نو عليه الصلوة والسلام سره د اوويا كسانو بدر صغرى ته راهي سوه.

**يوه سه:** چې ابو سفيان چې وعده يې د رسول الله ﷺ سره د بدر صغرى كړې وه، نو څه وخت چې موسم د بدر صغرى را ورسېدى خداى ﷻ يې په زړه كې رعب او بېره پيدا كړه او نه راغلى، كوم مسلمانان چې راغلي وه د بدر صغرى په بازار كې يې خريد او فروخت سره شروع كړى او ښې ښې ګټې يې وكړې، او خداى ﷻ خپله وعده په هغه آيت كې كړې وه "عسى الله آه" او په بل ځاى كې يې د قرآن داسې ويلې دي په باره كې د مسلمانانو چې بدر صغرى ته تللي وه "فانقلبوا بنعمة من الله وفضل لم يمسسهم سوء."

**درويش وايي:** چې دا قصه مفصله په سورت آل عمران كې تېره سوه.

وَاللَّهُ أَشَدُّ بَأْسًا وَأَشَدُّ تَنْكِيلًا

او خداى پاک سخت دى په دبدبه كې او عظيم السلطنة او سخت دى په عذاب وركولو كې د كفارو تر قريشو وغيرهم.

مَنْ يَشْفَعْ شَفَاعَةً حَسَنَةً يَكُنْ لَهُ نَصِيبٌ مِنْهَا

كه څوک د بل چا سه شفاعت وكړي يعنې په شفاعت سره ضرر ځنې دفع كړي

او جلب د نفع ورته وکړي او خاص د خدای ﷻ د رضا لپاره. دي شافع ته به خدای پاک ورکړي برخه د شفاعت یعنې ثواب د شفاعت.

**يوه سه**: چي مجاهد رحمه الله وايي چي شفاعت کوونکي ته خدای پاک ثواب د شفاعت ورکوي که څه هم شفاعت قبول نه سي. کذا روی ابن ابي حاتم رحمه الله.

له ابو موسی اشعري رضي الله عنه څخه روايت دی چي يو سړی چي به عليه الصلوة والسلام ته راغلی او طلب د حاجت به يې ځني کاوه، نو عليه الصلوة والسلام به پر موږ مخ را واړاوه او راته وه به يې ويل "اشفعوا تؤجروا" تاسي شفاعت ددي سړي ماته وکړئ او ثواب د شفاعت حاصل کړئ ويقضي الله علی لسان نبيه ماشاء. بخاري مسلم. او په بل حديث کي راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام وويل "الدال علی الخير کفاعله" رواه البزار عن ابن مسعود رضي الله عنه يعني په ثواب کي سره برابر دي.

**يوه سه**: چي يو له شفاعت حسنه څخه د مسلمان ته دعاء ده. عن ابي درداء رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ اذا دعاء الرجل لاخيه بظهر الغيب قال الملائكة امين ولک بمثل ذالک. که يو سړي دعاء وکړه لپاره د ورور يعنې د بل مسلمان په غياب کي د هغه. نو ملکي وايي امين او تاته هم مثل ددغي دعاء درکول کيږي. او ابن عباس رضي الله عنه وايي شفاعت حسنه اصلاح بين الناس ده او بعض وايي شفاعت حسنه نه خبري دي د خلګو په منځ کي چي غرض يې ثواب او خير وي.

**درويش وايي**: چي ددغو نامورو روايانو رحمهم الله غرض حصر نه دی فيما قالوا بل قال "کل واحد منهم ذکر الاهم من الشفاعة عنده" والله اعلم بالصواب.

وَمَنْ يَشْفَعْ شَفَاعَةً سَيِّئَةً يَكُنْ لَّهُ كِفْلٌ مِّنْهَا ۚ

او که چا شفاعت وکړی بد شفاعت، وي به ده لره يوه برخه د هغه يعنې ګناه د هغه شفاعت، ابن عباس رضي الله عنه وايي چي شفاعت سيئه نميمه يعنې د دوو کسانو تر منځ شيطانت کول دي. او بعض علماء وايي د چا غيبت کول دي. او بعض علماء وايي چي د خلګو په منځ کي بدي خبري کول چي مفضي وشر ته سي.

له ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي عليه الصلوة والسلام وويل که يو چا د

بل سړي کومک وکړي په قتل کي د يو چا په يو لږ خبره سره "لقي الله" د خدای پاک سره به ملاقي سي په ورځ د قيامت به حشر سي "مکتوب بين عينيه" نوشته به وي د سترګو تر منځ دده هغه "آيس من رحمة الله" نا اميد دی له رحمت څخه د خدای ﷻ.

**درويش وايي**: چي نو به څه حال وي د هغه کسانو چي د کفارو سره په صف کي ولاړ وي او مسلمانان وژني کما في الزمان الحاضر سنه ۱۴۲۷ هـ ق، شيخ اکبر محي الدين ابن العربي قدس سره وايي چي په بعضو بلادو کي د عربو يو غټ مالدار سړي زه ميلمه کړم او ډېري تحفې او هداياوي يې زما لپاره راوړي وې، نو ډوډۍ او هداياوي چي يې حاضري کړې، نو دده ځمکي حکومت وقتي سرکاري کړي وې، نو ما ته يې وويل چي ته زما شفاعت سلطان الوقت ته وکړه چي زما ځمکي بيرته راکړي، زما خبره په تېز د سلطان الوقت ډېره مقبوله وه، نو ما ورته وويل چي ښه دی شفاعت به دي وکړم لکن ډوډۍ دي نه خورم او هدايا دي هم نه کوم په زړه کي مي دارا وګرځېدل چي دا خو ګويا ماته رشوت راکوي، نو ورغلم سلطان الوقت ته او د هغه سړي شفاعت مي وکړی، سلطان الوقت سمدستي د هغه سړي ځمکي بيرته ورکړې، زه څني ولاړم نه مي ډوډۍ وخوړه او نو مي هداياوي قبولې کړې.

وَكَانَ اللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ مُّقِيتًا ﴿٨٥﴾

او دی خدای ﷻ پر هر شي مقتدر يعنې چي يو له شيانو څخه مجازات د حسناتو او د سيئاتو دی.

وَإِذَا حُيِّيتُم بِتَحِيَّةٍ

چي تاسي ته پېش کش درکړه سي په يو پېش کش سره.

**پوه سه**: چي "تحيه" مصدر دی د حياک الله که څه هم په اصل کي اخبار دی چي معنا يې ده "ته ژوندی ساتلی يې خدای ﷻ" لکن په معنا د انشاء او دعاء دی يعنې خدای ﷻ دي ژوندی لره.

**پوه سه**: چي عرب په جاهليت کي پلار او زوی چي په سره ملاقي سوه، نو يو

او بل ته به يې سره ويل حياک الله يعنې خدای دي دراز عمر درکړي ، او وروسته دا لفظ په اسلام کې بدل سو په سلام سره او خدای ﷻ زموږ لپاره تحيه سلام وګرځاوه په دنيا او په جنت کې. د عمران بن حصين ﷺ څخه روايت دی موږ به د جاهليت په وخت کې يو وبل ته داسې ويل "انعم الله بک عينا" او يا انعم صباحاً فلما جاء الاسلام" نو موږ د جاهليت له وينا څخه نهي سوو رواه ابو داؤد.

وعن ابن هريره ﷺ ده وويل چې خدای ﷻ چې آدم ﷺ پيدا کړی پر صورت دده چې جګ والی يې شپېته ذراع و، نو وروسته د خلق يې آدم ﷺ ته وويل ورسه هغه څه نفر ملکې چې ناستي دي سلام ورواچوه. او غوږ ونيسي چې دوی څه درته وايي هغه ستا او ستا د اولاد تحيه ده. نو آدم ﷺ ورغلی او ورته وه يې ويل السلام عليکم؟ هغو ورته وويل وعليکم السلام ورحمة الله يعنې لفظ د رحمة الله يې دده پر سلام زيات کړی بخاري او مسلم.

**درويش وايي:** چې له دې حديث څخه دا معلومه سوه چې السلام عليکم او خواب د هغه سنت قديمه دی، نه يوازې د اسلامي دين له خوا څخه. البته اهل جاهليت دا آبائي تحيه په نورو الفاظو بدل کړی دی کمامر، د اسلام دين بيرته تحديد وکړی وبس.

**پوه سه:** چې بعض علماء وايي چې تحيه د نصارى وو وضع اليد على الفم وه، او تحيه د يهودانو اشاره د لاس په ګوتو سره وه، او تحيه د مجوسيانو په صرف سر کښته کولو سره وه، يعنې د ټولو دا په فعل تحيه وه په خوله يې هيڅ نه ويل. او تحيه د اهل جاهليت حياک الله خدای دي دراز ژوند درکړي، او بعضو به ويل عش الف سنة زر کاله ژوندی اوسې او السلام عليکم ډېره ښه تحيه ده، ولې چې د نصارى، يهودانو او مجوسيانو دا خو صرف عملي کار و دعاء هيڅ نه وه پکښې، او د جاهليت په تحيه کې که څه هم دعاء وه لکن دعاء يې پر دې دنيا حصر وه، او د السلام عليکم په تحيه کې دعاء د سلامت ده مخاطب ته په سلاميتيا له آفاتو څخه د دنيا من مرض وفقر وموت العيال الى غير ذالک ومن آفات الآخرة کالمناقشة في الحساب ودخول النار وغير ذالک. فالتحية

الاسلامية اشرف التحيات لقدمها والاشتمالها للدنيا والآخرة.

**فَحَيُّوا بِأَحْسَنَ مِنْهَا أَوْ رُدُّوهَا ۗ**

نو تاسي وقائل ته د سلام دده تر سلام ښه تحيه ورکړئ. او يا ور رد کړئ "بحذف المضاف اى ردوا امثالها" يعني هغه دده په الفاظو ځواب ورکړئ.

**پوه سه**: چې ښه طريقه يې داده که سړي تاته وويل السلام عليكم ته په ځواب کې د رحمة الله لفظ هم ورضم کړه يعني وعليكم السلام ورحمة الله، او که هغه رحمة الله هم وويل ته په ځواب کې ور زياته کړه وبركاته يعني وعليكم السلام ورحمة الله وبركاته. او رد يې دادی چې هغه ووايي السلام عليكم ته ورته ووايه وعليكم السلام.

**مسئله**: سلام اچول ابتداءً خو سنت دی لکن ځواب يې واجب دی.

**فائده**: په قرآن مجيد کې او د تخيير لپاره دی که څه هم رد احسن يې مستحب دی.

**پوښتنه**: کلمه د واو په وعليكم السلام کې د عطف لپاره خو نه سي کېدای، ولې عطف د کلام د يوه متکلم د بل متکلم پر کلام خو نه دی روا، او ابتدائيه خو هم نه دی لانه وقع جواباً لقول المسلم الآخر؟

**ځواب**: کلمه د واو عطف ده پر محذوف باندې والتقدير علي وعليكم السلام.

**مسئله**: منتهى د سلام دغه الفاظ دي السلام عليكم ورحمة الله وبركاته. ولې چې ټوله مذکوره الفاظ ټولو اقسامو ته د مطالبو شامل دي وهي السلامة من المضار ونيل المنافع، او معنا د رحمة الله دوام دی د هغو او معنا د برکاته زيادت او نما د هغو. کلها في الدينا والآخرة فلم يبق شئ من المطالب. ولهذا اكتفى في تشهد الصلوة على هذا المقدر. په حديث شريف کې راغلي دي "من قال السلام عليكم ورجمة الله وبركاته" د هغه لپاره دېرش نېکی نوشته کېږي.

**فائده**: هر څوک چې سلام وبل ته وايي دده اختيار دی که السلام عليكم وايي يعني په تعريف د السلام او که سلام عليكم وايي يعني په تنکير سره، ولې چې دواړه لفظونه په قرآن مبارک کې راغلي دي قال الله تعالى "والسلام على من اتبع الهدى" وقال " وسلام على من اتبع الهدى" لكن په قرآن کې تنکير ډېر

راغلی دی والكل جائز، لكن له لمانځه څخه د خلاصېدو په وخت کې سلام تعريف ضروري دی لعدم سماع التنكير فيه.

**سوال:** نحات خوا وايي چې خالصه نکره مبتدا، نه سي واقع کېدای يعني تعريف يا تخصيص غواړي، نو سلام په قرآن کې څرنګه او يا زموږ د سلام په نکارت سره توجيه به يې څه وي؟

**ځواب:** عبدالرحمن الجامي په شرح کې د کافيه وايي چې سلام نکره مخصصه ده ای سلام من قبلي عليک.

**پوښتنه:** يو سړی چې بل سړي ته سلام وايي، نو داسي ورته وايي "السلام عليكم" او هغه بل سړی ورته وايي وعليكم السلام، نو ضمير د جمع چې کوم دی چاته راجع دی؟

**ځواب:** په دې صورت کې سلام و سړي ته دی او د دوو ملکو چې دده سره دي او ملکې هم دده د سلام ځواب ورکوي "ومن سلم عليه الملک فقد سلم من عذاب الله ان شاء الله" په صحيح حديث کې راغلي دي چې يو سړی و عليه الصلوة والسلام ته راغلی او داسي سلام يې ورواېه السلام عليكم. عليه الصلوة والسلام ورته وويل و عليكم السلام ورحمة الله وبركاته، او بل سړی چې دواړه ځوابونه د عليه الصلوة والسلام يې اورېدلي وه، نو ولاړ سو او بيرته راغی او داسي سلام يې و عليه الصلوة والسلام ته وواېه السلام عليكم ورحمة الله وبركاته فقال وعليک فقط، نو هغه سړي ورته وويل چې زما سلام دي راکم کړی يعني هغه اورېدو، نو د خدای ﷻ هغه آيت څرنګه سو "فحيوا باحسن منها" عليه الصلوة والسلام ورته وويل چې تا ماته د فضل او احسن ځای نه پرېښو، نو ځکه ما ځواب بالمثل در کړی.

**مسئله:** امام ابو يوسف رحمه الله وايي که يو چا بل سړي ته وويل چې پر فلاني مي سلام وايه، پر هغه واجبه ده چې سلام به ور رسوي، او که چا په کاغذ کې بل سړي ته سلام ليکلی و، دی به هم جواب په په مکتوب سلام سره ور استوي.

**درويش وايي:** چې وايي وكلما زاد في السلام او الجواب كان اكثر ثواباً

وافضل آه" له دې عبارت څخه دا معلومېږي چې سلام او ځواب د هغه حد محدود نه لري وهذا ينافي قول النبي ﷺ فيمامر من الحديث آنفاً چې هغه سړي ته يې وويل چې تا ماته د فضل ځای نه پرېښو آه. نو که حد محدود سلام نه درلودای نو مغفرت ته به عليه الصلوة والسلام ورسره زيات کړی وای. نو دا به يې رد وای په احسن منها سره. او دغه رنګه د کليه قاعدې سره د مظهري رحمه الله هغه حديث د ابن عباس رضي الله عنه هم منافي دی چې ابن عباس رضي الله عنه ته چا سلام ورواچاوه او ده يې ويل السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته وزاد لفظ آخر فقال ابن عباس رضي الله عنه السلام انتهى الى البرکة يعنې سلام د برکت پر لفظ ختم سو. او داغه رنګه مظهري رحمه الله يو حديث په روايت د معاذ بن انس رضي الله عنه را نقل کړی دی او نسبت د روايت يې ابو داؤد ته کړی دی چې يو سړی و عليه الصلوة والسلام ته راغلی او داسې سلام يې وواييه السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته ومغفرته. عليه الصلوة والسلام ورته وويل دا يې څلوېښت. يعنې څلوېښت نېکۍ چې دا هم پر دې دلالت کوي چې د سلام الفاظ محدود نه دي والله اعلم بالصواب.

**مسئله**: که يوه ډله ناسته او يو چا سلام ورواچاوه او يوه سړي د سلام ځواب ورکړی کافي دی، ولې د سلام ځواب فرض کفايي دی. او که يوه ډله روانه وه او يوه نفر ناستو خلګو ته سلام واچاوه کافي دی لان ابتداء السلام سنة کفائية.

**مسئله**: تبادر و سلام اچولو ته چې دوه کسه په مخه سره ورسي ښکاره دی او افضل دی، که مشر سړی تبادر وکړی او که کشر. په حديث شريف کې چې روايت يې ابو هريره رضي الله عنه کړی دی راغلي دي چې عليه الصلوة والسلام وفرمايل "لاتدخلوا الجنة حتى يؤمنوا" يعنې تاسې جنت ته نه سئ ورتلای تر څو چې مو ايمان نه وي راوړی "ولا تؤمنوا حتى تحابوا" او تاسې مؤمنان نه سئ کېدای چې يو له بله سره محبت ونه کړئ "اولا ادلکم على شئ اذا فعلتموه تحابيتم" آيا زه تاسې ته داسې درونه ښيم چې تاسې هغه وکړئ محبت به مو سره پيدا سي "افشوا السلام بينکم" تاسې د پر سره وا ياست سلام په خپل منځ کې، رواه مسلم. او له ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چې اول کونکی د سلام له کبره خلاص دی رواه البيهقي.

**مسئله**: سپور سړی دي وپیاده سړي ته سلام وایي او پیاده دې و ناست سړي ته وایي او لږ خلګ دي وډېر جماعت ته سلام وایي او کشر سړی ته و مشر ته سلام وایي کذا جاء في حدیث البخاري ومسلم.

**مسئله**: سړی دي سلام تر خبرو مخکې وچاته ور اچوي.

**مسئله**: که یو چا د بل چا سلام چاته وروړی، نو هغه دي په جواب کې داسې ورته ورته ووایي علیک وعلیه السلام کما ورد في الحدیث الذي رواه غالب عن ابیه عن جده، غالب ﷺ وایي چې زه پلار واستولم چې ته ور سه و علیه الصلوة والسلام ته زما سلام ووایه ما چې دا سلام د پلار له لوري و علیه الصلوة والسلام ته ورساوه، نو ده مبارک په ځواب کې داسې راته وویل علیک وعلی ابیک السلام.

**فائده**: حاجیان چې حج ته ځي نو نور قریبان او دوستان یې ورته ووایي چې زما سلام به و علیه الصلوة والسلام ته وایه. نو پر ده واجب ده چې دا سلامونه به و علیه الصلوة والسلام په وخت کې د حضور د قبر شریف رسوي، اوس نو مسئله داده چې د حاجي صاحب څو د ټولو سلام استونکو نومان نه دي په یاد چې نوم پر نوم ټوله سلامونه د قبر انور په مواجهت حضرت خاتم النبوة ﷺ ورسوي، نو حاجي دي داسې ووایي "الصلوة والسلام علیک یا رسول الله من جانب جمیع من اوصاني بالسلام علیک" یعنې صلوة او سلام دي وي پر تا یا رسول الله ﷺ له طرفه څخه د ټولو هغو کسانو چې ما ته یې وصیت کړی و یعنې زه یې امر کړی وم په سلام پر تابندي یا رسول الله ﷺ. نو د قبر انور څخه داسې ځواب ورکړه سي که یې څوک اوري که یې نه اوري علیک وعلیهم السلام وهذه کرامة عظیمة لهذا الشخص یعنې چې سلام د خلګو یې و علیه الصلوة والسلام ته ورساوه لان عقیدة اهل السنة والجماعة ان رسول الله ﷺ حي في قبره یرزق.

**مسئله**: که یو سړي و بل ته سلام ووایه وروسته ددوی دوو تر منځ یوه درخته حائل سوه یا دېوال یا یوه ډبره چې بیا سره ووینې بیا دي نوی سلام ورواچوي په اول سلام دي کفایت نه کوي، وبهذا المعنی جاء حدیث ابی هریره ﷺ الذي رواه ابو داؤد.

**مسئله**: څوک چې له چا څخه رخصت اخلي په وخت کې د رخصتېدلو دي هم



Scanned by CamScanner

السلام علیکم ورته ووايي، عن قتاده ﷺ قال قال رسول الله ﷺ اذا دخلتم بيتاً فسلموا على اهله فاذا خرجتم فادعوا اهله بالسلام، چي تاسي داخل سئ و يو كور ته، نو تاسي سلام ووایاست و اهل ته د کور، او چي تاسي وځي رخصت واخلئ د کور والا څخه په سلام سره رواه البيهقي.

له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي عليه الصلوة والسلام وويل چي يو سړی چي يو مجلس ته ورسي، نو سلام دي ورواچوي که کښېنستی خو کښېني دي، او که ځني تلی بیا دي سلام و هغه مجلس والو ته ووايي. په اخير کي ددې حديث داسي راغلي دي "فليست الاولى باحق من الثانية" رواه الترمذي وابو داوٗد.

و هيڅ کافر ته دي ابتداءً سلام نه کوي لقوله عليه الصلوة والسلام لاتبدوا اليهود ولا النصارى بالسلام الى اخير الحديث"

**مسئله**: که په يو مجلس کي مسلمانان، يهودان او مشركان ګډوډ سره ناست وه، سلام خو دي ور اچوي لکن په نيت کي دي مسلمانان وي، وبمثله جاء الحديث مرفوعاً كما رواه الشيخان.

**مسئله**: که اهل ذمه يعني كافر چي د مسلمانانو ذمه يې قبله کړي وي سړي ته سلام ور واچوي ځواب دي فقط دونده قدر ورته وايي وعليكم. وبهذا جاء الحديث عن انس ﷺ رواه البخاري ومسلم.

**مسئله**: نه دی واجب بلكې نه دی روا سلام و هغه چاته چي هغه پر لمانځه ولاړ وي، او بل د خطبې په وخت كي، نو که په لمانځه کي هغه سړي ځواب ورکړی لمونځ يې فاسد دی. او په وخت کي د قرائة القرآن جهراً او په اذان او اقامت کي، او د حديثو د رس يا د نورو علومو دينه وو د درس په وخت کي دي هم څوک سلام نه اچوي.

**پوه سه**: چي په روايت کي د روح البيان په جواب کي د سلام د اهل الذمة وو لفظ د عليک بدون الواو راغلی دی او دا روايت د هر په زړه پوري دی تر روايت د مظهري رحمه الله کمامر عنقريب. له دې کبله چي معطوف عليه ته ضرورت نه سي پيدا ای علي وعليكم كمامر منا فتدبر فيه.

**مسئله**: قاضي چي په محکمه کي ناست وي د مدعي او د مدعی علیه سلام ته دي ځواب نه ورکوي، او داغه رنګه قاضي چي د حکم ځای ته راسي او خصمان ناست وي سلام دي نه وراچوي تاچه هیبت یې بر قرار وي.

**مسئله**: قرطبي وایي چي ځوانانو ښځو ته دي سلام نه وراچوي او نه دي د سلام ځواب ورکوي په سبب د خوف د فتنې په خبرو کي ددوی په وسوسه د شیطان، او پر محارمو ښځو او سپین سرو ښاندي سلام او ځواب د سلام دواړه ښه کار دی.

**مسئله**: هغه خلګو ته چي په قطار یا شطرنج سره اخته وي او یا مغني په غنا اخته وي او یا سړی پر بولو یا اودس مات ناست وي، او یا کوترې الوځوي یا لغ سړی یعنې عورت یې لغ وي دې ټولو ته دي سلام نه اچوي.

**یو سه**: چي یو ملنګ مسجد ته ورغلی او یو مولوي صاحب ناست و، ملنګ سلام ورواچاوه مولوي صاحب ډېر په کرار سره ځواب ورکړی. وروسته یو بل غني سړی راغلی هغه چي مولوي صاحب ته سلام واچاوه. نو مولوي صاحب په ډېر بلند آواز سره وعلیکم السلام ورته ووایه، نو ملنګ ورته وویل مولوي صاحب د سلام ځواب پر څو قسمه دی؟ مولوي صاحب ورته وویل یو قسم دی، ملنګ ورته وویل ستا دا خو دوه قسمه دی، نو مولوي صاحب ډېر خجالت سو.

إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ حَسِيبًا ﴿٨٦﴾

په تحقیق خدای ﷻ د هر شي یعنې هر عمل حساب کونکی دی او جزاء ورکونکی دی، نو په جمله کي د هر شي او رد د سلام داخل دی وبه یحصل الربط بما قبله کما لا یخفی.

**درویش وایي**: چي مناسب د مبحث سره د سلام چي له حقوقو څخه د مسلمانانو دی یو پر بل باندي هغه حدیث دی چي روایت یې ابو هریره ﷺ کړی دی چي علیه الصلوة والسلام وویل چي یو مؤمن بر بل مؤمن شپږ حقونه لري.

(۱) پوښتنې ته به ورځي چي ناروغه وي (۲) جنازې ته به یې ورځي چي مړ سي (۳) او قبلونه د مېلمستیا به یې کوي چي دعوت ورکړي (۴) سلام به وراچوي چي ورسره ملاقي سي (۵) یرحمک الله به ورته وایي چي ونږېږي (٦)

خیر خواهي به يې کوي که هغه حاضر وي او که غائب وي، رواه النسائي وفي رواية الترمذي ذكر السادس ويحب له مايحب لنفسه ولا منافات بين الحديثين لان مآل وينصح له آه ويحب له آه واحد.

**فائده:** له متمماتو څخه د تحية السلام د مصافحت والمعانقة. د مصافحه معنا داده چي يو له بله تر بغل لاسونه سره وکاږي او جوړ خوشحاله سره کوي. او د معانقي معنا داده چي لاسونه يو له بله په غاړه کي سره واچوي، وفي الحديث الذي رواه احمد والترمذي عن ابي امامة ﷺ چي عليه الصلوة والسلام وويل تمام تحياتكم بينكم المصافحة، وعن ابي ذر ﷺ دی وايي زه نه يم ملاقي سوی د رسول الله ﷺ هيڅ وخت الا صافحني او عليه الصلوة والسلام ماته يوه ورځ يو سړی راستولی و او زه کورته نه وم، نو زه چي کورته راغلم کورته يې راته وويل چي عليه الصلوة والسلام په تاپسي سړی را استولی و، نو زه چي ورغلم عليه الصلوة والسلام پر چارپائي پروت و، نو زه يې په غېږ پوري ټينګ کړم فکان تلك اجود واجود دې کار د عليه الصلوة والسلام ډېر ښه خوند وکړی رواه ابو داؤد.

## اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ

**يوه سه:** چي لفظ "الله" مبتداء ده او "لا اله آه" يې خبر دی او دا جمله معترضه ده په منځ کي د دمخه تهديد الهي چي د "ان الله كان آه" څخه وفهمېدی او د وروسته تهديد چي د "ليجمعنكم" څخه فهمېږي، نو يې معنا داده الله ﷻ نسته بل مستحق د عبادت بېله ده، نو پر دې تقدير "ليجمعنكم آه" خبر بعد الخبر دی د "الله" د لفظ. او دا احتمال هم سته چي لفظ "الله" دې مبتداء وي كلمه توحيد دې جمله معترضه وي او "ليجمعنكم" دې خبر وي.

## لَيَجْمَعَنَّكُمْ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ

لام لپاره د قسم دی ای والله زه به سره جمع کړم تاسي له قبرو څخه و ورځي ته د قيامت يعني د حساب لپاره او يا لام په معنی د في جاره دی ای في يوم القيامة والمآل واحد.

لَارَيْبَ فِيْهِ

چي شک نسته په دې ورځ کې او یا په دې جمع کې.

**پوه سه**: چي لام لپاره د نفي جنس دی او "ریب" مبني پر فتحه یې اسم دی او "فیه" یې خبر دی.

**سوال**: خدای پاک نفي د شک وکړه او سره ددې چې منکران د قیامت تول مشرکان دي؟

**ځواب**: معنا د آیت داده چې شک نسته په ورځ کې د قیامت بعد النظر الصحیح في بدء خلق الله الذي یعترف به المشرکون لقولهم في سوال من قال لهم من خلقکم "الله" وبدء الخلق لیس باهون من الاعادة فینبغي ان یعترفون ویصدقون بالاعادة. وقیل معناه لاریب فیه للمؤمنین وهو ظاهر لان من شروط الایمان بیوم القیامة.

وَمَنْ اَصْدَقُ مِنَ اللّٰهِ حَدِيْثًا

او څوک دی زیاده تر صادق په خبرو کې، یعنې نسته فالاستفهام للانکار.

**پوه سه**: چي دا جمله لکه دلیل لقوله لاریب فیه. ولې د قیامت د ورځ اخبار خو خدای ﷻ کړی دی والکذب علی الله محال نقلاً وشرعاً. نو چې خدای ﷻ وویل لاریب فیه. نو قیامه د قیامت رشیتا ده "ومن اصدق آه" بخاري وایي چې علیه الصلوة والسلام چې د احد جنگ ته ووتی، نو منافقان تر یو ځایه ورسره ووتل. وروسته عبدالله بن ابي رئیس المنافقین ناري کړې چې دا جنگ نه دي بلکې په قصد سره ځان وژني فرجعوا الی المدینة (۳۰۰) نو د اصحابو په منځ کې اختلاف پیدا سو. بعضو ویل راسئ اول دا منافقین له منځه یوسو. وروسته به د مشرکانو جنگ ته ورسو یعنې احد ته. او بعضو اصحابو وویل چې ولې ددوی په جنگ ځانونه اخته کوو والمهم لنا حزب المشرکین. نو دا آیت نازل سو.

فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنٰفِقِيْنَ فِئَتَيْنِ

پس له څه سببه تاسې مسلمانان لپاره د قتال د منافقینو دوې ډلې سولاست یعنې لاینبغي لکم الاختلاف في هذا الموقع الحساس.

**پوه سه**: چي کلمه د "فا" تفریع ده پر هغه قول ومن اصدق من الله آه، وحاصل التفریع چي تاسي په خپله رایه ولي اختلاف کوئ په باره کي د منافقینو. ولي ددوی حال نه سپاري و حکم ته د خدای ﷻ هر څه چي هغه حکم در کړي هغسي وکړئ لانه تعالی اصدق حدیثاً.

**پوه سه**: چي کلمه د "ما" مبتدا، ده او "لکم" یې په اعتبار المتعلق المحذوف خبر دی ای ماثبت وسنح لکم في المنافقین ظرف دی متعلق په فعل محذوف پوري او "فئتین" حال دی له ضمیر څخه د "لکم" والعامل فیه الفعل المحذوف.

**فائده**: علامه مظهري رحمه الله که څه هم هغه شان نزول ددې آیت چي په روایت د بخاري درویش ذکر کړی راوړی دی، لکن وروسته یې دوه نور شان نزوله داسي بیان کړي دي چي د سیاق سره د کلام آتي چندان مناسبت نه لري والله اعلم بالصواب والیه المرجع والیه المآب.

**پوښتنه**: امام مظهري رحمه الله خو منل سوی مسلّم مفسر او محدث او علامه دی چي ته یې په صف النعال کي هم نه یې، نو ته ولي پر ده تنقید کوې؟

**ځواب**: دا تولې خبرې چي تا وکړې دا درویش تولو منې لکن زما اختلاف ده سره گاهي گاهي دی، نه پر حسد علمي بناء دی نه پر حسد قومي بلکې اظهار د خپل فکر کوم چي دا نه غیبت دی بلکې داده مصنفینو قدیماً وحدیثاً عادت دی

**درویش وایي**: چي ددې آیت په شان کي لکه مظهري چي مختلف روایات په نقل د روح المعاني څخه که څه هم و نقل ته یې اشاره نه ده کړې، داغه رنگه په نورو تفاسیرو کي لوی جنجال دی په شان نزول کي ددې آیت او د ابعدها. لکن چونکه عمومي مطالعه کونکي دداسي مختلف اقوالو د زد کړې توان نه لري، نو ځکه تولـه ترجمه ددغو آیتو پر موافق د روایت د سید المحدثین محمد بن اسمعاعیل البخاري کوم ان شاء الله تعالی.

**وَاللَّهُ أَرْكَسَهُم**

خدای ﷻ رد کړه دوی، یعني وکفر ته یعني نفاق ددوی یې رسوا کړی حیث رجعوا بدعوت رئیس هم عبد الله بن ابي من غزوة احد واختلف الصحابة رضي الله عنهم في قتلهم

وتركهم كما مر او خدای ﷻ په دې قول فما لکم آه، دوی له دغه اختلاف څخه منع کړه.

## بِمَا كَسَبُوٓا۟ ۚ

من الرجوع عن غزوة احد په سبب د سابق نفاق ددوی. او مظهري چې تفسير کړی دی من الردة واللحوق بدار الحرب هغه پر هغو روایاتو چې مخالف له روایت څخه د بخاري رحمه الله دی مبني دی.

## أَتُرِيدُونَ أَن تَهْدُوا۟ مَنْ أَضَلَّ ٱللَّهُ ۖ

آیا ستاسې اراده ده چې تاسې پر هدايت وګرځوي ايها المؤمنون هغه کسان چې خالق د هدايت او ضلال چې خدای ﷻ په دوی کې خلق د ضلال کړی دی. والمراد هؤلاء المنافقون.

**درویش وايي:** چې په دې آیت کې اشاره ودې ته ده چې خالق د هدايت او ضلال خدای ﷻ دی بنده صرف کاسب دی کما هو مذهب اهل السنة والجماعة، او ثواب او جنت ورکول او یا دوزخ او عذاب ورکول په ورځ د قیامت هم مربوط په کسب پورې د بنده دی.

## وَمَن يُضْلِلِ ٱللَّهُ فَلَن تَجِدَ لَهُۥ سَبِيلًا ۝ وَدُّوا۟ لَوْ تَكْفُرُونَ كَمَا كَفَرُوا۟

او څوک چې خدای ﷻ ګمراه کړي ته اې محمد ﷺ نه سې پیدا کولای لاره د هدايت و حق ته. دغه منافقين خوښه او تمنی لري ددې چې تاسې مخلص مسلمانان کافران کړي لکه دوی چې کفر مختاره کړی دی. نو کلمه د "لو" په معنا د ان مصدري ده. په صحیح روایت سره ثابته ده چې د مسلمانانو چې د احد په غزاء کې هزیمت او شهادت په برخه سو. نو دغو منافقانو به ویاته مخلصو مسلمانانو ته ویل چې بیرته د خپل پلار او نیکه دین ته رجوع وکړئ موږ به مو د ابو سفیان سره صلح دروکړو. لکن هیهات قبول ذالک من المؤمنين المخلصين وترک دين الرسول.

## فَتَكُونُونَ سَوَآءً ۖ

نو به تاسې برابر سئ ددوی په ضلال او کفر کې.

**یو سه:** چې "فتکونون" کې نون عطف دی پر "تکفرون" باندې.

فَلَا تَتَّخِذُوا مِنْهُمْ أَوْلِيَاءَ حَتَّىٰ يُهَاجِرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ

نو تاسي مه اخلئ ايها المؤمنون له دغو منافقينو څخه دوستان يې په سبب د اشتراک نسبي او قومي، تر هغو چې دوی هجرت کوي په لار کې د خدای ﷻ.

**درويش وايي:** چې مظهري رحمه الله چې وايي ان الهجرة کانت يومئذ فريضة آو، ده له هجرت څخه هجرت له مکې څخه مدينې منورې ته مراد کړی دی عکرمه رضي الله عنه وايي چې هجرت پر درې قسمه دی، يو هجرت دی د مؤمنانو په اول کې د اسلام و دار المؤمنين المدينة المنورة ته وهي کانت مفروضة کما قال المظهري، او بل هجرت دی د منافقانو چې هغه خروج د منافقانو سره د عليه الصلوة والسلام و غزواتو ته صابرين محتسبين.

**درويش وايي:** وهو المراد ههنا فينظم الكلام الالهي والآيات القرآنية على نسق واحد موافقاً لما رواه البخاري کما مر، عکرمه رضي الله عنه وايي چې دريم هجرت دی د عامة المؤمنين وهي ترک ما نهى الله تعالى عنه يعنې هجرت له گنهو څخه.

**تمهيد:** درويش وايي منافقان څو قسمه وه، يو قسم داسې وه چې له مکې مکرمې څخه راغله مدينې منورې ته او اسلام به يې راوړی بيرته به يې په زړو کې د خپل زاړه دين شرک محبت په زړه کې ور وگرځېدی او مرتد به سول، مگر يو څو ورځې به يې د عليه الصلوة والسلام سره منافقانه ژوند وکړی وروسته به يې عليه الصلوة والسلام ته وويل چې موږ به مکې ته ولاړ سو چې خپلې پيسې او پورونه وکاږو، او زموږ نور سامانونه چې هورې پاته دي را به يې وړو او دلې به په مدينه کې تجارت په کوو، عليه الصلوة والسلام به اجازه ورکړه دوی چې به ولاړه هورې به يې خپل ارتداد ښکاره کړی او هلته به پاته سوه، او بعض منافقان داسې وه چې له قريشو څخه به و مدينې منورې ته راغله ايمان به يې راوړی وروسته به پښېمانه سوه، نو عليه الصلوة والسلام ته به يې وويل چې پر موږ باندې د مدينې هوا بده لگېږي موږ به بېرته ولاړ سو هورې به هوا خورې وکړو بېرته به راسو، عليه الصلوة والسلام به اجازه ورکړه دوی چې بدر ته ولاړه کرار کرار پسې روان وه چې مکې ته يې ځانونه ورسول، او بل قسم منافقان هغه

وه چي عبدالله بن ابي يې مشري پر غاړه درلوده او په غزاء كي د احد يې د عليه الصلوة والسلام ملا ور ماته كړه يعني له لښكر څخه د احد ووتل او مديني ته راغله كما رواه البخاري. او بعض منافقان به د عليه الصلوة والسلام سره غزاء ته ولاړه لكه د عبدالله بن ابي په مشرى يو څو كسه په يوه غزاء كي د عليه الصلوة والسلام سره ملګري وه، لكن په لار كي د عبدالله د نفرو او انصارو تر منځ څه جنګ او دعوه پېښ سوې وه، او بعض راوايان وايي چي د بعضي مهاجرينو او د ابي د اتباعو تر منځ څه د حملو جنګ سوى و. نو عبدالله بن ابي وخپل ملګرو ته وويل على ما حكاه الله عنهم في سورة المنافقين لاتنفقوا على من عند رسول الله حتى ينفضوا چي نفقه مه وركوئ و هغو كسانو ته يعني رسول الله ﷺ والمهاجرين حتى چي له لوږي به دوى سره متفرق سي، او د رسول الله ﷺ څخه به ولاړ سي، او دا يې هم وويل لئن رجعنا الى المدينة ليخرجن الاعز منها الاذل، يعني كه موږ رجوع وكړه و مديني ته، نو عزت والا خلګ به (خپل ځانونه يې ښوول) وباسي ذليل خلګ (چي عليه الصلوة والسلام او مهاجرين يې مراد وه) دا خبره چي عليه الصلوة والسلام ته چا وررسوله، نو عليه الصلوة والسلام ابي او ملګري راوغوښتل چي تاسي رشتيا دا خبره كړې ده، دوى قسمونه ورته واخستل چي موږ دا خبره نه ده كړې، نو عليه الصلوة والسلام دوى تصديق وكړى او د خبر راوړونكي يې تكذيب وكړى، حتى چي دا سورت نازل سو ﴿اذا جائك المنافقون قالوا نشهد انک لرسول الله والله يشهد انک لرسوله والله يشهد ان المنافقين لكاذبون الى اخير السورة﴾ او بعض منافقان داسي وه چي عليه الصلوة والسلام به يوې غزاء ته وتى دوى به ځانونه ګوښه كړه او جنګ ته به نه ورسره ولاړه، او عليه الصلوة والسلام چي به له غزاء څخه را ستون سو دوى به راغله عذر بالباطل به يې ورته كاوه، مثلاً يوه به ويل چي زما ماينه ډېره سخته ناجوړې وه و امثال ذالک، او پر دې به يې و عليه الصلوة والسلام ته قسمونه اخستل. آنحضرت ﷺ چي ډېر صاف دله او رحم دله شخصيت و د دوى قسمونه به يې ومنله او دوئ به يې معذوره وبلل.

**تبصره:** درویش وايي چي د منافقینو بعض منافقت خو علیه الصلوة والسلام چشم دید ولیدی لکه هغه منافقین چي د احد له جنګه یې ډډه وکړه او له نبوي لښکر څخه راووتل. او د بعضو منافقت و علیه الصلوة والسلام ته په وحي سره معلوم سو لکه په سورة المنافقون کي تر پایه پوري، نو ولي علیه الصلوة والسلام او مخلصو مسلمانانو د دوی د قتل امر نه ورکاوه؟

**ځواب:** اول خو د اسلام رنګ پدی و، ولي لیري خلګو به ویلای چي محمد ﷺ ځیل بعض اصحاب او مسلمانان وژني چي دده طبیعت څني خراب سي، او دویم ځواب دادی چي ډېر منافقان د انصارو مخلصونو سره په قومیت شریک وه یعني الاوس والخزرج. او په عربو کي قوم ګلوي او قو پرستي ډېره مشروع وه. نو له دې کبله علیه الصلوة والسلام حکم ددوی د قتل نه کاوه چي په منځ کي د مخلصانو د اوس او خزرج بې اتفاقي او جنګ او نزاع نه سي پیدا. لکه بعض اوقات چي داسي موضوعات په انصارو کي رونما سوي هم وې کما في الاحادیث الصحیحة المتفق علیها.

**درویش وايي:** چي وروسته تر تمهید او تبصره واوره تفسیر د آیاتو باقیه وو.

فَإِنْ تَوَلَّوْا

که دوی اعراض وکړی. مظهري رحمه الله وايي ای عن الایمان او عن الهجرة بعد الایمان فان الهجرة کانت فریضة یومئذ آه.

**درویش وايي:** چي تفسیر له ایمان څخه خو صحیح دی لکن تفسیر په "تولی" سره بعد الایمان عن الهجرة نه دی صحیح. ولي سلمنا موږ منو چي هجرت فرض و لکن تارک د یوه فرض خو وژل کېږي. البته منکر د فرضیت یې کافر دی او وژل کېږي. او مؤمنان د مکې خو د هجرت له فرضیت څخه نه وه منکر غایة الامر دوی چي هجرت نه کاوه مرتکب د کبیرې ګناه به وه. نو مرتکب د کبیرې ماسوی له زاني بعد الاحصان او یا لواطت علی بعض المذاهب خو نه وژل کېږي. مثلاً څوک چي لمونځ نه کوي یا زکواة نه ورکوي لکن منکر د فرضیت یې نه وي. او یا غیبت کوي او یا دروغ وايي مګر منکر د تحریم یې نه وي.

وعلى هذا فقس المامورات والمنهيات الاخر.

فَخُذُوهُمْ وَاقْتُلُوهُمْ حَيْثُ وَجَدْتُمُوهُمْ

نو تاسي يې نسئ يعني بنديان كوئ يې او وژنئ يې هر چېرې چې مو پيدا كړه لكه نور كافران.

**درويش وايي:** چې دونده تغليظ پر هغو مؤمنانو د مكې چې هجرت يې سره له فرضيته نه و كړى څرنگه امام مظهري روا وبلى.

وَلَا تَتَّخِذُوا مِنْهُمْ وَلِيًّا وَلَا نَصِيرًا ﴿٨٩﴾

**درويش وايي:** چې حكم د نهي د ولايت يې مكرر راوړى لپاره د تاكيد.

**پوه سه:** چې له "ولانصيراً" څخه دا معلومه سوه چې له كافره دې څوك كومك نه غواړي. زهري رحمه الله وايي چې انصارو له عليه الصلوة والسلام څخه اجازه وغوښتل چې ابن أبي چې د احد له جنگ را وگرځېدى مونږ به له خپلو حليفانو څخه د يهودو كومك وغواړو د احد په جنگ كې، نو عليه الصلوة والسلام ورته وويل "الخبيث لاحاجت لنا فيه" يعني يهود خبيث دي مونږ حاجت نه لرو خبيث ته.

**درويش وايي:** چې هغه دوې دلې د منافقينو چې فقير ذكر كړې هغو ارتداد مختاره كړى او مكې مكرمې ته ولاړې حكم ددې آيت "فخذوهم آه" موافق دى لكونهم كفاراً اشد الكفر وهو الارتداد بعد الايمان. او دا حكم پر نورو منافقينو نه سو جاري كه څه هم دوى ددغه حكم د اجراء مستحق وه، لوى علت خو يې دا و چې مونږ دمخه ذكر كړى چې يو خو د اسلام او د عليه الصلوة والسلام څخه د هغو خلكو چې په صورت حال به نه وه خبر نفرت زياتېدى كمامر منا عنقريب، او بل چې د تعصب قومي ببره هم وه كمامر ايضاً. او بله خبره دا وه چې دوى به قسمونه اخستل چې مونږ دا كار يا دا خبره نه ده كړې كما اخبر الله تعالى عنهم في سورة المنافقين "اتخذوا ايمانهم جنة فصدوا عن سبيل الله" دوى، دوى يعني منافقينو گرځولي دي قسمونه خپل سپر. يعني د مسلمانانو ومخ ته، نو دوى

خلګ منع کول له لاري څخه، او هغه خلګ چي په غزواتو کي به د عليه الصلوة والسلام سره نه وه شامل سوي اعذار كاذبه او باطله به يې پېشول او له عليه الصلوة والسلام څخه به يې دا غوښتل چي موږ ته بخښنه وكړه چي په دې باره كي خداى ﷻ په سورة المنافقين كي دا آيت نازل كړى دى "سواء عليهم استغفرت لهم او لا تستغفر لهم ان تستغفرلهم سبيعن قرة فلن يغفر الله لهم"

**فائده**: دا آيت "فخذوهم آه" كه څه هم مورد يې خاص دى لكن حكم يې عام دى، مرتدينو، مجاهرينو او محاربينو كفاروته شامل دى بقرينة مابعدها.

دا و برادرانو تفسير ددغو آيتو د قرآن كريم په اندازه د علم ناقص د درويش، والله اعلم بمراده في كتابه العزيز. كه زه پر خطاء وم وروڼو علماؤ د تنقيد او د بيان د صواب ډډه مه كوئ لكن نه د حسد له لاري بلكې د قرآن عزيز د خدمت لپاره.

**تتمة الكلام**: درويش وايي چي نمونه د تعصب قومي په منځ كي د اوس او د خزرج به تاسي ته بيان كړم چي سعيد بن منصور او ابن ابي حاتم له سعد بن معاذ ﷺ څخه روايت كړى دى قال خطب رسول الله ﷺ من لي بمن يؤذيني ويجمع في بيته من يؤذيني "څوک به زما سره كوم وكړي د هغه چا په باره كي چي ما زهيروي او دوى په كورو كي جمع كوي هغه كسان چي ما زهيروي، چي اشاره د عليه الصلوة والسلام و عبدالله بن ابي رئيس المنافين ته وه، نو سعد بن معاذ ﷺ وويل "ان كان من الاوس" كه دا سړى چي تا زهير وي د اوس له قبيلې وي چي د معاذ ﷺ قوم و "قتلنا موږ به هغه مړ كړو "وان من اخواننا من الخزرج" يعني چي عبدالله بن ابي ددغي قبيلې و "امرتنا فاطعناک" ته موږ امر كړه موږ به ستا اطاعت وكړو "فقام سعد بن عبادة ﷺ" چي د خزرج د قبيلې سړى و "فقال يا ابن معاذ مابک طاعة رسول الله ﷺ" يعني تا وويل كه خزرج قبيلې ته امر راكړې موږ به ستا اطاعت وكړو، تالره نسته قدرت د اطاعت د رسول الله ﷺ د خزرج په قبيله كي "فقام اسيد بن حضير ﷺ" چي هغه د اوس له قبيلې و "فقال انک يا ابن عبادة منافق وتحب المنافقين" چي اشاره يې و ابى سلول ته وه، راوي وايي چي فصار الفريقان فكادوا ان يقتلوا" نو دواړې قبيلې اوس او خزرج سره پورته سوه چي نيژدې وه چي

جنګ دي سره شروع کړي. نو عليه الصلوة والسلام دوی سره ساکت کړه له خبرو څخه. او عليه الصلوة والسلام هم له خطبې ويلو څخه ساکت سو.

**پوښتنه**: دا څه موضوع وه چي عليه الصلوة والسلام په زهير بدی؟

**ځواب**: دا ډېره اوږده قصه ده چي په بخاري، مسلم او په نورو کتابو کي د حديثو هم راغلې ده چي حاصل يې دادی چي په غزاء کي د بني المصطلق چي سيدتنا عائشة رضي الله عنها متهمه سوه په زنا سره د صفوان رضي الله عنه. نو ابن ابي به دې قصې ته ترويج ورکاوه، او دا قصه يې زناء د عائشې رضي الله عنها له صفوان بن المعطل رضي الله عنه سره رښتيا بلل. او د ابن ابي په کور کي به نور منافقان سرا راجمع کېدل او دې قصې ته به يې تشهير او ترويج ورکاوه، او دده لعين غرض بې آبه کېدل وه د رسول الله ﷺ.

## إِلَّا الَّذِينَ يَصِلُونَ

مګر نه هغه کسان مه يې نيسئ او مه يې وژنئ چي دوی ځانونه ورسوي.

پوهسه: چي "الا الذين" استثناء ده ددې قول د خدای ﷻ "فخذوهم واقتلوهم" يعني دغه کسان مه نيسئ په مريتوب او مه يې وژنئ.

## إِلَىٰ قَوْمٍ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ مِيثَاقٌ

بغوي رحمه الله وايي چي دا کسان د بني اسلم قبيله وه. موضوع دا وه چي عليه الصلوة والسلام د هلال بن عامر الاسلمي سره قرارداد کړی و دمخه تر خروج و مکې ته يعني لپاره د فتح د مکې چي نه به ته زما سره کومک کوې نه به د بل چا سره کومک کوې پر مونږ باندي او هغه څوک چي پناه ورورې له قوم څخه دده او يا له نورو اقوامو څخه. نو هغو لره جوار او امان دی مثل ساللهلال. دا خو روايت و د ابن ابي حاتم له مجاهد رحمه الله څخه، او ابن مردوية له حسن بصري رحمه الله څخه داسي روايت کړی دی چي سراقه بن مالک مدلجي خلګو ته وويل چي عليه الصلوة والسلام فتح وکړه د بدر او د احد موضوع هم خلاصه سوه او پر شا وخوا

کفارو هم غالب سو . نو سراقه دا وویل چې ماته دا خبر رارسېدلی دی چې علیه الصلوة والسلام اوس اراده لري چې خالد بن الولید زما قوم ته را واستوي او زما هم دا اراده ده چې زه د علیه الصلوة والسلام او د مسلمانانو سره قرارداد وکړم چې که ستا قوم یعنې قریشو ستا دین قبول کړی او مسلمانان سوه موږ هم اسلام قبلوو او په اسلام کې داخلېږو، او که ستا قوم ایمان نه راوړی، نو موږ به نه بېروې او کار به نه رالري "فاخذ رسول الله ﷺ بید خالد" نو علیه الصلوة والسلام خالد تر لاس ونیوی او ورته وه یې ویل چې ولاړ سه ددوی سره هغه وکړه چې ته یې اراده لرې . نو خالد چې دې قوم ته ورغلی، نو صلح یې پر دې ورسره وکړه چې تاسې به هیڅ چاته د علیه الصلوة والسلام پر ضد کومک نه ورکوئ، او که قریش مسلمانان سوه تاسې به هم اسلام قبلوئ فانزل الله یصلون نو هغه کسان چې پناه به یې بن مدلج ته وروړه، نو د هغه هم داغسې حکم و لکه د بني مدلج او پناه وړونکي ودوی ته ددوی په عهد کې داخل دی.

## اَوْ جَآءُوْكُمْ

او یا هغه قوم چې تاسې ته راسي.

**پوه سه:** چې "اوجاءوکم" عطف دی پر صله د موصول مقدم التقدیر الا الذین وصلوا الی قوم آه او یجیئکم آه.

## حَصِرَتْ صُدُوْرُهُمْ

حال په تقدیر د قد لکونه ماضیا کماهو القانون النحوي في حالیة الماضي، یعنې په داسې حال کې چې تنګ سوي زړونه ددوی ذکر محل چې صدور دي مراد ځنې حال دی چې زړونه دي.

## اَنْ يُّقَاتِلُوْكُمْ

چې ستاسې مسلمانانو سره جنګ وکړي.

**درویش وایي:** چې چونکه حصرت لازمي دی، نو "ان یقاتلوکم" مفعول به دی په تقدیر د عن، او یا "ان یقاتلوکم" علت دی د "حصرت صدروهم" والتقدیر کراهة "ان یقاتلوکم"

أَوْ يُقَاتِلُوا قَوْمَهُمْ

او یا جنګ وکړي د خپل قوم سره. والمعنی تنګوي زړونه ددوی ستاسي له جنګه په سبب د معاهدې چې ستا او ددوی تر منځ سوې ده. او له جنګ څخه د قوم ددوی چې قریش دي یعنې چې ستاسي سره ملګري سي او له قریشو سره جنګ وکړي.

**پوه سه:** چې خدای ﷻ و علیه الصلوٰة والسلام ته داسي حکم ورکړی و چې هغه کسان چې مرتد سوي وه که ددغو معاهدو سره یو ځای سي فلهم حکمهم یعنې له قتال څخه دغه مرتدین هم مخفوظ دي. ولي چې جنګ ددغو مرتدینو چې هغو په معاهدینو کې ځای نیولی دی مستلزم دی جنګ کول د معاهدینو سره وهو لا یجوز.

وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَسَلَّطَهُمْ عَلَيْكُمْ فَلَقَاتَلُوكُمْ

او که د خدای ﷻ اراده وای دغه معاهدین به یې مسلط کړي وای پر تاسي یعنې زړونه به یې ورقوي کړي وای او ستاسي سره به یې جنګ کړی وای.

**پوه سه:** چې په دې آیت کې خدای ﷻ خپل احسان بیان کړی پر مسلمانانو چې د کفارو په زړونو کې یې ستاسي رعب واچاوه چې معاهدې ته مجبور سوه.

فَإِنِ اعْتَزَلُوكُمْ فَلَمْ يُقَاتِلُوكُمْ وَأَلْقَوْا إِلَيْكُمُ السَّلَمَ فَمَا جَعَلَ اللَّهُ لَكُمْ عَلَيْهِمْ سَبِيلًا ﴿٩٠﴾

که دوی ګوښه ګي مختاره کړه له جنګ څخه. نو جنګ نه درسره کوي او تاسي پیش نهاد او خواهش د صلح وکړئ. نو خدای ﷻ نه ده ګرځولې تاسي لره پر دوی باندي لار. یعنې لار د وژلو او نیولو په بند سره یعنې وینې د دوی او اموال ددوی محفوظ دي.

سَتَجِدُونَ آخَرِينَ يُرِيدُونَ أَنْ يَأْمَنُوكُمْ وَيَأْمَنُوا قَوْمَهُمْ

ژر دی چې تاسي به داسي قوم غیر له ماقبل قومو څخه پیدا کړئ چې دوی اراده لري ددې چې ستاسي ځان په امن کې کړي یعنې چې تاسي تعرض نه ورته وکړئ او له قوم څخه هم ځانونه په امن کې وګرځوئ چې هغه هم تعرض نه پر

وکړئ. له ابن عباس ﷺ څخه روایت دی چي دا قوم د اسد قوم و او د غطفان. چي دوی په مدینه منوره کي حاضر وه او په خوله یې ریاءً او حفظاً اشهد ان لا اله الا الله واشهد ان محمداً رسول الله وواېه او په واقع کي مسلمانان نه وه. نو ددوی له قریبانو څخه به چي چا ورته وویل چي په څه سبب دي اسلام راوړی دی؟ دوی به ورته وویل چي په دې اسلام سره مو ځانونه بېغمه کړه له منګوړانو او لړمانو څخه. او له تورو خزدکو څخه ددوی مراد مسلمانان وه. او چي د صحابه کرامو ﷺ سره به ملاقي سو دوی به ورته ویل چي موږ ستاسي پر دین یو. په دې دول دوی له مسلمانانو او د خپل قوم څخه ځانونه ساتلي وه.

كُلَّمَا رُدُّوٓا إِلَى الْفِتْنَةِ أُرْكِسُوا فِيهَا

هر وخت چي به دوی وغوښتل سوه وفتنې ته یعنې د نور قوم له خوا څخه چي هغه قوم ددوی به له مدینې څخه ګوښه اوسېدل.

**پوه سه:** چي مراد له فتنې څخه کفر او جنګ د مسلمانانو سره کول دي. نو دوی به ورو ګرځېدل و هغې فتنې ته په ډېره بده توګه یعنې هغه به یې ومنل.

فَإِنْ لَّمْ يَعْتَزِلُوكُمْ وَيُلْقُوٓا إِلَيْكُمُ السَّلَمَ وَيَكُفُّوٓا أَيْدِيَهُمْ

که دوی ستاسي څخه ځانونه ګوښه ونه ساتي او ستا څخه د صلح د معاهدې خواهش ونه کړي او بند نه کړي خپل لاسونه له شر رسولو څخه وتاسي ته.

**پوه سه:** چي "یلقوا" عطف دی پر مدخول د "لم" چي "یعتزلوکم" وکذا قوله "ویکفوا ایدیهم" یعنې چي ستاسي د جنګ بېزاره نه سي او ستاسي فرمانبرداره نه سي په طلب کي د صلح او معاهدې او خپل لاسونه راټول نه کړي ستاسي له شر رسولو څخه.

فَخُذُوهُمْ وَاقْتُلُوهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوهُمْ ۚ وَأُولَٰئِكُمْ جَعَلْنَا لَكُمْ عَلَيْهِمْ سُلْطَانًا مُّبِينًا ﴿٩١﴾

نو تاسي دوی نیسئ یعنې بندیان کوئ یې او وژنئ یې هر چېري چي مو قدرت پر پیدا کړی او په لاس درغله. او دغه کسان چي موصوف په دغو بدو صفاتو سره وه، موږ ګرځولې دی تاسو لره پر دوی باندې حجت ظاهراً واذناً

بالقتل والقتال ولي چي ددوى حال په كفر، غدر او په عداوت كي ښكاره سو حتى چي پر تاسي يې د لړمانو، منګوړانو او تورو خزدکو نومان هم کښېښول.
شان نزول الآية الآتية: بغوي رحمه الله وايي چي عياش بن ربيعة المخزومي دمخه تر هجرت د نبي ﷺ و عليه الصلوة والسلام ته ورغلی او ايمان يې راوړی. او بيا وېرېدی چي كه زما اسلام زما وقريبانو ته ښكاره سي ماته به يو مصيبت جوړ سي، نو مدينې منورې ته وتښتېدی، نو په محكمه قلعه كي د اطرافو د مدينې يې ځای ونيوی، نو د عياش مور چي دده په اسلام او و مدينې ته په تېښته خبره سوه ډېره بې صبري او ژړا يې پر لاړ واچول. نو دې خپلو دوو زامنو ابوجهل او حارث ته چي دواړه د هشام زامن وه او د عياش مورني ورونه وه داسي يې وويل چي والله كه د بام وسايې ته كښېنم او زه به ځكه د دوډۍ ونه كړم او نه به اوبه وڅښم تر څو زما زوى عياش ماته رانه ولي. نو ابوجهل او ورور يې حارث په عياش پسي رهي سوه د مدينې پر خوا او حارث بن زيد بن ابي انيسه هم ورسره ملګری سو، نو مدينې ته ورغله او د عياش معلومات چي يې وكړې خلګو هغه قلعه ورښوول چي عياش پكښې اوسېدی، نو ابو جهل او حارث چي د عياش مورني ورونه وه و عياش ته يې وويل چي ته راكښته سه او د مور پوره حال يې ورته بيان كړی او دوى قسم ورته واخستی چي مور تا نه مجبوره كوو پر هيڅ شي، او نه ستا او ستا د دين تر منځ مانع ګرځو، نو عياش يو خو د مور د جزع او فزعي په خاطر او ددوى د قسمو په سبب ورته راكښته سو، نو له مدينې څخه چي يې را ليرې كړی نو يې د عياش پښې او لاسونه د اوښ په مړاندي ټينګ ورو تړل او هر يوه سل سل غمچنې وواهه، نو اخير يې مكې ته وروستی او مور ته يې تسليم كړی، نو مور يې ورته وويل چي لاسونه دي تر هغو والله كه در خلاص كړم تر څو چي ته كافر نه سې بما امنت به يعني رسول الله ﷺ، نو يې داغسي و لمر ته وغورځوی چي د مكې د دوبي وخت و. عياش خو يو ګړی صبر وكړی لكن د ډېر تكليف له كبله يې كفر ودوى ته ښكاره كړی وقلبه مطمئن بالايمان، نو ابوجهل او حارث او مور يې لاسونه ورخلاص كړه، نو حارث بن

زيد چې د ابوجهل او حارث ابني هشام دريم ملګرى و، عياش ته يې د پېغور په لهجه داسې وويل چې اې عياشه دغه دين چې تا پرېښوولى كه چېرې هدايت و نو تا خو هدايت پرېښو كافر سوې، او كه چېرې دا دين ضلالت و، نو تا ډېره زمانه پر ضلالت تېره كړه، عياش ددې بې حياء له پېغور څخه ډېر متاثر سو، نو عياش ورته وويل چې زما قسم په خداى ﷻ دى كه ما ته يو وخت يوازې وليدلې زه به دې قتل كوم، وروسته عياش بيرته خپل اسلام ښكاره كړى او مدينې ته ولاړى، بيا وروسته حارث بن زيد هم ايمان راوړى او مدينې ته ولاړى او عليه الصلوة والسلام دغه وخت په مدينه كې و، او عياش د حارث بن زيد په اسلام راوړلو كې حاضر نه و او نه يې په اسلام راوړلو خبر و، نو ناببره عياش په قباء كې پر حارث پېښ سو دستي يې قتل كړى، خلګو ورته وويل افسوس دى تا لره دا دې څه وكړه حارث بن زيد خو اسلام راوړى و، نو عياش ورغلى و عليه الصلوة والسلام ته يې ټوله قصه خپل او د حارث بن زيد د نقل وكړه او دا يې ورته وويل چې هيڅ د حارث بن زيد په اسلام نه وم خبر، فنزلت هذه الآية.

## وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ أَنْ يَقْتُلَ مُؤْمِنًا إِلَّا خَطَأً

نه ښايي او نه ده روا مؤمن لره چې وژني بل مؤمن مګر نه په خطاء سره، ولې چې ايمان دده مانع دى له قتل څخه د مؤمن، او بعض مفسرين وايي چې نسته مؤمن لره من حيث انه مؤمن يعنې نه دمخه او نه وروسته او نه موجود ېږي پر لاسونو دده چې مسلمان دې قتل كړي بغير حق (مثل القصاص) ولې چې د مؤمن ناحقه قتل د لويو محظوراتو او ممنوعاتو څخه د دين او د اسلام دى فهو اخبار لفظا من عدم قتل المؤمن من المؤمنين بغير حق او مقصود مبالغه ده في الحرمة، نو ګويا ايمان د قاتل المؤمن بغير حق متعمداً په سبب د كمال نقصان د ايمان يې منزلة العدم دى او دې تفسير ته اشاره په هغه حديث كې ده چې بخاري يې روايت كړى دى من قوله عليه الصلوة والسلام په علاماتو كې د مؤمن "ولا يقتل حين يقتل وهو مؤمن" انتهى الحديث باختصار، او بعض وايي چې دا نفي په معنا د نهي ده يعنې لا يقتل المؤمن بغير حق متعمداً، لكه په دې

ایت کي "ماکان لکم ان تؤذوا رسول الله ولا ان تنکحوا ازواجه من بعده ابداً".

**بوه سه**: چي "الا خطاءً" دا استثناء د اعم الاحوال او خطاءً منصوب علی الحالیة ای کائناً علی حال من الاحوال الا علی حال الخطاء. او یا منصوب دی علی کونه مفعول مطلق ای قتلاً الا قتلاً خطاءً.

**فائده**: قتل څو قسمه دی. یو قسم عمد قتل دی چي یو سړی مسلمان قصداً په داسي آله مړ کړي چي هغه د وژلو لپاره وضع سوی وي. لکه په پخوانی زمانه کي توره او غشي. او په اوسنی زمانه کي کلا شنکوف، توفک، تویـنچه، بم وغیر ذالک من الآلات الموضوعة للتقل وحکمه القصاص الا ان یصلحوا ورثة المقتول من القصاص علی المال فیجب الدیة في مال القاتل.

**مسئله**: که یوه له اقرباؤ څخه د مقتول وقاتل ته عفوه وکړه، دا نور یي نه سي قصاصولای بلکي دیت به غواړي. امام اعظم رحمه الله په قتل عمد کي کفاره پر قاتل نه غواړي. او شافعي رحمه الله کفاره هم پر لازمه بولي. دلائل یې په کتابو کي د فقه وګورئ دده د دلائلو راوړل د درویش عادت نه دی لکه د مظهري. او بل قسم شبیه بالعمد دی. فمن ضرب شخصاً سوطاً او سوطین عمداً. نو هغه سړی مړ سو، نو دا شبیه بالعمد دی بالاتفاق. یا یو سړي بل سړی قصداً په سوک وواهه پر غوږ باندي او هغه مړ سو فهو ایضاً شبیه بالعمد اتفاقاً. او که یوه سړي بل سړی ووهی په کوچنی غمچینه دبړ وارونه او هغه مړ سي دا هم شبیه بالعمد دی عند الامام الاعظم وصاحبیه وعمد عند الشافعي. او که یوه سړي بل ووهی په دبړه غټه دبره او یا په لوی لرګي چي غالباً د دوارو له وهلو څخه سړی ژوندی نه سي پاته کیدای. نو د نورو امامانو په نېز دا قتل عمد دی موجب یې قصاص دی. او امام اعظم رحمه الله وایي چي دا شبه عمد دی قصاص نسته پکښي. دا شبه العمد اول د اقسامو د قتل خطاء دی. او دوهم قسم د قتل خطاء دادی چي یا خطاء په قصد کي د قاتل وي وهو ان یرمی شیئا وهو یظنه صیداً لیقتله واذا هو ادمي. او دریم قسم خطاء ده په فعل کي نه په قصد کي لکه یو سړی چي په قصد د نوښان ولي هغه پر یو مسلمان ومبتلي او مړ یې کړي او یا د رامي په

خيال هغه سړی حربي وي نو دی چې واری پر وکړي او مړ يې کړي وروسته ورته معلومه سي چې هغه مسلمان و. او څلورم قسم يې ما اجرى مجرى الخطاء لکه يو بيده سړی پر بل ورواوړي او مړ يې کړي چې دا قتل په ښځو کي ډېر پيښېږي چې کوچني ته تی ورکوي اخير بيده سي پر کوچني ور واوړي او مړ يې کړي. او پنځم قسم د خطاء دادی چې يو سړی د بل سبب د قتل وګرځي يعنې سبب د قتل د قاتل د خوا وي نه فعل د قتل. لکه يو سړی چې څاه (کوهی) وکني يا لويه ډبره کښېږدي په خپل ملک کي بل سړی هغه څاه ته ولوېږي او يکښي مړ سي يا بل سړی پر هغه ډبره غوځار سي او مړ سي.

**پوه سه:** چې حکم ددې ټولو اقسامو د خطاء. ديت پر عاقله يعنې نژدې قوم د قاتل اتفاقاً ولي مسلمان خو قتل سو او قصاص يې نسته، نو اقلاً ديت خو بايد وي تاچي د مسلمانان وينه هدر اورايګان ولاړ نه سي، او بل حکم د ټولو دغو اقسامو وجوب د کفارې دی پر قاتل چې بيان به يې راسي ان شاء الله او له ميراث څخه محروم دی په ټولو اقسامو په نېز د ائمه ثلثه وو لکن امام اعظم رحمه الله وايي چې په قتل بالتسبيب کي حرمان د قاتل له ميراث څخه د مقتول نسته، ولي قتل بالتسبيب خو حقيقةً قتل د جاني له خوا نه دی ولي چې قتل خو تصرف دی په بدن کي د مقتول هغه خو دلته نسته بلکې تصرف خو هغه په بل شي کي کړی مثلاً چې څاه يې کنبلي دی.

وَمَنْ قَتَلَ مُؤْمِنًا خَطَـًٔا فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ

او که چا مړ کړی مؤمن په خطاء سره، ازاد کول دي ديوې رقبې د مريي.

**پوه سه:** چې کلمه د "من" مبتداء ده متضمن معنی لره د شرط ده او خبر يې دا قول دی "فتحرير رقبة.

**پوه سه:** چې د "تحرير رقبة" سره مبتداء محذوفه سته ای فجزائه تحرير رقبة لان جزاء الشرط انما يکون جملة فافهم.

فائده: مظهري رحمه الله وايي چې له دې آيته دا فهمېږي چې کفاره هم باندې سته لان الکفارة لدفع الاثم انتهى، او روح البيان وايي چې دا تحرير کفاره ده وهي

حق الله تعالى انتهى والله واعلم بالصواب.

**مسئله**: في رواية عن ابي حنيفة رحمه الله لايجب الكفارة في الشبيه بالعمد په كفايه كي چي شرح د هدايه ده وايي چي جرجاني وايي وجدت رواية عن اصحابنا ان الكفارة لايجب في شبه العمد آه.

**فائده**: په لغت عربي كي كه څه هم رقبه غاړې ته وايي لكن مراد ځني ټوله جسد دى من قبيل ذكر الجزء ارادة الكل.

**پوه سه**: چي مراد له "رقبة" څخه رقبه كامله ده، نو د ام الولد اعتاق په كفاره كي نه دى روا، ولي چي ام الولد خو مستحق د عتق ده حتى لايجوز بيعها. قال عليه الصلوة والسلام في حق ام الولد اعتقها ولدها. او داغه رنګه نه دى روا اعتاق د مدبر مريي يعني بادار ورته وايي چي زما تر مرګ وروسته ته ازاد يې وهذا مذهب ابي حنيفة رحمه الله ويجوز عند الشافعي. او روا دى عتق د مكاتب مريي چي هيڅ چي هيڅ شى يې بدل كتابت نه وي وركړى په نيز د ابو حنيفه رحمه الله او نه دى روا په نيز د شافعي رحمه الله.

**مسئله**: د لېوني مريي عتق نه دى روا. داغه رنګه په دواړو سترګو د ړانده او يا ګونګي او يا كوڼ چي هيڅ شى نه اوري. ولي چي په دوى كي يو جنس د منفعت د يوه عضو نشته، نو داسي مريى كالهالك (لكه مړ) دى. او داغه رنګه نه دى روا چي دواړه لاسونه يې پرې وي يا يې دواړې پښې پرې وي لما ذكرنا انه فائت جنس المنفعة يعني منفعة البطش في مقطوع اليدين ومنفعة المشي في مقطوع الرجلين. او داغه رنګه نه دى روا چي يو لاس او يوه پښه يې له يوه طرفه څخه پرې وي. ولي چي داسي سړى تګ نه سي كولاى ولو على العصا. او كه يې جهت د پرې لاس او د پرې پښې سره جلا وهغه روا دى ولي چي هغه پر لكړه تلاى سي. او د اعور يعني چي په يوه سترګه ړوند وي او د اعمش چي تر سترګو يې اوبه بهېږي چي په پښتو يې څچنک بولي او د پيس عتق روا دى ولي چي دا كسان ناقص المنفعة دي. او اعتاق د عنين مريي او يا خصي مريي روا دى. ولي چي له مريي څخه خدمت دى هغه په دوى كي سته نسل خو مقصود نه دى.

**مسئله**: د كفارې د وجوب پر قاتل باندې شرط دادى چې قاتل به عاقل وي لېونى به نه وي بالغ به وي پر صبي كفاره نشته او مسلمان به وي پر كافر قاتل كفاره نشته. ولې چې كفاره خو عبادت ده فيشترط لوجوبها مايشترط لوجوب سائر العبادات. او شافعي رحمه الله وايي چې هيڅ شی شرط نه دی د كفارې د وجوب لپاره.

## مُؤْمِنَةٍ وَدِيَةٌ

رقبه به مؤمنه وي او بل ديت پر لازم دى.

**پوه سه**: چې په كفارة القتل كې ايمان شرط دى بالاجماع لورود النص بالايمان او په كفارة اليمين يا صوم يا ظهار كې ايمان شرط نه دى. نو په رقبه مؤمنه كې صغير او كبير. نر او ښځه يعنې مينځه گرده برابر دي. "ودية" عطف دى پر تحرير رقبة باندې يعنې وجزائه دية. في القاموس الدية حق القتل الى المقتول يعني اصالة لكن اولياء. د مقتول قائم مقام د قتيل دي.

**مسئله**: ديت د قتل خطاء پر عاقله د قاتل دى يعنې هغه نيږدې قومي قريبان د قاتل.

**فائده**: وجوب د ديت پر عاقله باندې كه څه هم له قرآن مبارك څخه نه فهمېږي لكن په حديث مشهور سره او په اجماع سره ثابت دى.

## مُسَلَّمَةٌ إِلَىٰ أَهْلِهِ

تسليم كوي به يې و اهل ته د مقتول يعنې ورثته.

**مسئله**: د ديت حكم د ميت د تركې حكم دى من حيث التقسيم والحرمان والحجب كما في السراجي ص٢ ويتعلق بتركة الميت حقوق اربعة آه. نو دغه حقوق په ديت كې د مقتول هم جاري دى. والتفضيل يفضى الى التطويل وهو لايناسب هذا التفسير.

## إِلَّا أَن يَصَّدَّقُوا

مگر تسليم نه دى واجب كه ورثه د مقتول ديت وبخښي. او يا يې مقتول وروسته تر تيې كېدو دمخه تر مرگ وبخښي.

**پوه سه**: چې خداى جل جلاله له دې عفوې څخه تعبير په تصدق وكړى لپاره د باعثه كولو د اولياؤ د مقتول پر بخښنه باندې او تنبيه يې پر دې وكړه چې عفو د ثواب كار دى.

ولي چي قاتل خو په خطاء قتل وکړی نو لکه دی چي نه و مجرم اولیاء دده باید تر جرم د دیت لاندي را نه وستل سي، قال رسول الله ﷺ كل معروف صدقة رواه البخاري.

فَإِنْ كَانَ مِنْ قَوْمٍ عَدُوٍّ لَّكُمْ

او که چېري و مقتول له داسي قوم څخه چي هغه دښمنان وه یعني کافران وه یعني د قومیت په لحاظ د کافرانو له قومه څخه و.

**پوه سه**: چي د "عدو" اطلاق پر واحد او پر جمع دواړو کېږي، نو ځکه "عدو" دلته د قوم صفت واقع سو چي اسم جمع دی.

وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ

او حال دا و چي مقتول مسلمان و نو جزاء یې ازادول د مؤمنه رقبې ده، یعنې فقط دیت یې نسته.

**پوه سه**: چي مفسرین وایي چي معنا ددې آیت داده چي یو سړی مسلمان وي هجرت یې و دار الاسلام ته نه وي کړی وروسته تر اسلام. او یا یې یو وار هجرت کړی وي لکن بیر ته دار حرب ته تللی وي پر اسلامي حال، نو یو مسلمان هغه سړی مړ کړي په خطاء سره، نو کفاره یعنې تحریر رقبة مؤمنة خو یې سته، ولي چي دده وینه معصومه ده په سبب د اسلام ولا یجب الدیة، ولي هغه عصمت چي سړي ته دیت لازمه وي هغه په دار اسلام سره دی او دی یعنې دغه مقتول خو هغه عصمت نه لري، په حدیث شریف کي چي روایت یې ابن المنذر له جریر بن عبد الله بجلي څخه کړی دی چي رسول الله ﷺ وویل "من اقام مع المشرکین فقد برئت منه الذمة"

وَإِنْ كَانَ مِنْ قَوْمٍ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ مِّيثَاقٌ

او که چېري و مقتول له داسي قوم څخه یعنې د کفارو له قوم څخه چي ستاسي مسلمانانو او ددوی تر منځ عهد و یعنې اهل ذمه وه.

فَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ إِلَىٰ أَهْلِهِ

یعنې جزاء د هغه دیت دی او واجب پر عاقله د قاتل دی چي تسلیم کېږي به و اهل ته د مقتول یعنې ورثه د هغه.

**پوه سه**: چې تصویر او صورت ددې مسئلې دادی چې مقتول یا کافر اهل ذمه وي او یا کافر معاهد وي.

**پوه سه**: چې دیت د مسلمان او د کافر سره برابر دی په نېز د امام اعظم رحمه الله وفي المدارك في هذه الآية دليل على ان دية الذمي كدية المسلم انتهى.

**پوه سه**: چې "دية" مصدر دی من ودى القاتل المقتول اى اعطى وليه المال الذي هو بدل النفس وذالك المال يسمى الدية تسمية بالمصدر والتاء في اخرها بدل من الواو المحذوفة في الاول كما في عدة.

**فائده**: دیت په خطاء کې د سرو زرو زر دیناره دي او د سپينو زرو عشرت الاف درهم، او دیت پر عاقله د قاتل دی په قتل خطاء کې.

## وَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ

یعنې له مال څخه د قاتل که قاتل د رقبه مؤمنه مالک و او یا یې دونده روپۍ درلودې چې رقبه مؤمنه په رانسي، او هغه روپۍ به د قاتل تر حوائجو اصليه وو او له پور څخه بالا وي.

## فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ

که قاتل رقبه نه درلوده او نه قادر پر تحصیل د رقبه و، نو واجب ده پر قاتل په د غو تولو صورتو کې، به روژې نسي دوې میاشتې پرله پسې.

**مسئله**: که دغه سړي یوه ورځ روژه وخوړل په دغو دوو میاشتو کې بېله عذر شرعي او یا یې نیت هېر سو یا د بلې روژې قضایي یا نفلي واجب ده پر ده له سره څخه نیول د روژو اجماعاً لاشتراط التتابع نصاً، او که چېري ښځه قاتله وه او دغه روژې یې نیولې بیا یې د حیض په ورځو کې وخوړلې د سره راګرځول د روژو پر دې نسته اجماعاً لانه عذر شرعي، او که دغه سړي یوه روژه وخوړل په عذر د مرض یا د سفر نو پر ده باندې استيناف واجب دی په نېز د جمهورو علماؤ

**پوه سه**: چې مجاهد رحمه الله وايي که دا روژې نیونکی له روژو څخه عاجزه سو دوې ورکول یې په ځای کې د روژو نه دربړي په نېز د امام اعظم رحمه الله او د امام

مالک رحمه الله، او په صحیح قول کې د امام شافعي او امام احمد وایي چې اطعام هم کفایت کوي دوی يې پر ظهار قیاسوي. لکن دا قیاس دی په مورد کې د نص قرآني او امر جامع مقیس او مقیس علیه نه سره لري.

**تَوْبَةً مِّنَ اللّٰهِ ۗ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيمًا حَكِيمًا**

**پوه سه:** چې "توبة" منصوب ده علی انه مفعول لـه ای شرع الله الصیام علی القاتل لاجل توبة منه تعالی علیه. او یا مفعول مطلق دی د فعل محذوف ای تاب الله علیکم بتلک الصیام توبة. او خدای ﷻ خبر دی په حال د قاتل او حکمت لري په هر کار کې چې کوي يې.

**درویش وایي:** چې بغوي رحمه الله دا وروسته شان نزول داسې راوړی دی چې مقیس بن ضبابه کندي او دده وررور هشام اسلام راوړی څو ورځې وروسته د مقیس وررور هشام مړ یعنې وژل سوی پیدا سو په بني النجار کې. نو مقیس و علیه الصلوة والسلام ته راغلی او دده د خپل وررور هشام د قتل په بني النجار کې ورته بیان کړه، نو علیه الصلوة والسلام د مقیس سره یو بل سړی چې د بني النجار د قبیلې و ور سره ملګری کړی چې رسول الله ﷺ تاسې امر کوي که تاسې ته قاتل د هشام معلوم دی، نو د مقیس په لاس يې ورکړئ چې دی يې قصاص کړي او که قاتل تاسې ته نه وي معلوم. نو مقیس ته يې دیت ورکړئ، نو مقیس او ملګری فهري چې بني نجار ته ورغلی او پیغام او امر د علیه الصلوة والسلام يې ودوی ته ورساوه هغو ورته وویل سمعاً وطاعةً لله ولرسوله. قاتل د هشام خو نه دی راته معلوم لکن موږ به دیت ورکوو، نو سل اوښان يې مقیس ته ورکړه، نو مقیس او فهري چې د مدینې منورې و خوا ته را روان سوه مقیس ته شیطان وسوسه ورواچول چې تاچې د وررور دیت قبول کړی دا خو ستا لپاره لوی پېغور دی او خلګ به بېکنځل هم درته کوي. راسه دا فهري مړ کړه نو دا به نفس بنفس سي او دیت به بېجت درته پاته سي، نو د فهري فکر نه و چې مقیس ناګاه په یوه لویه ډبره پر سر وویشتی او مړ يې کړی. او مقیس خپل اوښان د مکې پر خوا روان کړه او مکې ته ورغلی بیرته کافر سو. نو خدای ﷻ دا آیت نازل کړی.

## وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا

چي يو څوک مړ کړي مؤمن په حيثيت د ايمان په قصد سره نه په خطاء، يعني بل عداوت نه ورسره لري لکه مقيس چي د فهري سره يې هيڅ عداوت نه درلودی بلکې په دې حيثيت يې مړ کړی چي د مقيس په زړه کي د کفر خوا تينګه سوې وه او فهري مسلمان و نو په دغه سبب مړ کړی، او يا معنا داده چي قاتل لکه د مقيس وژل د مقتول چي فهري و ځان ته يې روا بولي.

**پوښتنه:** له دې قصې څخه خو دا معلومه سوه چي وژل په درانه شي لکه مقيس چي په درنه ډبره فهري ووشتی او مړ يې کړی خدای ﷻ په دې آيت کي دا قتل متعمداً وباله. او سره ددې چي امام اعظم رحمه الله دا قتل شبه عمد بولي. نو حنفيان به څه ځواب ورکوي.

**ځواب:** د شبه عمد حکم د عمد په حيث د ګناه له دې کبله احناف وايي چي شبه عمد لره کفاره نسته لکه عمد لره. او موږ چي شبه عمد له عمد څخه جلا بولو د قصاص له جهته يعنې په عمد کي حکم قصاص دی او په شبه عمد کي چي قصاص نسته د آلة القتل د شبهې له وجهې، او په دې آيت کي خو بيان د ګناه دی نه د قصاص حيث قال الله تعالى فجزائه جهنم نو ځکه امام اعظم رحمه الله په شبه عمد کي دنياوي حکم ديت بولي او اخروي حکم يې د عمد سره برابر دی.

**فائده:** مقيس مذکور هغه کافر دی چي د فتح مکې په کال عليه الصلوة والسلام دده حکم له نورو کفارو سره جلا کړی يعنې چي مقيس ته هيڅ امان نسته هر چېري چي وي ودي وژل سي، نو مقيس په دغه ورځ د کعبې مبارکي پردې تينګي نيولي وې چي مسلمانانو مړ کړی.

## فَجَزَآؤُهُ جَهَنَّمُ خَالِدًا فِيهَا

لاجل کفره اللازم لسخطه من الايمان کمافهم من قصة او يا له دې سببه چي قاتل يې قتل و ځان ته روا بولي، نو خو هم قاتل کافر دی لان مستحل الکبيرة کافر کما في کتب العقائد.

**سوال:** څیني وختونه یو مسلمان بل مسلمان مړ کړي د فرط غضب له سببه او یا یو بل سبب وي لکن قتل یې و ځان ته روا نه بولي، نو هغه به څرنګه همېشه وي؟

**ځواب:** د خلود معنا دوام نه ده بلکې مکث طویل دام او لم یدل فیشمل جمیع صور القتل العمد ای الکافر والمستحل والمؤمن.

**فائده:** بخاري او مسلم له ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چې قاتل لره د مؤمن عمداً توبه نشته. او بغوي رحمه الله هم ورته روایت له ابن عباس رضي الله عنه څخه کړی دی لکن په نورو تفاسیرو کي خلاف ددغه روایت له ابن عباس رضي الله عنه څخه منقول دی حیث قال ابن عباس رضي الله عنه "فجزائه جهنم خالداً فیها لوجازاه الله" یعني که خدای جل جلاله پوره جزاء ورکوي "لکنه یتفضل علیه" لکن خدای جل جلاله دده سره احسان کوي "ولایخلد لایمانه" او خدای جل جلاله یې همېشه په اور کي نه پرېږدي په سبب د ایمان دده انتهی.

**درویش وایي:** چي عین ممکنه ده چي ابن عباس رضي الله عنه دي له هغه مذهبه څخه چي بخاري او مسلم دده نقل کړی و کمامر رجوع کړې وي لما تواتر في الاحادیث الشریفة "ان المؤمن لایخلد في النار بکبیرة آیة کفیرة کانت مالم یکن مستحلاً لها ولا مستخفابها" والله اعلم.

**درویش وایي:** چي علماء قدیماً وحدیثاً په دې مسئله کي د قاتل عمداً د بل مؤمن اختلاف لري چي توبه یې شته او که نشته لکن وجه د جمعې ددغو اقوالو شته هغه دا چي په قتل عمد کي د مؤمن دوه حقه شته یو حق العبد دی چي قصاص دی هغه د قاتل نه دفعه کېږي، نو هغه علماء چي وایي چي توبه یې نشته معنا یې داده لاتوبة له في حق العبد وهو القصاص یقتص منه لامحالة. او بل حق الله دی چي د احترام د نهي د خدای جل جلاله ونه کړي او مؤمن یې عمداً قتل کړي نو که دی صحیح توبه وکاږي خدای جل جلاله تر خپل حق په آخرت کي تر دوزخ ورتېرېږي کما في سائر الکبائر لانه تعالی غفور رحیم ووصف نفسه بقوله وانا التواب الرحیم.

**درویش وایي:** چي وهذا وجه وجیه للجمع ینبغي ان یکتب بمداد الذهب علی قراطیس الاذهان.

**فائده:** معتزله په دغه آيت سره دليل وايي چي مرتکب د کبيرې گناه مخلد في النار دی ويقولون لافرق بين کبيرة قتل المؤمن عمداً وبين سائر الکبائر. او خوارج هم په دغه آيت سره دليل وايي چي مرتکب د کبيرې کافر دی. دوی وايي چي خلود في النار بيله کافره بل چاته نسته وقد حکم الله تعالى في هذه الآية بخلود کبيرة قتل المؤمن عمداً فعلم ان هذا القاتل کافر وعليه يقاس سائر الکبائر واما اهل السنة والجماعة دوی تاويل کوي ددغه آيت کمامر قريباً. اهل سنت وايي چي اجماع د عصر اول پر دې منعقد ده چي مؤمن لايخلد في النار وان مات بلا توبة وان المؤمن لايسلب عنه اسم المؤمن بالکبيرة کما يقوله الخوارج.

وَغَضِبَ اللَّهُ عَلَيْهِ وَلَعَنَهُ وَأَعَدَّ لَهُ عَذَابًا عَظِيمًا ﴿٩٣﴾

د خدای ﷻ غضب دی پر ده او له رحمت عامه څخه د خدای ﷻ ترټلی دی. او اراسته کړی دی خدای ﷻ ده لره عذاب دردناک چي عذاب د دوږخ دی. معتزله او خوارجو چي دا دومره سخت آيتونه د قرآن عظيم الشان واورېدل چي په شان کي د قاتل د مؤمن عمداً نازل سوي دي، نو معتزله وايي که مسلمان هم وي لکن ځای يې ابدي دوږخ دی او نور مرتکب د کبيرې گناه يې پر قياس کړي دي او خوارجو کافر بللی دی او نور يې هم پر قياس کړي دي.

**پوښتنه:** تاسي وړاندي قول د معتزله او د خوارجو قولونه په اجماع د عصر اول رد کړه، او په اصول الفقه کي وايي چي اجماع لره سند ضروري دی يا اشارة النص د قرآن او يا دلالة النص د قرآن او يا حديث نبوي. نو دغې اجماع لره کوم سند سته او که څرنگه؟

**ځواب:** هوا سند يې د قرآن مبارک په دلالة النص کي ددې آيت موجود دی "ياايها الذين آمنوا کتب عليکم القصاص في القتلى آه" دا خو معلومه خبره ده چي قصاص په قتل عمد کي د مؤمن لازم دی او سره د هغه خدای ﷻ قاتلان په عنوان د "الذين آمنوا" رواړه په دې سره خو مذهب د خوارجو رد سو چي دوی مرتکب د کبيرې کافر بولي. او بل په قرآن کريم کي راغلي دي "ومن يعمل

مثقال ذرة خيراً يره" يعنې يرى ثوابه نو ايمان خو عمل قلبي دى چې تصديق د زړه دى په نېز د محققينو او يا عمل قلبي او لساني دى چې اشهد ان لا اله آه په خوله ويل على ماهو المشهور من وان الايمان مركب من التصديق بالجنان والاقرار باللسان او دا خبره مسلمه ده زموږ او د معتزله و ترمنځ چې داسي نه سي كېداى چې خداى ﷻ دي ثواب د عمل خير په جنت كي چاته وركړي وروسته تر دې بې بيا دوږخ ته واستوي. نو ثواب د ايمان چې وركوي وروسته تر عذاب بالنار به يې وركوي. نو معلومه سوه چې مرتكب د كبائرو گنهو كه څه هم بې توبې مړ سي مخلد في النار نه دى. او په دې سره مذهب د معتزله وو رد سو چې مرتكب د كبيرې مخلد في النار بولي او په حديث كي د بخاري او مسلم راغلي دي من قال لا اله الا الله دخل الجنة وان زنى وان سرق وزنى آه په دې حديث سره مذهب د معتزله او خوارجو دواړو رد سو. او په حديث كي د مسلم چي له جابر ﷺ څخه يې روايت كړى دى "من مات ولا يشرك بالله دخل الجنة" په دې حديث سره هم دواړه مذهبونه رد سوه كما لا يخفى.

او په بل حديث كي د عليه الصلوة والسلام چې روايت يې عبادة بن الصامت ﷺ كړى دى او بخاري او مسلم هم راوړى دى چې عليه الصلوة والسلام يوه ورځ وويل "بايعوني على ان لا تشركوا بالله" زما سره بيعت وكړئ چې تاسي په شريك نه گرځوئ له خداى ﷻ سره هيڅ شى "ولا تسرقوا" او تاسي به غلا نه كوئ "ولا تزنوا" او تاسي به زنا، هم نه كوئ "ولا تقتلوا اولادكم" او تاسي به نه وژنئ خپل اولاد لكه د اهل جاهليت چي عادت و "ولا تاتوا ببهتان تفترونه بين ايديكم وارجلكم" او تاسي پر چا ناحقه عيب نه واياست چې دغه عيب تاسي په منځ د لاسو ستاسي او په منځ د پښو ستاسي دا كنايه ده له دې څخه چې ستاسي خود ساخته عيب وي چې هيڅ اثر هم نه لري "ولا تعصوا في معروف" او تاسي به عصيان نه كوئ په يو شي سره چې معروف په شرع شريفه كي وي "فمن وفى منكم فاجره على الله" كه وفا وكړه په دغو شرطو، نو ثواب يې پر خداى ﷻ دى "ومن اصاب من ذالك شيئا نعوقب في الدنيا فهو كفارة له" كه له دغو مذكوره

گنهو څخه یو کار وکړي او په هغه گناه ده ته عذاب ورکړه سو په دنیا کي مثلاً سرقه یې وکړه لاس یې پرې سو. نو هغه عقاب الدنیا ده لپاره کفاره ده په دنیا کي یعنې په آخرت کي مواخذه یې نسته باندي ومن اصاب من شيئاً ثم ستره الله فهو الى الله ان شاء عفا عنه وان شاء عاقبه فبايعناه على ذالک، او که سړی له دغو گنهو څخه یو کار وکړي او خدای ﷻ پر ده پر واچول یعنې خلگ یې په خبر نه کړه. نو عقاب د دنیا پر جاري نه سو. نو ددې گناه تفویض و خدای ﷻ ته دی که د خدای ﷻ خوښه وه عفوه به ورته وکړي یعنې جنت ته به یې داخل کړي او د دوږخ له عذاب څخه به یې وساتي او که د خدای ﷻ خوښه وه عذاب به ورکړي. نو موږ بیعت ورسره وکړي پر دغه شیانو آه.

**درویش وایي**: چي دا حدیث صریح په رد کي د معتزله وو چي دوی چي مرتکب د کبیرې گناه که بې توبې مړ سي ابدي ځای یې دوږخ دی، او په حدیث کي احتمال د عفو هم موجود دی او دغه رد د مذهب د خوارجو هم په وسو. ولي که مرتکب د کبیره گناه کافر وای، نو احتمال د عفوي الٰهي به څرنگه پکښي موجود وای؟

**درویش وایي**: چي اشارات د کتاب الله او دغه احادیث مذکوره ټوله اسناد دي د اجماع مذکورې لپاره فانقطع عرق السوال المذكور والله الموفق للخير والملهم للصواب.

## فصل

**درویش وایي**: چي سره د احتمال د عفوي قتل د مؤمن عمداً بغیر حق شک نسته چي ډېره لویه گناه ده. في الحديث لزوال الدنيا اهون على الله من قتل مسلم بشطر كلمة جاء يوم القيامة مكتوب بين عينيه آيس من رحمة الله تعالى.

**درویش وایي**: چي د معاون یې دا حال دی نو د خودي قاتل به څه حال وي!؟ وفي الحديث اول مايحاسب عليه العبد يعني في حقوق الله هو الصلوة و اول ما يقضى بين الناس في الدماء. ثم يحاسب العبد في حق الزكوة وغيرها هل منعها او اداها انتهى. وفي الحديث خمس من الكبائر لا كفارة فيهن (۱) الاشراك بالله (۲) وعقوق الوالدين (۳) والضرار من الزحف (۴) وقتل النفس اى المؤمن

عمداً اي بغير حق (۵) واليمين الغموس.

وعن ابي هريرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ "اجتنبوا السبع الموبقات اى المهلكات وعد منها قتل النفس التي حرم الله الا بالحق متفق عليه.

وعن ابي سعيد وابي هريرة رضي الله عنهما لو ان اهل السماء والارض اشتركوا في دم مؤمن لاكبهم الله في النار" رواه الترمذي.

**درويش وايي:** چي احاديث صحيحه په باب کي د حرمت د قتل د مؤمن عمداً بغير حق كثيرة وفي احصانها بجملتها تكلف عظيم علي وعلى المتعلمين لهذا التفسير فاكتفينا بهذا المقدار القليل.

**پوه سه:** چي بخاري. ترمذي او مستدرک په حاکم کي روايت کړی دی له عکرمه ﷺ څخه او هغه له ابن عباس ﷺ څخه چي يو سړی و له بني سليم څخه چي د هغه سره يوه رمه پسونه هم وه. نو اصحاب د عليه الصلوة والسلام ناست وه هغه سړي سلام ورواچاوه. صحابه وو ﷺ يوه و بل ته سره وويل چي دا سړی يعني د پسو خاوند چي موږ ته يې سلام واچاوه صرف ددي لپاره چي زموږ څخه ځان وساتي يعني مسلمان خو نه دی. نو يې هغه سړی مړ کړی او پسونه يې د عليه الصلوة والسلام ته راوستل او صورت حال يې د عليه الصلوة والسلام ته ووايه. نو دا آيت نازل سو.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا ضَرَبْتُمْ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ فَتَبَيَّنُواْ

اې هغه کسانو چي سفر کوي په مځکه کي په لار کي د خدای ﷻ يعني د جهاد لپاره تاسي په کار کي فکر کوئ چي د کافر والي او مسلمانۍ درک در معلومېږي.

**پوه سه:** چي حمزه او کسائي له قراء سبعه وو څخه په دې آيت کي او په سورت حجرات کي دا عبارت په تا مثناة من فوق او په ثا. مثلثه سره وايي يعني "فتثبتوا" من التثبيت اى قفوا حتى تعرفوا المؤمن من الكافر. او نور قراء سبعه يې په يا. موحده او يا مثناة من تحت او په نون سره وايي كما رسمنا في متن القرآن ههنا مشتق من التبيين يعني التامل والتفكر في الامر. يعني تلوار مه کوئ حتى يوضح لكم الامر اى حال الكافر والمسلم.

**درویش وایي:** چي بغوي له کلبي رحمهما الله څخه له ابن عباس رضي الله عنه څخه داسي روایت کړی دی چي نوم د دغه مقتول مرداس بن نهیک و چي د فدک او سېدونکی و. او په فدک کي دغه سړی مسلمان و نور ټول له کافران وه. نو علیه الصلوة والسلام یوه سریه چي قومنداني د غالب بن فضالة اللیثي پر غاړه وه د فدک د غزاء لپاره استولې وه د فدک کافرانو چي دا واورېدل ټول له وتښتېدل یو مرداس المذکور چي مسلمان و پاته سو، ولي چي دی خو پر دین د اسلام و. نو د مسلمانانو له لښکره نه بېرېدی. نو د مسلمانانو لښکر چي راغلی او نعرې د الله اکبر یې ویلې ده هم الله اکبر وواېه وهو یقول لا اله الا الله محمد رسول الله. نو اسامه بن زید حمله پر وکړه او مرداس یې قتل کړی او پسو رمه یې څني رهي کړه او علیه الصلوة والسلام ته ددې موضوع خبر د مخه رسېدلی و. نو علیه الصلوة والسلام ته ډېر درد ورغلی و. او دا یې ویله قتلتموه لما معه لما معه تاسي دا سړی یعني مرداس مړ کړی په سبب د پسو چي دده سره ورسره وه. ثم قرء رسول الله ﷺ هذه الآية على اسامة. اسامه رضي الله عنه وایي ما علیه الصلوة والسلام ته وویل استغفرلي فقال فکیف بلا اله الا الله. اسامه رضي الله عنه وایي ما درې واره طلب د استغفار وکړی علیه الصلوة والسلام به هغه خبره راته کوله فیکف بلا اله الا الله. اسامه رضي الله عنه تر داسي پورې چي زما په زړه کي دا خوښه وه چي تر نن ورځي دمخه ته نه وایي مسلمان سوی او نن مسلمان سوی وای چي له دې جرمه څخه خو به خلاص وای. اسامه رضي الله عنه وایي چي وروسته تر درې واره علیه الصلوة والسلام طلب د بخښي زما له خدای ﷻ څخه وکړی. او په یو بل روایت کي راغلي دي چي اسامه وایي ما و علیه الصلوة والسلام ته وویل چي دې سړي چي کلمه وویل د سلاح له بېري یې وویل په رښتیا یې نه ده ویلې. نو علیه الصلوة والسلام راته وویل هلا شققت من قلبه فتعلم انه قالها املا" تا یې نو ولي زړه نه ور څیرئ چي ده کلمه د زړه ویلې ده او که نه. انتهی روایت البغوي بحذف بعض عباراته وزیادة بعض.

وَلَا تَقُولُوا لِمَنْ أَلْقَىٰ إِلَيْكُمُ السَّلَامَ

او تاسي مه وایاست د هغه چا ته چي پېش کړي سلم.

**درویش وایي:** چي که څه هم "سلم" بفتحتین په معنی د صلح او انقیاد دی لکن دلته مراد ځني سلام علیکم بقرینة القرائة الاخری بلفظ السلام والمراد بمن هو المرداس کمامر.

## لَسْتَ مُؤْمِنًا

ته نه يې مسلمان او سلام دي د ځان او پسو د خلاصی لپاره ووایه.

## تَبْتَغُونَ عَرَضَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا

دا جمله حال ده له ضمير څخه د "تقولوا" ای حال کونکم چي تاسي په دغه قول سره لست مؤمنا غواړي او طلب کوي د مال او منافعو د ناقص ژوند چي د مرداس پسونه دي.

**یوه سه:** چي په عرف کي "عرض" هغه شي ته وايي چي دوام نه لري او دغه غنیمت او پسونه خو هم دوام نه لري.

## فَعِنْدَ اللّٰهِ مَغَانِمُ كَثِيْرَةٌ

نو په نېز د خدای ﷻ ډېر غنیمتونه سته په دنیا او اخرت کي، نو حاجت نسته وتحصیل ته د غنیمت دنیوي په حیلو سره چي څوک سلام در واچوي تاسي ورته وایاست چي ته مسلمان نه يې سلام دي صرف د تعوذ لپاره واچاوه.

## كَذٰلِكَ كُنْتُمْ

داغسي واست تاسي، د "کان" اسم ضمیر د "تم" دی او کاف په "کذالک" کي د "کان" خبر دی مقدم سوی دی.

## فَمَنَّ اللّٰهُ عَلَيْكُمْ

ای قبل هذه الواقعة هغه وخت چي تاسي په اسلام کي داخل سواست او کلمه د لا اله الا الله مو وویل او په هغه کلمه ستاسي ويني او مالونه محفوظ سوه بيله دي چي ستاسي د زړونو حال څو هم نه و معلوم چي د ژبي د کلمي سره برابر وي او که نه.

## فَمَنَّ اللّٰهُ عَلَيْكُمْ فَتَبَيَّنُوْا

نو خدای ﷻ احسان وکړی پر تاسي چي په اسلام او استقامت في الدين سره يې مشهوره کړلاست، او هیڅ چاته يې ځای د اعتراض پر تاسي نه پرېښو، او

بعض مفسران وايي چي "كذالک كنتم قبل الهجرة" چي تاسي په خپل قوم مسلمانانو کي به محفوظ الدم والمال واست په لا اله الا الله سره فقط فمن الله عليكم بالهجرة فيتصن ايمانكم بالهجرة.

**پوه سه:** چي تكرار د "بينوا" لپاره د تاكيد دی دمخه د "بينوا" كما يقول اهل المعقول "العالم حادث لانه متغير وكل متغير حادث فالعالم حادث" فكلمة الفاء ههنا فصيحية ای اذا عرفتم من قتل المرداس بلا تحقيق الحال ورد ما قال السلام عليكم، او تاسي مسلمانان په اول الامر کي د غسي واست چي پر تاسي به چا تعرض كاوه د ايمان قلبي پوښتنه يې نه ځني كوله بلكې په صرف لا اله الا الله سره به يې كفايت كاوه او ستاسي د زړه حال يې نه پلټيی، نو تاسي هم "فتبينوا" بل اكتفوا بما قيل لكم من كلمة الله او التسليم الذي هو من شعائر الاسلام، او بعض مفسرين وايي دا "تبينوا" تفريع ده پر دې قول د خدای ﷻ "فعند الله مغانم كثيرة" يعني په نېز د خدای ﷻ ډېر مغانم سته. نو تاسي په اخستو کي د غنيمت ډېر احتياط وكړئ او دا ځان ته معلومه كړئ چي دا غنيمت من عند الله دی او موږ ته حلال دی او كه له اعراضو څخه د دنيا دی او موږ ته حرام دی لكه د مرداس غنيمت.

إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ بِمَا تَعۡمَلُونَ خَبِيرٗا ﴿٩٤﴾

او په تحقيق سره خدای ﷻ دی ستاسي په عملو كه خير وي كه شر ښه خبر. او ستاسي په اخستلو کي من الحلال والحرام هم خبر دی.

**پوه سه:** چي دا آيت هم وعد دی په اعتبار د اعمالو د خير او هم وعيد دی په اعتبار د اعمالو د شر. مظهري وايي چي په دې آيت کي دليل دی چي ايمان د مكره صحيح دی لپاره د اجراء د احكامو د دنيا. او بل پر دې دليل دی چي مجتهد گاهي خطاوځي او خطاء يې مغفوره ده كه ده تقصير نه وكړی په طلب کي د حق، او پر دې هم دليل دی چي مجتهد ته په كار ده چي له ژور فكر او نهايت تامل وروسته دې حكم كوي بما ظهر له او په مالاح له في اول الامر دې عجولاً حكم نه كوي، او كه مجتهد ټوله شرائط د اجتهاد پر ځای كړي خو بيا هم

خطاوخي فهو ماجور، او بل پر دي هم دليل دی چي نه دي حکم په کفر سره د هغه چا چي لا اله الا الله ولا يعجل في فعله تر هغو چي پوره حال يې معلوم پېږي. او غازيانو که په يو ښار يا قريه کي شعائر د اسلام وليدل کالمساجد او يا شعائر د اسلام يې واورېدل کالآذان. نو پر هغه ښار يا کلي دي بريد نه کوي، ولي چي په حديث شريف کي راغلي دي "ان رسول الله ﷺ کان اذا غزی قوماً فان سمع اذاناً کف عنهم وان لم يسمع اغار عليهم رواه البخاري وغيره. او داغه رنګه په صحيح حديث کي راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام يوه ټولګی چي په عربي يې سريه بولي يو خواته استول. نو هغو ته به يې داسي وصيت وکړی "اذا رئيتم مسجداً وسمعتم مؤذناً فلا تقتلن احداً انتهی.

**درويش وايي:** چي نو مورو راويانو چي سر کرده د هغو امام بخاري دی، له زيد بن ثابت څخه داسي روايت کړی.

**درويش وايي:** چي زيد بن ثابت ﷺ د عليه الصلوة والسلام د وحي کاتب دی چي عليه الصلوة والسلام پر زيد باندي يعني خپل ځان يې مراد دی دا آيت لوستی يعني ددې لپاره چي زيد يې نوشته کړي "لا يستوي القاعدون من المؤمنين والمجاهدون في سبيل الله" زيد ﷺ وايي چي عليه الصلوة والسلام ددې پر ما القا کوله د نوشتې لپاره چي عبد الله بن ام مکتوم ﷺ چي په دواړو سترګو ړوند و او په بل روايت کي عبد الله بن حجش او ابن مکتوم دواړه راغله چي دواړه په سترګو رانده وه، نو عبد الله بن ام مکتوم او يا سره د ملګري وويل چي که ما يا موږ طاقت د جهاد درلودای يعني په سترګو ړوند يا رانده نه وای. نو ما يا موږ به هم جهاد کولای. زيد وايي په داسي حال کي چي د عليه الصلوة والسلام ورون زما پر ورانه پروت و وحي پر راغلې زيد وايي چي د عليه الصلوة والسلام ورون دونه دروند سو چي زما ګمان سو چي زما ورون به را مات کړي وحي چي پوره سوې.

لَا يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ

اى عن الجهاد في سبيل الله "من المؤمنين" دا لفظ حال دی له قاعدون څخه ای حال کون القاعدون من المؤمنين يعني لا من المنافقين.



Scanned by CamScanner

## غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ

**پوه سه**: چې ضرر سوء الحال ته وايي يا په نفس کې د سړي لقلة العلم والفضل والعفة، او يا په بدن کې چې اندام يې نه وي يا ناقص وي لکه په مانحن فيه کې چې د ابن مکتوم د سترګو ديد نه و او يا په حال ظاهر کې د سړي چې مال نه لري، نو دې تولو کسانو ته شامل دي چې نه به شل وي نه به ړوند وي نه به سخت مريض وي او نه به ضعيف البدن وي د کبر سن له کبله او نه به عديم المال وي چې د جهاد د لارې خرڅ يې کړي.

**فائده**: غير اولی الضرر "صفت دی د "قاعدون"

**پوښتنه**: القاعدون" خو معرفه ده بالاف واللام او غير چونکه متوغل په ابهام کې دی مثلاً غير زيد خو شامل دی تولو ماقي السموات والارض ته نو لفظ د غير په سبب د اضافت ومعرفې ته لکه دلته چې "اولی الضرر" دی نه معرفه کېږي، نو څرنګه به صفت د "القاعدون" واقع سي؟

**ځواب**: نحات وايي چې يو ضد وي غير په اضافت و هغه ضد ته معرفه کېږي ولې مراد ځنې هغه بل ضد دی کما قالوا في قولهم عليک بالحرکة غير السکون دلته هم "اولو الضرر" يو ضد لري چې فاقد الضرر دی، نو د غير لفظ معرفه دی فافهم، او بعض مفسران وايي چې الف واللام په "القاعدون" کې لپاره د عهد ذهني دی لانه ليس المراد بالقاعدين قوم باعيانهم نو که څه هم لفظ د "القاعدون" معرفه دی لکن په حکم کې د نکرې دی، نو توصيف يې په نکره سره صحيح دی کما قالوا في قول الشاعر "ولقد امر علي اللئيم يسبني" يعني په دې شعر کې له "لئيم" څخه لئيم معين نه دی مراد توصيف يې په جمله د "يسبني چې په حکم کې د نکرې دی صحيح دی، وما اعترض عليه المظهري فليس بشئ لان التخصيص المظهري ذالک الحکم ای ان المعرفة التي في حکم النکرة يوصف بالنکرة بتوصيف بجملة مضارعة ليس عليه دليل غير ان في المثال المذکور ولقد امر آه کذالک ونفس المثال لا يدل على تخصيص القاعدة الکلية بذالک المثال فقط مالم يصرح النحاة بذالک.

وَالْمُجٰهِدُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ

نه دي سره برابر دغه مجاهدین په لاره کي د خدای ﷻ په خپلو مالو سره او په ځانو سره او هغه کسان چي قاعدین وي چي نه يې مال او نه يې ځان صرف کړی وي په لار کي د خدای ﷻ.

**درویش وایي:** چي په دې آیت کي بذل المال تر بذل النفس مقدم راوړی دی ددې سببه چي بذل المال طبعاً تر بذل النفس مقدم دی، ولي چي اول به غازي في سبیل الله توره او غشي وغیر ذالک من اداة الحرب برابروي او د سفر او سپرتیا لپاره به آس یا اوښ وغیره برابروي بیا به نو غزاته ځي، او بذل النفس په وخت کي د ملاقات د دښمن منځ ته راځي او که دغه تقدم طبعي نه وای، نو بذل النفس په شرافت او کثرة الثواب کي افضل دی تر بذل المال کما لایخفی.

**فائده:** دا عدم مساوات هلته دی چي قاعدین د عذر له سببه پر کور نه وي پاته سوي. که چېري قاعدینو شرعي عذر درلودی لکه ړوند او شل یا نور مرضونه چي مانع د وتوفی سبیل الله وه، او یا قاعد دونه مال نه درلودی چي په سفر کي يې په ځان خرځ کړي، نو که د معذورینو غیر مجاهدینو نیت صادق وي یعني په زړه کي يې دا راسخ وه چي که ما دا موجوده عذر نه درلودای زه به هم في سبیل الله وتلی وای، نو هغه قاعدین د مجاهدینو سره په ثواب کي برابر دي، بلکې ممکنه داده چي قاعد مخلص النیة به تر مجاهد په ثواب کي بالا وي یعني اذا کان جهاده ریاء وسمعة وفي مثل ذالک قال علیه الصلوٰة والسلام نیة المؤمن خیر من عمله لانه قضیة مهملة في قوة الجزئیة.

**پوه سه:** چي بخاري له انس ﷺ او ابن سعد له جابر ﷺ څخه روایت کړی دی چي علیه الصلوٰة والسلام د تبوک له غزاء څخه را ستون سو او مدیني منورې ته را نژدې سو داسي يې وویل ان في المدینة لاقواماً ماسرتم من مسیر ولا قطعتم من واد الا کانوا معکم (یعني في الاجر والثواب) قالوا یا رسول الله وهم بالمدینة (قالوا ذالک تعجباً من ذالک) قال نعم وهم بالمدینة حبسهم الغدر.

فَضَّلَ اللّٰهُ الْمُجٰهِدِيْنَ بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ عَلَى الْقٰعِدِيْنَ دَرَجَةً

**پوه سه:** چي مراد له قاعدينو څخه هغه دي چي اصحاب د عذر شرعي نه وي كمامر.

**پوه سه:** چي د "درجة" تنوين او تنكير لپاره د تعظيم دى او "درجة" منصوب ده په حذف د حرف جر والمعنى بدرجة عظيمة، او په روح البيان كي وايي چي "درجة" دي مفعول وي ولي چي د "درجة" څخه خو مراد تفضيل دئ چي معنا يې مرة من التفضيل ده وكانه قيل فضلهم تفضيلة واحدة، او هغه چي مظهري ويلي دي چي "درجة" دي حال وي له "المجاهدين" څخه والمعنى والتقدير ذوى حاجة آ، كه څه هم صحيح ده لكن حذف المضاف انما ينبغي عند عدم الوجه الاسهل للاعراب من حذف المضاف وههنا الوجه الاسهل موجود كمامر.

**فائده:** ذا جمله توضيح ده د عدم مساوات في الجملة السابقة يعني لا يستوي القاعدون الخ.

**پوښتنه:** دا جمله خو كافي وه په نفي كي د مساوات، نو دمخه به د نفي مساوات څه فائده وي؟

**ځواب:** صحيح ده چي دا جمله مغني وه له نفي څخه د مساوات لكن سره د هغه يې داوړي جملې راوړې، له دې سببه چي نفي د مساوات تفضيل ته متضمن وه دلالةً واجمالاً، وهذه الجملة مصرحة بالتفضيل. او د علم بلاغه علماء وايي چي تفصيل بعد الاجمال او تصريح بعد الدلالة مفيد د مزيد تاكيد ده او د تمكن في الذهن، والى هذا المعنى اشار الفاضل الجامي رحمه الله.

چه خوش باشى كه بعد از انتظارى بامید رسد امیدوارى

**پوښتنه:** عدم مساوات د يو عامل د طاعت اية طاعة كانت ومن لم يعمل بها خو بدهي دى فاى فائدة في بيان عدم مساوات المجاهدين والقاعدين؟

**ځواب:** فائده يې داده چي بعض خلګ به دا توهم كوي چي مجاهدين چونكه د سفر في سبيل الله په كړاوونو او شدائدو اخته دي، نو نه د تهجد و لمانځه ته فارغه دي او نه نفلي روژو ته الى غيرهما من نوافل العبادات، او قاعد في

البیت په بنه فارغه زړه د شپې او د ورځې د پر نفلي عبادات کولای سي او حقوق الناس کخدمة الاولاد وصلة الاقارب هم پر ځای کولای سي نو شاید قاعد به تر مجاهد افضل وي، نو دا توهم خدای ﷻ په دغه آیت سره دفع کړی "فضل المجاهدین آه"

**درویش وایي:** چي ددې آیت ومضمون ته اشاره په هغه حدیث نبوي چي متفق علیه دی راغلې ده حیث قال رسول الله ﷺ "مثل المجاهد في سبیل الله کمثل الصائم "ای نهارا" القائم القانت بآیات الله "ای لیلاً" لایضر من صیام ولا صلوة حتی یرجع المجاهد في سبیل الله"

**درویش وایي:** چي په قاعد کي دومره اعمال عادة غیر ممکن دي فلا یتصور المساوات بینهما فضلاً عن تفضیل القاعد علی المجاهد.

وَكُلًّا وَعَدَ اللَّهُ الْحُسْنَىٰ

یعني کل واحد من المجاهدین والقاعدین. وعده کړې ده خدای ﷻ د مثوبت چي ښه ده یعني د جنت چي د پر کریم ځای دی.

**فائده:** له دې آیت څخه دا معلومه سوه چي جهاد فرض کفایي دی، ولي که فرض عین وایي نو قاعدین به مستحق د عقاب وای دون الثواب.

**درویش وایي:** چي امام مظهري رحمه الله په عنوان د فصل یوه مسئله راوړې ده چي حاصل یې دادی چي که کافران په خپلو وطنو کي وه، نو پر امام المسلمین دا لازمه ده چي یو کال د کلو دي خالي له غزاء څخه د هغو کافرانو نه پرېږدي یا به پخپله غزاء ته ځي یا به سرایاوې استوي حتی چي جهاد معطل نه سي لان النبي ﷺ والخلفاء الراشدون جهاد یې مهمل نه دی پرې ایښی طول اعمارهم.

**درویش وایي:** چي مظهري رحمه الله په دې مسئله کي د اجماع دعوه هم کړې ده.

**درویش وایي:** چي وروسته تر دې چي علیه الصلوة والسلام د جهاد امر له خدای ﷻ له خوا څخه تر لاسه کړی بقیه ژوند یې تول په غزواتو کي د کفارو تېر کړی دی یا بنفسه الشریفة او یا بالسرایا حتی غزا بنوا قریضة او بنوا النضیر وفتح الله له، وغزاء خیبر ووادی القری وتبوک وغیرها، حتی امام بخاري د

كتاب المغازي په اول كي د عليه الصلوة والسلام اتلس يا نهه لس غزواتي راوړي دي، او دا هم صحيح خبره ده چي خلفاء راشدون ﷺ هم د جهاد كار مهمل نه دی پرې ايښی خصوصاً په زمانه كي د خلافت د امير المؤمنين عمر ﷺ حتى چي د عليه الصلوة والسلام په بركت او د خلفاء راشدينو ﷺ په غيرت اسلام شرق او غرب، شمال او جنوب ته ورسېدی، لكن خبره داده چي په اوسنی زمانه كي به كوم دولت اسلامي دا وظيفه اجراء كړي يعني چي كافران پر ځای ناست وي او اسلامي دولت دې غزاء ته ورځي، بلكې په اوسنی زمانه كي لويه مېرانه د دولت اسلامي داده چي خپل دولت اسلامي د كافرانو له غلبې څخه وساتي. مثلاً مصر چي قوي دولت د مسلمانانو دی دا توان نه لري چي د اسرائيلو پر حكومت چي د امريكې له خوا يې خبنته اينښوول سوې ده غزاء وكړي، او نه شام دا طاقت لري چي د اسرائيلو سره دي جنگ وكړي، او نه فلسطين چي دا شل كاله يې د اسرائيلو تر بمباری لاندي ژوند تېر كړی دی او اوس يې يو جزوي استقلال تر لاسه كړی دی، پر اسرائيلو باندي حمله كوي وهكذا سعودي عربستان او يمن دا توان نه لري چي پر اسرائيلو دي حمله وكړي، ولي چي د اسرائيلو وشاته لوی درنده امريكا ولاړ دی، البته عراق يو لوی قوي دولت وچي امكان وچي د مجاورو كافرانو سره دي غزاء وكړي. لكن د نړۍ لوی شيطان امريكا چي له عراق څخه خطر محسوس كړی او لوی لوی ذخائر د نفطو يې هم په عراق كي وليدل. نو يې تيارې كړې چي عراق اتم بم لري او زهر جن گازونه او نور نور مخرب عامه شيان لري او ځو واره يې د عراق تلاشي وكړې. نو امريكا چي په دې پوه سو چي د عراق سره داسي صلاح نسته چي زما سره دي جنگ په وكړي كرار يې په مشوره د نورو شيطانانو د دنيا لكه انگرېزان وغيره حمله وكړه او عراق يې تر خپلې قبضې لاندي راوستی الی الآن سنه ۱۴۲۷ ه ق.

**درويش وايي:** چي نه پاكستان دا توان لري چي د هندوستان جنگ ته ورسي او دي حمله پر وكړي، د پاكستان لويه مېرانه داده چي د هندوستان له حملې څخه يې خپل مملكت پاكستان ساتلی دی، په موجوده وخت كي يو ايران يو

منظم لوی دولت اسلامي سته چې هغه ته هم امریکا د افغانستان له لارې چې د امریکا په اوسنۍ زمانه کې یوه مستعمره ده پر ایران حمله وکړي.

حاصل د کلام دادی چې د مظهري دغه وصیت به کوم حکومت په اوسنۍ زمانه کې پر ځای کړي.

**درویش وايي:** چې امکان لري چې د افغانستان غیرت من وګړي به دا وصیت پر ځای کړي، ولې چې دغو افغانانو شوروي اتحاد چې په ټوله نړۍ کې ستر قدرت و لکه امریکا په اوسنۍ زمانه کې اخیر الامر په ورکولو د ډېر قربانیو یې له افغانستان څخه مخ توری وشاړه، لکن شوروي اتحاد چې د افغانستان پر مسلمانانو یې ډېر ظلمونه کړي وه او ملک یې وروجاړ کړی و په دې دنیا خدای ﷻ سزا، ورکړه چې اتحاد شوروي یې ور دړې وړې کړی، او روسیانو مخ تورو ته یوازې ماسکو ور پاته سو وبس.

**وَفَضَّلَ اللَّهُ الْمُجٰهِدِينَ عَلَى الْقٰعِدِينَ أَجْرًا عَظِيمًا ﴿٩٥﴾ دَرَجٰتٍ مِّنْهُ**

او خدای ﷻ بالا کړي دي مجاهدین یعنی بانفسهم واموالهم کمامر، پر هغو مؤمنانو چې له جهاد څخه پاته وي لکن غیر اولي الضرر کمامر، ډېرې درجې له طرفه څخه د خدای ﷻ.

**یوه سه:** چې "اجراً" منصوب دی چې مفعول مطلق دی د "فضل" لان فضل بمعنی اجر کانه قیل اجرهم اجراً عظیماً. او یا مفعول ثاني د "فضل" دی، ولې چې هغه متضمن دی معنا ته د اُعطی کانه قیل واعطی الله المجاهدین اجراً عظیماً.

**یوه سه:** چې درجات بدل کل دی له اجرا، څخه لپاره د بیان د مقدار د اجر عظیم، او لفظ د "منه" صفت دی د "درجات" ای درجات کائنة من الله تعالی وفیه اشارة الی فخامة تلک الدرجات لکونها من عطایا القادر المطلق والرحمن المعظم العالم بحال العباد، وفي الحدیث الصحیح ان في الجنة مائة درجة اعدها الله للمجاهدین في سبیله مابین الدرجتین کمابین السماء والارض.

**وَمَغْفِرَةً وَّرَحْمَةً**

یعنې بخښنه د هغو ګنهو چې بخښنه یې په جهاد في سبیل الله پورې خاصه ده

او رحمت دی د خدای ﷻ.
**پوه سه**: چې "مغفرةً ورحمةً" هم بدل دی له "اجراً" څخه.
**فائده**: درجات خو غیر مذنب لره دي او مغفرت مذنب لره دی او رحمت دواړو لره دی.

وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴿٩٦﴾

او دی خدای ﷻ بخښونکی د ګنهو د مجاهدینو او مهربان دی پر مجاهدینو في سبيل الله تعالى.
**پوه سه**: چې خدای پاک تفضیل د مجاهدینو مکرر راوړی او ددوی په تفضیل کې یې مبالغه وکړه اجمالاً وتفصیلاً، ولې چې اولاً یې اشاره و تفضیل ته د دوی وکړه په نفي سره د مساوات د دوی او د قاعدینو تر منځ بقوله جل ذکره "لا يستوي القاعدون" او بیا یې تفضیل د مجاهدینو بیان کړی مجملاً بقوله "درجة" او بیا یې د دوی تفضیل بیان کړی تفصیلاً بقوله تعالی "اجراً عظيما ومغفرة ورحمة" دا توله د ترغیب د مسلمانانو وجهاد في سبيل الله ته او د تعظیم د فعل د جهاد، ولې چې سبب کلي د نشر د اسلام في اقطار الارض هو الجهاد ليس الا.
**پوښتنه**: د توحید د درجې اولاً او د ډېر والی د درجو تر منځ به منافات نه وي؟
**ځواب**: یا منافات نسته ولې چې په درجه بالتوحید کې مراد تفضیل دی د هر مجاهد پر هر قاعد بدرجةٍ واحدةٍ او په درجات بالتکثیر کې مراد تفضیل دی د جميع المجاهدين على جميع القاعدين بدرجات والقانون ان مقابلة الجمع بالجمع يقتضى تقسيم الآحاد على الآحاد فكان لكل مجاهد تفضيلاً على كل قاعد بدرجة واحدة، او په زړه پوري ځواب دادی چې تفضیل په یوه درجه او په ډېرو درجو په حال پوري د مجاهدینو اړه لري في حسن النية ومزيد المحبة للجهاد وسهولة الجهاد في بعض الاحوال وشدتها في بعض وقلة المكث في الجهاد وطوله وغير ذالک من احوال الجهاد في سبيل الله فلواحد من المجاهدين يكون تفضيلاً بدرجة وللآخر بدرجتين وللثالث بدرجات ثلثة ثم وثم الى ما يعلمه الله ﷻ، او بعض مفسرین وایي چې مراد د "فضل الله المجاهدين على القاعدين درجة" درجه د دنیا ده من الغنيمة والسلطنة وجميل الذكر، او په صیغه

د وحدت چې يې راوړه لپاره د تحقير د دنياوي نعمتو لانها وان جلت قليلة حقيرة بالنسبة الى النعم الاخروية من الجنات العالية. او مراد د فضل الله المجاهدين چې دوهم وار ذكر سو درجات د آخرت دي لانها كثيرة جزيلة لاعين رئت ولا اذن سمعت ولا خطر على قلب بشر كما ورد في الحديث النبوي، او قتاده رحمه الله وايي چې مراد له قاعدينو څخه په اول آيت كې اولى الضرر والا يعني معذورين كسان دي چې نيت د جهاد په زړه كې ټينګ لري لكن عذر يې مانع د جهاد د عمل ګرځېدلى وي، نو مجاهدين پر دغو قاعدينو معذورينو يوه درجه بالا دي، ولې چې په نيت خو دواړې ډلې سره برابرې دي لكن په مجاهدينو كې عمل د جهاد هم سته. او د دغو مجاهدينو بالعمل والنية والمجاهدين بالنية فقط وعد الله لهم الحسنى على نياتهم. او قاعدون چې دوهم وار ذكر سوي دي هغه قاعدون دي چې بېله عذره له جهاد څخه ناست وي، نو د هغو په باره كې خداى پاک وايي "وفضل الله المجاهدين على القاعدين اجرا عظيما درجات منه ومغفرة ورحمة.

**درويش وايي:** چې هغه تفسير چې قاضي پاني پتي په قيل سره په خپل تفسير كې راوړى دى چې مراد له مجاهدون اولون څخه هغه مجاهدين دي چې د كفارو سره په جهاد اخته وي، او مراد له مجاهدين آخرينو څخه هغه مجاهدين دي چې د خپل نفس اماره سره جهاد كوي، نو دې اخيرو مجاهدينو لره ده. اعد الله لهم اجراً عظيماً درجات القرب من الله تعالى ومغفرة ورحمة، بيا وروسته ده هغه حديث راوړى دى په نقل له بيهقي څخه چې رسول الله ﷺ وويل "المجاهد اى كامل مجاهد من جاهد نفسه الى اخير الحديث" چې دا خبره خو ډېره صحيحه ده او حديث هم صحيح دى، لكن درويش وايي چې د دې آيت تفسير څرنګه صحيح دي، ولې چې ټوله آيتونه د دې مقام خو په جهاد ظاهري كې د كفارو نازل سوي دي چې د جهاد اصغر په نامه يادېږي نه په جهاد معنوي كې يعني الجهاد مع النفس چې د جهاد اكبر په نامه عليه الصلوة والسلام معرفي كړى دى. حاصل دا چې مفسر لره ښايي چې هر رطب او يابس په تفسير كې د قرآن نه راوړي ومن الله التوفيق.

# اِنَّ الَّذِيْنَ تَوَفّٰهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ

**يوه سه**: چي "ان الذين توفهم" احتمال د ماضي صيغې هم لري كما هو الظاهر او د مضارع احتمال هم لري بحذف احدى التائين والاصل تتوفهم چي معنا يې داده په تحقيق چي روح يې قبض كړي.

**يوه سه**: چي مراد له "الملائكة" څخه ملك الموت دى وحده كما ورد في قوله تعالى "قل يتوفكم ملك الموت الذي وكل بكم.

**سوال**: ملك الموت خو يو دى يعني عزرائيل عليه السلام، نو د جمعيت معنى به څه وي؟

**ځواب**: عرب ګاهي له مفرد څخه په جمع تعبير كوي د تعظيم لپاره، لكن سره ددې صحيح داده چي مراد له "الملائكة" څخه عزرائيل او اعوان دده دي، په دليل د هغه حديث چي روايت يې احمد او نسائي كړى دى له ابي هريره رضي الله عنه څخه چي په يوه برخه كي د هغه حديث راغلي دي چي د مؤمن چي د زكندن وخت را ورسېږي، نو ملكي د رحمت ورته راسي او ددوى سره د سپينو وربښمو كالي ورسره وي، نو د مؤمن نفس ته ووايي را ووځه له بدن څخه راضيةً مرضيةً عنك الى روح الله وريحان ورب غير غضبان، يعني ته به خوشحاله يې او خداى جل جلاله هم ستا څخه راضي دى الى اخير الحديث. او د كافر چي زكندن سي، نو د عذاب ملكي ورته راسي او ځير تو كر ورسره وي، نو پر روح رغ وكړي چي را ووځه ساخطةً مسخوطةً عليك الى عذاب الله جل جلاله الى اخير الحديث. او احمد رحمه الله د براء بن عاذب رضي الله عنه ډېر اوږد حديث روايت كړى دى چي د هغه په يوه برخه كي داسي راغلي دي چي د مسلمان چي له دنيا څخه د انقطاع وخت او وآخرت ته د اقبال وخت يعني د زكندن وخت را ورسېږي. نو ډېري ښائسته ملكي چي سپين مخان يې وي لكه لمر او ددوى سره كفنونه د جنت له كفنو څخه ورسره وي او په هغه كفنو كي خوشبويي پاشل سوې وي، نو دا ملكي لېري ورته كښېني چي مړى يېويني وروسته ملك الموت راسي او دده وسرته كښېني، نو ملك الموت ورته ووايي اې پاكه روحه را ووزه له بدنه و بخښي ته د خداى جل جلاله او رب دي

در څخه راضي دی، نو دا روح چي دا بشارت وواري داسي په اساني له بدن څخه راووځي لکه يو څاڅکي چي له مشکولا څخه راوځي، نو ملک الموت هغه روح راواخلي، چي دی راواخلي هغه نوري ملکي يې د سترګي په رپ دده په لاس کي نه پرېږدي، نو هغه په هغه کفن او خوشبويي کي ونيسي تر پايه د حديث.

**درويش وايي:** چي له دې حديث څخه دا معلومه سوه چي روح او نفس جسم لطيف دی لايری باعيننا بدلالة الاكفان والحنوط والخروج من البدن.

**درويش وايي:** چي ددې حديث په اخير کي حال د کافر او دده د روح په ډېره سختي سره بيان سوی دی نجنا الله تعالى من الكفر عند الموت واماتنا على الاسلام الخالص الحق.

**پوه سه:** چي ددې ايت شان نزول بغوي رحمه الله داسي بيان کړی دی چي په مکه کي بعض خلک وه چي د اسلام کلمه يې ښکاره کړې وه مګر هجرت يې مدينې ته نه و کړی چي يو په هغو کي قيس بن الفاکة بن المغيرة و، او بل قيس بن الوليد بن المغيرة او نور ورته کسان هم وه، نو چي د مکې مشرکان بدر ته راووتل دوی هم ورسره راووتل او د کفارو سره يو ځای په بدر کي ووژل سوه، او بخاري له ابن عباس رضي الله عنه څخه داسي روايت کړی دی چي بعض خلک له مسلمانانو څخه د مکې د مشرکانو سره به په جنګ کي ملګري کېده او جماعت او ډله د مشرکانو به يې ډېروله پر عليه الصلوة والسلام باندي، نو د مسلمانانو له خوا څخه چي به يو غشی ورغلی په دوی کي به موښتی او مړ به سو، او يا به مسلمانانو په توره ووهل او مړه به سوه.

**درويش وايي:** چي له دې عبارت څخه د حديث مذکور چي يکثرون سواد المشركين داسي فهمېږي چي دوی به پخپله جنګ نه کاوه.

**پوه سه:** چي نص د قرآن پر دې دلالت نه کوي چي دغه کسان مسلمانان وه، کما روی ابن عباس رضي الله عنه كان قوم بمكة قد اسلموا فلما هاجر رسو الله ﷺ كرهوا ان يهاجروا وخافوا من اهل مكة، او په بل روايت کي د ابن عباس رضي الله عنه داسي راغلي دي "كان قوم من اهل مكة قد اسلموا وكانوا يخفون الاسلام من مشركي

مکة" نو مشرکانو دوی و بدر ته د ځان سره راوستل، او بعض د دغو مسلمانانو د
بدر په غزاء کي په شهادت ورسېدل، نو بعض مسلمانان چي په هغو خبر وه چي
دا مسلمانان وه او په زوره و جنگ ته راوستل سوي وه، نو یې طلب د بخښني د
هغو لپاره کاوه، او مذکوره آیت نازل سو.

**فائده**: موږ وړاندي وویل چي نص د قرآن پر دې دلالت کوي چي دغه خلگ
حقیقةً مسلمانان نه وه، نو هغه روایت چي ابن مندة کړی دی او د مذکوره کسانو
نومان یې هم اخستي دي او په اخیر کي یې داویلي دي چي دغه کسان چي بدر
ته راغله او لږ والی یې د بدر د غزاتو ولیدی، نو ددوی په زړو کي شک پیدا سو
او دا یې هم وویل غر هؤلاء دینهم یعنې دغه مسلمانان د بدر غولولي دي دین
ددوی، نو په بدر کي قتل سوه آه.

**درویش وایي**: چي دا روایت د منلو وړ نه دی، ولي چي له دې روایت څخه دا معلومېږي
چي دا کسان مرتد سوه فهذه الروایة مخالفة لنص القرآن. والله اعلم بالصواب.

## ظَالِمِيٓ أَنفُسِهِمۡ

په داسي حال کي چي دوی ظالمان وه پر خپلو ځانو باندي یعني په ترک سره د
هجرت او په اوسېدلو سره په دار الشرک مکه کي، او دوی اخستی و پر غاره
معصیت د موافقت د کفارو حتی الخروج معهم الی بدر.

**پوښته**: چي بغوي وایي چي بعض علماء وایي چي د چا اسلام نه قبول کېدی
وروسته تر هجرت د نبي ﷺ ومدینې ته الا بالهجرة و هذا قول لیس بشيئ، ولي
چي هجرت په هغه وخت کي که څه فریضه محکمه وي لکن ترک ددې فرض خو
دې لره نه دی مستلزم چي اسلام ددوی نه قبول کېږي او یا به څوک دا حکم کوي
چي دوی مسلمانان نه وه بل غایة الامر کونهم عاصین بترک الهجرة وعدم موالاة
المسلمین معهم کمایدل علیه قوله تعالی "والذین آمنوا ولم یهاجروا مالکم من
ولایتهم من شيئ حتی یهاجروا وان استنصروکم في الدین فعلیکم النصر" ولي
چي ددې آیت له اخیر څخه دا فهمېږي چي دوی خو مسلمانان دي حتی که ستاسي
څخه کومک په دین وغواړي کومک به ورسره کوي.

**پوهه**: چې "ظالمي انفسهم" حال دی له ضمیر څخه د مفعول په "توفهم" کې.

**مسئله**: که اوس یو څوک په داسې دار الکفر کې وي چې شرائع د اسلام پېي نه سوای پر ځای کولای، نو هر هغه هجرت واجب دی له هغه دار الکفر څخه وله ثواب المهاجرین.

**پوښتنه**: په حدیث شریف کې راغلي دي چې علیه الصلوة والسلام د فتح مکې په ورځ وویل "لاهجرت بعد الیوم" حتی چې بعض علماء وایي چې د هجرت د آیت وجوب منسوخ دی؟

**ځواب**: معنی د قول د علیه الصلوة والسلام داده چې هجرت له مکې څخه و مدینې منورې ته بعد الیوم نسته لکون المکة بعد الفتح دار الاسلام ولا یعد من المهاجرین ولا ثواب الهجرة لمن هاجر بعد فتح مکة" او نه په مهاجرینو کې حساب دي او د حدیث دا معنا نه ده چې هجرت مطلقاً نسته. بلکې آیت د هجرت منسوخ نه دی بلکې محکم دی او هجرت واجب دی پر هغه چا چې شرائع د اسلام نه سي پر ځای کولای په دار الکفر کې.

**پوښتنه**: آیا پر مسلمانانو د هندوستان هجرت واجب دی؟

**ځواب**: هیڅ نه دی واجب البته مندوب به وي، ولې چې مسلمانان د هندوستان په ازاده توګه شرائع د اسلام پر ځای کولای سي من الآذان وصلوة الجمعة والعیدین، او حکومت هند په لکاوو مسلمانانو ته پاسپورټ د حج ورکوي او د هند حکومت په مکه معظمه. منی او عرفات کې د خپلو حاجیانو لپاره ښه په زره پورې انتظامات کوي کما رئینا ذالک بالمشاهدة.

## قَالُوْا

یعنې ملائکه د وفات ودوی ته وایي لپاره د توبیخ او سرزنش پر هجرت نه کولو باندې.

**پوهه**: چې جمله د "قالوا" خبر د "ان" ده او عائد دی و مبتداء محذوف ته ای قالوا لهم.

## فِيمَ كُنتُمْ

**پوه سه**: چي دا جمله مقوله ده د "قالوا" او اصل د "فيم" فيما و حذف الالف تخفيفاً والمعنى في اى شئ كنتم آيا مسلمانان واست لكه ستاسي اقرار چي پر اسلام دلالت كوي. او كه پر كفر واست لكه چي دلالت كوي ستاسي اوسېدنه سره د كفارو د مكې بلا عذر.

## قَالُوا

او وايي دغه وفات كړه سوي خلګ په ځواب كې د ملكو چي هغو ورته وويل "فيم كنتم" ددې عذر لپاره چي موږ فريضه د هجرت پرې ايښې وه.

## كُنَّا مُسْتَضْعَفِينَ فِي الْأَرْضِ

چي موږ ضعيفه وو په مځكه كي د مكې مقابله او مقاومت د كفارو د مكې مو له لاسه نه و پوره او اظهار د دين او اعلاء د كلمة الله مو هم له وسه نه وه پوره.

## قَالُوا

ملكې وايي په ځواب كي ددوى د عذر د تكذيب لپاره.

**پوه سه**: چي دا "قالوا" هم جمله مستانفه ده د سوال ځواب ده چي هغو متوفينو چي عذر مذكور بقولهم كنا آه يې ووايه، نو ملكو په ځواب كي ورته وويل.

## أَلَمْ تَكُنْ أَرْضُ اللَّهِ وَاسِعَةً فَتُهَاجِرُوا فِيهَا

آيا نه وه مځكه د خداى ﷻ فراخه چي تاسي هجرت كړى واى وهغې مځكې ته چي تاسي به په هغه مځكه كي قادر واى پر اظهار د شرائعو د اسلام او پر مخالفت د كافرانو او پر اظهار او اعلاء د كلمة الله باندي لكه هغه مسلمانانو چي هجرت يې مدينې منورې ته وكړى او يا يې حبشې ته هجرت وكړى.

**فائده**: استفهام د "الم تكن آه" استفهام انكاري دى او نفي د نفي اثبات دى. يعني مځكه د خداى ﷻ د هجرت لپاره فراخه وه. نو ولي مو هجرت نه كاوه.

**فائده**: كلمه د "تهاجروا" منصوب ده په اسقاط د نون لكونها جواباً للاستفهام والقاعدة متقررة في النحو.

فَأُولَٰئِكَ مَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ

نو دغه متوفين تاركي الهجرة بلا عذر ځاى ددوى دوږخ دى.

**پوه سه:** چي كلمه د فا لپاره د سببيت ده يعني ترك الهجرة سبب سو ددې.

**تنبيه:** دا گمان دي ځوك نه كوي چي دا كسان په ترك الهجرة سره كافران سوه، ولي په ترك د يو فرضي عمل بيله انكاره د فرضيت سړى نه كافر كېږي كما هو مذهب اهل السنة والجماعة اختلافاً للروافض او نه دي دا گمان كوي چي ددغو كسانو به ابدي ځاى دوږخ وي لما تقرر عند اهل السنة والجماعة ان مرتكب الكبيرة لا يخلد في النار خلافاً للمعتزلة.

وَسَاءَتْ مَصِيرًا ﴿٩٧﴾

او بد دى ځاى د ورتگ جهنم، اعاذنا الله وإياكم من هذه المصير امين.

**درويش وايي:** چي ومانقل عن السدي ان من ترك الهجرة مع القدرة فهو كافر ليس بصحيح. والدليل عليه عدم تقييد الله عزوجل قوله ماهم جهنم بالخلود والتابيد.

**فائده:** حال ددغو تاركي الهجرة په ورځ د قيامت مفوض دى ومشيت ته د خداى ﷻ عظمت قدرته وكثرت رحمة ان شاء عذبهم في النار الى ماشاء الله بدون الخلود والتابيد وان شاء غفرلهم كما هو حكم سائر ارباب الكبائر ماتوا بغير التوبة عند اهل السنة والجماعة.

إِلَّا الْمُسْتَضْعَفِينَ

**پوه سه:** چي مفسرين په يوه خوله وايي چي دا استثناء منقطع ده، ولي چي دا مذكوره كسان تحت الاستثناء نه په موصول كي يعني الذين توفهم آه كي داخل دي او نه په ضمير كي د موصول داخل دي او نه په اشاره كي و موصول ته يعني "فاولئك آه" ولي چي دا مذكوره كسان تحت الاستثناء خو د "ظالمي انفسم" نه دي په ترك سره د هجرت. ولي چي وجوب د هجرت خو مربوط دى په قدرت سره ولا قدرة لهؤلاء المذكورين.

**سوال**: په استثناء منقطع کي خو توهم د قدرت په مستثنى منه کي غواړي كما في قولهم جائني القوم الا حماراً. نو ولدان چي مذكور په استثناء كي دي خو توهم د دخول په مستثنى منه كي چي "ظالمي انفسهم" ده نسته لعدم التكليف بالهجرة على الولدان؟

**ځواب**: درویش وايي چي اول ځواب دادی چي ذکر د ولدانو مبالغه في التحذير عن ترك الهجرة للمكلفين، او دوهم ځواب دادی چي مراد له ولدانو ځخه بحذف المضاف اولياء د ولدانو دي، يعنې كه اولياء د ولدانو دا قدرت درلودی چي دا ولدان نقل كړي له دار الكفر ځخه پر دوی دا نقل واجب دی والا فهم من المستضعفين، دريم ځواب دادی چي توهم "ظالمي انفسهم" په ولدانو كي په اعتبار د مايؤل اليه يعني كه دوی بالغان سي او قدرت پر هجرت پيدا كړي او بيا يې هم نه وكړي، نو به ظالمي انفسهم وګرځي.

## مِنَ الرِّجَالِ

لكه شيخ فاني يا شل او يا مريض غير قابل للسفر راجلاً، او پر راحله هم قدرت نه لري، او يا صاحب العيال وي چي د ټولو د نقل طاقت نه لري او كه دي يوائځي ولاړ سي بېرېږي چي عيال به مي د لوږي له كبله ضائع سي الى غير ذالك من اعذار الرجال.

## وَالنِّسَاءِ

لان الغالب فيهم ضعف البنية وعدم استطاعة السفر او كونها مخفية للايمان من زوجها الكافر، نو دا بېرېږي كه زه و هجرت ته اماده سم مېړه به مي په ايمان خبر سي او مړه به مي كړي.

## وَالْوِلْدَانِ

يعنې كوچنيان چي بالغان نه وي.

**پوښتنه**: مريان يې نه كړه ذكر؟

**ځواب**: په سبب د ظهور د حال دده ولي مريی كه پر هجرت قادر وي وجب عليه الهجرة او حق د مولى يې مانع د وجوب د هجرت نه سي كېداى، ولي حق د مانع د فرض عين نه سي كېداى چي هجرت دی فيما نحن فيه ويؤيد ذالك هغه

حدیث چي محمد اسحاق صاحب المغازي رحمه الله او حافظ محمد بن یوسف الصالحي رحمه الله او بخاري او مسلم یې په ګډه روایت کړی دی چي حاصل د ټولو مع اختلاف عباراتهم دادی چي علیه الصلوة والسلام سره د صحابه کرامو رضي الله عنهم چي طائف محاصره کړی، نو منادي د علیه الصلوة والسلام اعلان وکړی چي هر مریی چي له حصار څخه د طائف راووځي هغه حر دی، نو په نوبت درویشت مریانو ځانونه علیه الصلوة والسلام ته راورسول او علیه الصلوة والسلام ټول آزاد کړل او هغو اسلام راوړی، نو علیه الصلوة والسلام دغه آزاد شده ګان پر اصحابو کرامو رضي الله عنهم تقسیم کړه، یعني یو د ازاد شده ګانو به یې یوه صحابي ته وسپاري چي ددې سړي خرڅ و خوراک، جامه او تر مدینې پورې د سپرتیا بوده به هم ته وربرابروي او قرآن شریف به په زده کوي او شرائع او احکام د اسلام به هم ته وربنیي، نو په دغه ډول درویشت ازاد شده ګان پر درویشتو صحابه کرامو چي طاقت مالي به یې درلودی تقسیم کړه، وروسته د ثقیف یعنې د طائف باشنده ګانو ایمان راوړی او طائف فتح سونو بعض مشران چي تر ټولو ناموري وه لکه حارث بن کلدة د ثقیف د قبیلې و علیه الصلوة والسلام ته راغله او غوښتنه یې څني وکړه چي دا درویش کسان دې بیرته رق ته رد سي. نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل هؤلاء عتقاء الله لاسبیل الیهم" یعنې دا درویش کسه خدای ﷻ ازاد کړه ودوی ته لار د بیرته مریتوب نسته.

لَا يَسْتَطِيعُونَ حِيلَةً وَلَا يَهْتَدُونَ سَبِيلًا ﴿٩٨﴾

ددوی په قدرت کي نه وه چي یوه حیله یعني اسباب د هجرت برابر کړي، نه ځیل لار د هجرت ورته معلومه وه. او نه یې بل سړی لاربنود درلودی.

فَأُولَٰئِكَ عَسَى اللَّهُ أَنْ يَعْفُوَ عَنْهُمْ ۚ وَكَانَ اللَّهُ عَفُوًّا غَفُورًا ﴿٩٩﴾

نو دغه بیان شده معذورینو ته شاید خدای ﷻ عفوه د ترک الهجرة وکړي.

**فائده:** خدای پاک ودغو معذورینو ته لفظ د "عسی" ووایه او لفظ د "عفوی" یې هم ووایه اشاره ودې ته ده چي د ترک الهجرة کار ډېر خطرناکه دی حتی چي معذور هم باید چي بې پروا نه وي، او له خدای ﷻ څخه سره سره له عذره عفوه وغواړي.

ابن عباس ﷺ وايي چې زه او زما مور له هغو كسانو څخه وو چې خداى ﷻ
معذور گڼلي وه، او رسول الله ﷺ به ودغو مستضعفينو ته په لمانځه كې دعا.
كوله. چناچه بخاري له ابي هريره ﷺ څخه روايت كړى دى چې عليه الصلوة
والسلام به چې د ماخستن د لمانځه په اخيري ركعت كې سمع الله لمن حمده ووايه،
نو داسې دعا، به يې په جهر سره كوله "اللهم انج عياش بن ابى ربيعه اللهم انج
الوليد بن الوليد اللهم انج سلمة بن ابى هشام اللهم انج المستضعفين من
المؤمنين. اللهم واشدد وطائك على مضر اللهم اجعلها عليهم سني كسني يوسف.

**درويش وايي**: چې دا قنوت دائم نه دى چې په وترو كې ويل كېږي بلكې دا
قنوت پر يو نازل آفت پر مسلمانانو لكه وبا، او طاعون او يا د كافرانو د تسلط
پر مسلمانانو يې ويل مستحب دي او د ماخستن په لمانځه پورې هم تخصيص
نه لري، وهذا مذهب الحنفية رحمهم الله كما بين في كتب الفقه الحنفي.

**فائده**: جمله د "لايستطيعون" د "المستضعفين" صفت ده.

**سوال**: جمله خو په حكم كې د نكرې ده كما تقرر في كتب النحو فكيف يصح
كونها صفت للمعرف باللام اى المستضعفين؟

**ځواب**: چونكه مستضعفين يو قوم معين نه دى، نو الف ولام يې لپاره د عهد
ذهني دى فهو في حكم النكرة ايضاً فيصح التوصيف كما في قول الشاعر "القد
امر على اللئيم يسبني" چې جمله د "يسبني" صفت ده د "اللئيم" ولې چې د بل شي
احتمال نسته يكښې او په لئيم كې الف ولام لپاره د عهد ذهني دى اذ لا يمكن
المرور على الطبعية ولايمكن المرور على كل لئيم في الدنيا حتى يكون اللام
للجنس او للاستغراق ولا معهود في الخارج في البيت المذكور فبقى احتمال
العهد الذهني فيصح توصيفه بالجملة واخير المصرع المذكور "فمضيت ثمة قلت
لا يغنيني.

**وَمَنْ يُّهَاجِرْ فِىْ سَبِيْلِ اللّٰهِ يَجِدْ فِى الْاَرْضِ مُرٰغَمًا كَثِيْرًا وَّسَعَةً**

كه څوك هجرت وكړي په لاره كې د خداى ﷻ لپاره د اجراء د احكام شرعيه
وو بلا خوف او يا لپاره د اعلاء د كلمة الله هغه به پيدا كړي په مځكه كې پراخي

**پوه سه**: چي ابن عباس رضي الله عنه وايي چي "مراغم" د تحول ځای ته وايي مشتق دی له رغام ځخه وهو التراب. او بعض مفسران وايي چي د مراغم معنی لار ده چي براغم قومهم الکفار ای یفارقهم علی رغم انوفهم چي پزې به ددوی په خاورو وي وهو ایضا من الرغام وهو التراب. او مجاهد رحمه الله وايي چي ځای د خلاصون له کافرانو ځخه دی. او ابو عبیده رحمه الله وايي چي مراغم معنی ځای د هجرت من راغمت قومي ای هاجرتهم. او په قاموس کي وايي چي مراغمة هجران او لېږې والي ته وايي. او مراغم بضم المیم وفتح الغین ځای ته د ورتلو وايي او ځای ته د تېښتي وايي او قلعې ته وايي.

**درویش وایي**: چي د ټولو تفسیر و مآل یو دی یعني ځای د هجرت او استوګنې په مځکه کي. او فراخي به پیدا کړي په رزق او معاش کي او ځګر به یې هم فراخه وي په سبب د امن او د زوال د خوف الکافرین في اداء الاحکام الشرعیة بلا اضطراب وخوف. بغوي رحمه الله وايي چي دا آیت چي نازل سو، نو یو سړي د بني لیث وا وریدی چي شیخ کبیر و او په عین حال کي مریض هم و چي جندع بن ضمرة یې نوم و. نو یې وویل چي والله ما انا ممن استثنی الله ﷻ واني لاجد حیلة ولي من المال مایبلغني الی المدینة. بلکي تر مدینې لا لېږې ځای ته. او وه یې ویل چي قسم په خدای ﷻ دی که زه نن شپه په مکه کي تېره کړم. نو یې زامنو ته وویل چي ما له مکې ځخه وباسئ. نو زامنو پر چار پائي واخستی او تنعیم ته یې ورساوه. نو د زکندن علامه ورته پیدا سوه. نو رسته لاس یې پر چپه لاس کېښېښو یعني د بیعت په توګه او داسي یې وویل هذه لک وهذه لرسولک ابایعک علی مابایعت رسولک فمات. نو دده خبري و علیه الصلوة والسلام ته ورسېدی او مسلمانانو وویل چي کاشکي دی مدینې منورې ته ژوندی را رسېدلی وای. نو هجرت به یې تام وای او ثواب به یې ډېر وای او مشرکانو د مکې په خندل او دا به یې ویل "ما ادرک هذا ماطلب" یعنې جندع نه کړی پیدا هغه شی چي ده غوښتی یعني الهجرت الی المدینة فنزلت هذه الآیة.

وَمَنْ يَخْرُجْ مِنْ بَيْتِهِ مُهَاجِرًا إِلَى اللَّهِ وَرَسُولِهِ ثُمَّ يُدْرِكْهُ الْمَوْتُ فَقَدْ وَقَعَ أَجْرُهُ عَلَى اللَّهِ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَحِيمًا

او هغه څوک چي ووځي له کور څخه خپل په داسي حال کي چي هجرت کونکی وي خدای ﷻ ته او ورسول ته د خدای پاک يعني لپاره د اعلاء د کلمة الله او د زدکړي د حديث نبوي، او بيا مرګ ناګاه پر راسي يعني قبل الوصول الى مطلوبه، نو اجر او ثواب يې پر خدای ﷻ په قرار د وعدې چره سو. او دی خدای بخښونکی د ګناه يعني که له دغه مهاجره څخه څه ځنډ په هجرت کي راغلی وي او خدای پاک مهربانه هم دی.

**پوه سه:** چي دا حديث په مختلفو طريقو سره راغلی دی چي مظهري رحمه الله متضادي طريقې تولې جمع کړي دي چي جمع د تولو هيڅ امکان نه لري، او نتيجه د صنيع د مظهري داده چي پر علماؤ او طالبانو يې شان نزول ددې آيت په درياب کي غرق کړی والله الموفق فارجع الى تفسير المظهري ليظهر لكم صدق ماقلت.

وَإِذَا ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَقْصُرُوا مِنَ الصَّلَاةِ

او چي تاسي سفر کوئ په مځکه کي.

**پوه سه:** چي قيد د ارض اتفاقي په اعتبار د اغلب دی، ورنه د سفر د درياب هم دغه حکم دی، نو نسته پر تاسي ګناه چي تاسي کم کړئ بعض له لمانځه ای الرباعية دون الثنائية والثلاثية بالاجماع.

**پوه سه:** چي جار ومجرور صفت دی د محذوف ای شيئاً من الصلوة عند سيبويه، او مفعول به لتقصروا بزيادة من عند الاخفش.

**پوه سه:** چي دا آيت تر يو ځايه پوري بيان دی د کيفيت د لمانځه په اوقاتو کي د ضرورت كالسفر ولقاء العدو والمطر والمرض.

**فائده:** مراد له سفر څخه هر سفر چي وي که د هجرت لپاره وي که د جهاد لپاره وي که د حج لپاره وي که د تجارت لپاره وي او که د سياحت لپاره وي.

**مسئله:** مده د سفر چي قصر د لمانځه پکښي روا کېږي درې ورځي او درې

شپږ دی ورځي د تګ لپاره و شپږ د استراحت لپاره په تګ د بار کړي اوښ یا پر پښو، کرار تګ ته د مسافر او چابک تګ ته دده اعتبار نشته. حتی که یو مسافر ډېر تېز رفتاره وچي د درو ورځو مسافت یې په یوه ورځ قطعه کړي او یا په موټر کې سپور وچي د درو ورځو مسافت یې مثلاً په دوه یا درې ساعته کې قطعه کړي قصر به کوي، او که یو سړی ضعیفه وچي د یوې ورځي مسافت یې په درې ورځي قطعه کړي قصر به نه کوي.

**فائده:** د درو ورځو او درو شپو مسافت شپږ بریده دی او هر برید څلور فرسخه دی او هر فرسخ درې میله دی او هر میل دولس زره ګامه دی.

**تنبیه:** ظاهر د آیت کریمه تخییر د مسافر بین القصر والاتمام، او بل پر دې چې اتمام افضل دی لانه تعالی نفي الاثم في القصر لانه بظاهره یدل علی ان الاتمام وان کان افضل لکن لا اثم في القصر.

**یوه سه:** چې پوره کول د لمانځه په سفر کې نه دی روا په تېز د امام اعظم رحمه الله بغوي رحمه الله وایي چې دا مذهب مروي دی له عمر، ابن عمر، جابر بن عبدالله او له عبدالله بن عباس رضي الله عنه څخه او دا مذهب دی د حسن بصري رحمه الله او د عمر بن عبدالعزیز او د قتاده او د مالک او امام شافعي رحمهم الله. او احمد بن حنبل رحمه الله وایي چې په پوره لمونځ کول په سفر کې روا دی. بغوي رحمه الله وایي چې ددې مذهب روایت د عثمان او د سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه سوی دی.

**یوه سه:** چې ظاهر د آیت خو دلیل دی د امام شافعي رحمه الله کمامر، او ابو حنیفه رحمه الله د یعلی بن امیه رضي الله عنه په حدیث سره دلیل وایي، دی وایي ما سوال وکړی له عمر بن خطاب رضي الله عنه څخه ددې آیت په باره کې "لیس علیکم جناح ان تقصروا من الصلوة ان خفتم ان یفتنکم الذین کفروا" او ما عمر رضي الله عنه ته وویل چې اوس خو خلګ په خوف کې نه دي، نو به اوس هم قصر روا وي او که څرنګه؟ عمر رضي الله عنه راته وویل چې ماته هم دا شک پیدا سو، نو ما د علیه الصلوة والسلام څخه پوښتنه وکړه، نو علیه الصلوة والسلام راته وویل "صدقة تصدق الله بها علیکم فاقبلوا صدقته" رواه مسلم والمعنی قصر د لمانځه په سفر کې خیرات دی د

خدای ﷻ له خوا څخه پر تاسي باندي نو تاسي قبوله کړئ صدقه د خدای ﷻ.

**درویش وایي**: چي په اصول الفقه کي وایي چي امر چي مطلق وي له قرائنو څخه لپاره د وجوب دی. نو قصر واجب دی او اتمام نه دی روا وهو مذهب ابي حنیفه رحمه الله.

**مسئله**: که یو مسافر یو ښار ته ورغلی او نیت یې دا وچي صبا یا بله ورځ به ځم. او یا یې دا نیت و چي هر وخت چي زما کار په دې ښار کي خلاص سي زه به ځم. یعني نیت د اقامت یې نه وچي پنځلس ورځي دي په نېز د حنفیانو. نو په نن او صبا کي پر مسافر میاشتي بلکي کلونه تېر سوه قصر به کوي.

**مسئله**: که له سړي څخه په کور کي لمونځ قضاء سو. او په سفر کي یې قضاء راوړل پوره به یې کوي. او که په سفر کي لمونځ ځني قضاء سوی و او په کور کي یې قضاء راوړل قصر به کوي عندنا.

## إِنْ خِفْتُمْ أَنْ يَفْتِنَكُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا

که تاسي ببرېداست چي موږ به په فتنه کي واقع کړي هغه کسان چي کفر کوي یعني یو مکروه به راورسوي یا قتل یا جرح او یا بند او یا به مو مالونه راڅخه یوسي.

**بوه سه**: چي "ان خفتم" شرط دی جزاء نه غواړي ولي چي جزاء له ماقبل څخه فهمېږي یعني "فليس عليكم جناح ان تقصروا من الصلوة" والمعنى ان خفتم الفتنة من الكفار فاقصروا من الصلوة.

**درویش وایي**: چي ظاهر د آیت خو دادی چي خوف الفتنة د جواز قصر شرط ده په ظاهر ددې آیت خوارج قول کوي. لکن اجماع د امت پر دې ده چي خوف شرط د قصر نه دی بلکي دا شرط مبني دی پر غالب. ولي چي غالب سفرونه د علیه الصلوة والسلام گمن د خوف به ډکښې و فلاحکم لهذا الشرط کما في قوله تعالی په باره کي د مینځیانو د زنا.. ولاتکرهوا فتیتکم علی البغاء ان اردن تحصناً. احادیث ټوله پر دې دلالت کوي چي قصر د صلوة په حال کي د آساني هم روا دی لکه په وړاندي حدیث کي د یعلی بن امیه له عمر رضي الله عنه چي ذکر سوه، او بل حدیث هغه دی چي شافعي رحمه الله یې روایت کړی دی له ابن عباس رضي الله عنه څخه

چې موږ سفر وکړی له رسول الله ﷺ سره په منځ کې د مکې او مدینې آمناً لایخاف الا الله یصلی رکعتین، او له حارثه بن وهب خزاعي رضي الله عنه څخه روایت دی "صلی بنا رسول الله ﷺ ونحن اکثر ما کنا قط وآمنه بمنی رکعتین" متفق علیه.

**پوه سه**: چې قصر د لمانځه مسافر لره رخصت اسقاط دی په معنی د عزیمت یعني ان الاتمام لم یبق مشروعاً حتی چې په اتمام سره دی ګناه کار دی. او که چیرې یو مسافر اتمام د لمانځه وکړی یعنې څلور رکعته یې وکړه. نو که د منځ په ناسته کې نه کښېنستی لمونځ یې فاسد دی. لترک القعدة الآخیرة. ولې چې د منځ ناسته خو د مسافر د لمانځه اخیره ناسته ده. او که په منځ کې په قدر د تشهد کښېنستی بیا ولاړ سو دوه رکعته یې نور وکړه لمونځ خو یې صحیح دی لکن ګناه کار دی ولې چې د فرضې لمانځه سلام یې وځنډاوه کذا في فتاوی الاشباه والنظائر او داغه رانګه په تفسیر حدادي کې وایي که مسافر د ماپښین لمونځ څلور رکعته وکړی او د منځ په ناسته کې په قدر د تشهد نه کښېنستی لمونځ یې فاسد دی لکه سړی چې د سهار لمونځ څلور رکعته وکړي.

**سوال**: په آیت شریف کې داسې راغلي دي "فلیس علیکم جناح ان تقصروا الخ" نو که چیرې قصر واجب دی نو د نفي د جناح څه وجه ده؟

**ځواب**: چونکه د مسلمانانو د رباعي لمانځه د اتمام سره عادت او الفت و. نو شاید د دوی په زړو کې به دا ورګرځې چې قصر به نقصان وي. نو د دوی د توهم د دفع لپاره یې "فلاجناح علیکم آه" ووایه لکه په سعې کې صفا او مروه چې خدای پاک وایي "فمن حج البیت او اعتمر فلاجناح علیه ان یطوف بهما" او سره ددې چې سعې بین الصفاء والمروة واجبه ده عندنا او رکن په نېز د امام شافعي رحمه الله نو په هغه آیت کې نفې د "جناح" لپاره د دفع د توهم د مسلمانانو خدای پاک وویل په دې معنا چې پر صفا او مروه باندې د جاهلیت په زمانه کې دوه بتان وه چې اهل جاهلیت به هغه مسح کول او سعې به یې کوله. نو وروسته تر اسلام که څه هم هغه بتان له منځه ولاړه لکن شاید بعض مسلمانان به دا توهم وکړي چې سعې خو صنیع د جاهلیت وه. نو شاید په اسلام کې به دا فعل یعنې سعې ګناه

وي لکه کافرانو او مشرکانو چي به ویل چي ظاهراً خو مسلمانانو بتان لېږي کړه لکن اوس هم د هغو بتانو پر ځایو طواف کوي.

**مسئله:** عاصي (گناه کار) په سفر کي لکه قاطع الطریق او مطیع لکه مسافر د حج او عمرې مثلاً په رخصت کي د قصر د لمانځه سره برابر دي. ولي چي نفس سفر خو معصیت نه دی. والمعصیة في قصد العاصي فلا اعتبار له کالمسافر المطیع یمسح علی الخفین ثلاثة ایام ولیالیها فکذا العاصي بالسفر یمسح علی الخفین بمقدار مسح المطیع. هذا هو البیان الکافي في قصر الصلوٰة للمسافر علی مذهب ابی حنیفة واصحابه رحمهم الله تعالی.

إِنَّ الْكٰفِرِيْنَ كَانُوْا لَكُمْ عَدُوًّا مُّبِيْنًا ۝

په تحقیق سره کافران ستاسي ښکاره دښمنان دي.

شان نزول: پوه سه چي احمد، حاکم او بیهقي له ابي عیاش څخه روایت کړی دی چي موږ د علیه الصلوٰة والسلام سره ملګري وو په عسفان کي. نو د بلي خوا د مشرکینو لښکر په مشري د خالد بن ولید په مخه راغلی په دغه وخت کي خالد بن ولید مسلمان سوی نه و، او دوی زموږ و مخ ته د قبلې وخوا ته وه. نو علیه الصلوٰة والسلام په مجموعي ډول د ماپښین لمونځ موږ ته په جماعت راکړی، نو کافرانو سره وویل چي په لمانځه کي ډېره ښه موقع وه کاشکي موږ نابېره حمله پر کړې وای. بیا دوی سره وویل چي دا موقع که تېره سوه، وروسته مسلمانان بل لمونځ لري یعني د مازدیگر لمونځ چي هغه لمونځ مسلمانانو ته محبوب دی تر زامنو او ځانو. نو په هغه لمانځه کي به حمله پر وکړو، نو جبرائیل علیه السلام دا آیت و علیه الصلوٰة والسلام ته راوړی "واذا کنت فیهم" نو چي وخت د مازدیگر د لمانځه راغلی، نو علیه الصلوٰة والسلام اصحاب امر کړه چي سلاح د ځانو سره واخلئ. نو موږ د علیه الصلوٰة والسلام تر شا دوه صفه سوو علیه الصلوٰة والسلام چي له قرائت څخه فارغه سو رکوع ته ولاړی موږ دواړو صفو رکوع ورسره وکړه بیا یې سر مبارک له سجدې څخه پورته کړی موږ

هم سرونه پوره کړه، بیا علیه الصلوة والسلام او دده سره نژدې صف سجدې ته ولاړه او د شا صف ولاړ و یعنې سجدې ته نه ورسره ولاړی بلکې حراست او پهره یې کول چې دښمن حمله ونه کړي چې علیه الصلوة والسلام سره د اول صف له سجدې څخه فارغه سو او ولاړ سو، دوهم صف والا کښېنستل ځای پر ځای یې سجده وکړه وروسته دا دوه صفه شا ومخ سوه یعنې د شا صف د اول صف ځای ته ورغلی او اول صف د شا د صف ځای ته راغلی بیا دا بل رکعت چې تمام سو علیه الصلوة والسلام رکوع ته ولاړی موږ هم دواړه صفه رکوع ته ورسره ولاړو، بیا چې یې سر له رکوع څخه راپورته کړی موږ تولو سرونه راپورته کړه بیا چې علیه الصلوة والسلام سجدې ته ولاړی اول صف چې په دمخه رکعت کې دوهم صف وه وسجدې ته ورسره ولاړه او دوهم رکعت حراست کاوه وروسته دوهم صف ځای پر ځای کښېنستی او سجده یې وکړه، وروسته علیه الصلوة والسلام سلام وګرځاوه موږ هم سلام وګرځاوه فتم صلوة السفر بهذه الطریق.

**يوه سه:** چې علیه الصلوة والسلام دوه واره صلوة خوف کړی دی یو وار په عسفان کې او دوهم وار په غزاء کې د بني سلم.

**فائده:** مسلم د صلوة خوف دا مذکوره دوول بیان کړی دی په روایت د جابر ﷺ.

وَإِذَا كُنتَ فِيهِمْ

او چې ته حاضر یې یا محمد ﷺ په مسلمانانو کې.

**يوه سه:** چې دا قید ورسره مراد دی "وانتم تخافون العدو" او تاسې له دښمن څخه بېربږئ، ولې چې د امت اجماع پر دې ده چې د صلوة الخوف لپاره د دښمن بېره شرط ده.

**مسئله:** امام ابو یوسف رحمه الله وایي چې صلوة خوف مختص په علیه الصلوة والسلام پوري دی نورو ائمه وو ته د مسلمانانو نه دی روا بدلیل قوله تعالی "واذا كنت فيهم" او نور عامه علماء وایي چې صلوة خوف وروسته تر علیه الصلوة والسلام هم مشروع دی. په روح البیان کې وایي چې جمهور د علماؤ پر دې دي چې صلوة الخوف ثابت او مشروع وروسته تر علیه الصلوة والسلام هم دی په حق کې د تولو امت صرف علیه الصلوة والسلام ته خدای پاک کیفیت د صلوة الخوف

وروبنو تاچي امت اقتدا. پسي وكړي. او علامه زمخشري رحمه الله په كشاف كي وايي چي امامان: د امت محمدي تابعان د عليه الصلوة والسلام دي په هر عصر كي او دوی به هم هغه كار كوي چي عليه الصلوة والسلام كاوه فكان صلوة الخوف له شامل لكل امام امة يعرض لهم الخوف من العدو ان يوم الناس كما ام رسول الله ﷺ" او خطاب دد ي چي وانت فيهم چي په صلوة الخوف كي حضور د عليه الصلوة والسلام شرط نه دی. لان كثيراً من الخطابات القرآنية مخصوصة به ﷺ مع ان المراد هو وامته قال الله تعالى "خذ من اموالهم صدقة تطهرهم" نو له دي ځخه خو دا معلومېږي چي اخذ د صدقي مخصوص په عليه الصلوة والسلام پوري دی فكذا صلوة الخوف وقال الله تعالى اقم الصلوة لدلوك الشمس ﷺ" وامثال هذه كثيرة في القرآن. والدليل عموم الخطاب چي صحابه كرامو رضي الله عنهم صلوة خوف وروسته تر عليه الصلوة والسلام كړې دي من غير انكار من احد منهم فكان اجماعاً. ابو داؤد روايت كړی دی چي صحابه كرامو رضي الله عنهم د عبدالرحمن بن سمره په مشري د كابل په غزاء كي صلوة خوف وكړي. او د امام المؤمنين علي رضي الله عنه ځخه روايت دی چي ده صلوة الخوف د صفين په جنگ كي وكړی.

**درويش وايي:** چي له نورو صحابه وو رضي الله عنهم ځخه هم صلوة خوف مروي دی ان شئت فطالع كتب السير والمغازي ارشدك الله تعالى.

**فَأَقَمْتَ لَهُمُ الصَّلَوٰةَ فَلْتَقُمْ طَآئِفَةٌ مِّنْهُم مَّعَكَ**

او تا ودوی ته لمونځ وركاوه. نو يوه ډله د مسلمانانو دي له تاسره پر لمانځه ودرېږي يعني لښكر دوې برخې كړه يوه برخه دي له تاسره پر لمانځه ودرېږي يعني په جماعت كي، نو ته هغه ته لمونځ وركړه.

**وَلْيَأْخُذُوٓا۟ أَسْلِحَتَهُمْ**

او دغه ډله چي ستاسره پر لمانځه ودرېږي خپله سلاح به ورسره دي.

**يوه سه:** چي امام مالك رحمه الله وايي چي حمل د سلاح په لمانځه كي د خوف پر لمونځ كونكو واجب دی، او نور علماء وايي چي دا امر د وجوب نه دی بلكي داستحباب دی.

فَاِذَا سَجَدُوْا فَلْيَكُوْنُوْا مِنْ وَّرَآئِكُمْ

نو دغه ډله چې يو ركعت لمونځ ستاسره وكړي نو دغه ډله دې مخامخ ودښمن ته ودرېږي.

**پوه سه:** چې مراد له سجدې څخه يو ركعت لمونځ دی.

وَلْتَاْتِ طَآئِفَةٌ اُخْرٰى لَمْ يُصَلُّوْا فَلْيُصَلُّوْا مَعَكَ وَلْيَاْخُذُوْا حِذْرَهُمْ وَاَسْلِحَتَهُمْ

او راد‌ې سي هغه ډله چې لمونځ يې نه وكړی، نو هغه دې لمونځ وكړي ستاسره يعنې دوهم ركعت، او دغه ډله دې له ځانه سره ولري حذر.

**پوه سه:** چې صلوة خوف د عليه الصلوة والسلام پر څو ډوله منقول دی حتی چې حافظ ابن حجر عسقلاني رحمه الله وايي چې صلوة خوف د عليه الصلوة والسلام څخه پر څورلس وجهي منقول دی چې ابن حزم اندلسي رحمه الله دغه ټوله اقسام په مستقله رساله كې ذكر كړي دي چې بعض د هغو په صحيح مسلم كې مذكور دي او اكثره حصه د هغو په ابو داوٌد كې ذكر سوې ده، او حاكم په مستدرک كې اته قسمه راوړي دی، او ابن حبان رحمه الله نهه قسمه ذكر كړي دی.
او بل قسم په روايت د بخاري او مسلم له جابر بن عبد الله رضي الله عنه څخه په دې ډول راغلی دی، دی وايي چې موږ د عليه الصلوة والسلام سره وو په غزوة ذات الرقاع كې، نو عليه الصلوة والسلام يوې ډلې ته دوه ركعته لمونځ وركړی بيا هغه تر شا سوه، بيا يې بلې ډلې ته هم دوه ركعته لمونځ وركړی، نو د عليه الصلوة والسلام لمونځ څلور ركعته سو او د دواړو ډلو دا دوه دوه ركعته سوه متفق عليه، په دې كې دوه احتماله سته چې څلور ركعته دي عليه الصلوة والسلام په يوه سلام سره كړي وي او يا دې په دوه سلامه سره كړي وي لكه صراحةً چې په حديث كې د جابر رضي الله عنه راغلي دي "صلى نبي ﷺ صلوة الخوف ببطن نخل فصلى بطائفة ركعتين ثم سلم" بيا دوهم ډله راغله هغو ته يې هم دوه ركعته لمونځ وركړی او بيا يې سلام وګرځاوه.

**درويش وايي:** چې په دې كيفيت كې دا اشكال سته چې عليه الصلوة والسلام خو په ذات الرقاع كې يقيناً مسافر و، نو څلور ركعته يا په يوه سلام يا په دوه

سلامه يې څرنګه کوله؟

**ځواب:** په يوه سلام څلور رکعته بناء پر دي که څه هم په اتمام د صلوة مسافر لره اختلاف د مذاهبو سته چي بعض وايي روا دی بلکې عزيمت دی کما ذهب اليه الشافعية. او بعض علماء وايي چي اتمام د لمانځه مسافر ته نه دی روا کما هو مذهب الحنيفية. لکن دا اختلاف مخصوص په امت پوري دی او جواز د اتمام د لمانځه په سفر کې پر مذهب د حنيفيانو له خواصو څخه د عليه الصلوة والسلام وه. واما على مذهب الشافعية فلا اشکال فيه. او په دوه سلامه لمونځ کول يا بناء دی پر ما روی انه کان في ابتداء يجوز اداء الصلوة الواحدة مرتين او يا عليه الصلوة والسلام په يوه کې د دوو رکعتو مفترض و او په نورو رکعتو کې متنفل و. او اقتداء د مفترض په متنفل پسې که څه هم اختلاف پکښې سته لکن جواز يې له خواصو څخه د عليه الصلوة والسلام و بالاجماع هذا ما عندي في حل هذا الاشکال والله اعلم بحقيقة الحال.

**مسئله:** روا دی صلوة الخوف په وطن کې يعنې بېله سفره عند خوف العدو وان کان نادراً. عند الجمهور خلافاً لمالک رحمه الله. نو په رباعي لمونځو کې يې هرې ډلې ته دوه رکعته لمونځ امام ورکوي او دوه رکعته به يوازې کوي او د ماښام په لمانځه کې به اولې ډلې ته دوه رکعته لمونځ امام ورکوي. او دوهمې ډلې ته به يو رکعت ورکوي، او بل کيفيت يې بخاري او مسلم راوړی دی چې نبي ﷺ اول رکعت لمونځ ورکړی ويوې ډلې ته د غازيانو. او هغه بله ډله د دښمن مخ ته ولاړه وه چي رکعت عليه الصلوة والسلام پوره کړی داغسې ولاړ و او هغې ډلې هغه يو رکعت يوازې وکړی. بيا دا ډله ولاړه او د دښمن و مخته صف شوه او هغه بله ډله راغله. نو عليه الصلوة والسلام وهغو باقي يو رکعت ته جماعت بيا عليه الصلوة والسلام پر هيئت د تشهد ناست و چي هغو هم خپل لمونځ پوره کړی، نو بيا عليه الصلوة والسلام په دواړو ډلو سره سلام وګرځاوه، او بل کيفيت يې دا دی چې بخاري په خپل کتاب صحيح کې د سالم بن عمر رضي الله عنه او هغه د خپل پلار عمر رضي الله عنه څخه روايت کړی دی چې موږ وغزاء ته ولاړو وطرف ته د نجد او د دښمنه سره

مخامخ سوو. نو علیه الصلوة والسلام مونږ ته داسي لمونځ راکړی چي یو ډله د علیه الصلوة والسلام سره پر لمانځه ودریدله او یوه ډله د دښمن و مخ ته ولاړه وه. نو علیه الصلوة والسلام رکوع وکړه او دوې سجدې یې وکړې او دې ډلي هم ورسره وکړې بیا دا ډله ولاړه د دښمن ومخته ودریدله او هغه ډله چي لمونځ یې د علیه الصلوة والسلام سره نه و کړی راغله علیه الصلوة والسلام دې ډلي ته باقي رکعت په رکوع او دوو سجدو سره ورکړی وروسته یو وار یوې ډلي خپل پاته رکعت پوره کړی او بیا بلي ډلي خپل پاته رکعت پوره کړی.

**فائده:** امام اعظم ابو حنیفه رحمه الله په اقسامو کي د صلوة خوف دا وجه مختاره کړې ده تر نورو "وغلط من قال ولم یجوز سواه" لکن امام اعظم رحمه الله وایي چي دوهمه ډله دي وروسته تر سلام د امام ولاړه سي د دښمن ومخ ته او اوله ډله دي راسي خپل لمونځ دي پوره کړي او بیا دي دوهمه ډله راسي او خپل لمونځ دي پوره کړي او سلام دي وګرځوي.

**فائده:** قال الشافعي و احمد و مالک رحمهم الله تعالی چي ټوله هیئات د صلوة خوف چي له علیه الصلوة والسلام څخه مروي دي ټوله مقبول او معتمد بها دي انما الخلاف في ترجیح بعض الکیفیات علی بعض.

**وَدَّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْ تَغْفُلُونَ عَنْ أَسْلِحَتِكُمْ وَأَمْتِعَتِكُمْ فَيَمِيلُونَ عَلَيْكُم مَّيْلَةً وَاحِدَةً**

**پوه سه:** چي دا آیت بیان دي د سبب او علت دی د ماقبل آیت اعني قوله تعالی "ولیاخذوهم آه" ددې آیت معنا داده چي تمنی لري هغه کسان چي کفر کوي یعنې کافران د جنګ. که تاسي غافله سئ له خپلو سلاوو څخه او له هغو شیانو څخه چي تاسي له هغو څخه فائده اخلئ یعنې په جنګ کي نه مطلق متاع، نو به دوی حمله وکړئ پر تاسي یوه حمله یعنې اجتماعي حمله به درباندي وکړي.

**فائده:** جمله د "فیمیلون" عطف ده پر "تغفلون" باندې او کلمه د "لو" لپاره د تمنی ده او جمله بیان ده د ودی. او دا هم روا ده چي کلمه د "لو" دي په معنا د ان مصدري وي او جمله دي په محل کي د نصب وي د "ود" مفعول به دي وي.

**درویش وایي:** چې کلبي رحمه الله له ابن عباس رضي الله عنه څخه په شان نزول کې ددې آیت داسې وايي چې رسول الله ﷺ د بني انمار او د قوم د محارب غزاله روان و چې د غرمې او ګرمۍ وخت پر راغلی او هیڅ څوک له دښمنانو څخه نه معلومېدل. نو مسلمانانو سلاح له ځانه جلا کړه او د آرام کولو په نیت هر یوه د یوې درختي لاندې ځای ونیوی او علیه الصلوٰة والسلام د قاضا حاجت لپاره ولاړی او توره یې د یوې درختي لاندې وځړول او لږ لږ باران هم شروع و. نو د علیه الصلوٰة والسلام او د صحابه کرامو رضي الله عنهم تر منځ شپله حائل وګرځېدل. نو علیه الصلوٰة والسلام په سایه کې د هغې درختي چې ده توره پورې ځړولې وه آرام کاوه چې غویرث بن حارث محاربي علیه الصلوٰة والسلام ولیدی چې یکې تنها تر درختي لاندې پروت دی، نو یې په غره کې خپلو ملګرو ته وویل چې ما دې خدای مړ کړي که ما نن محمد مړ نه کړی. نو توره ورسره ده او له غره څخه راکښته سو توره یې له تېکي څخه کښلې ده، چې را ورسېدی علیه الصلوٰة والسلام ته یې دا لفظ ووایه "من یعصمک مني الآن" څوک به دې زما څخه خلاص کړي اوس؟ یعنې چې هیڅ مددګار نسته درسره. علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل "الله" یعنې خدای جل جلاله به مې درڅخه خلاص کړي بیا علیه الصلوٰة والسلام دا دعاء وکړه "اللهم اکفني غویرث بن الحارث بماشئت" نو غویرث چې سر کښته کړی چې علیه الصلوٰة والسلام په توره ووهي نابېره یې په ملا او اوږو کې داسې تینګ درد پیدا سو چې توره یې له لاس څخه ولوېده. نو علیه الصلوٰة والسلام د غویرث توره را واخسته او غویرث ته یې وویل "من یمنعک مني الآن؟" غویرث ورته وویل "لا احد" نو علیه الصلوٰة والسلام و غویرث ته داسې وویل "اتشهد ان لا اله الا الله وان محمداً عبده ورسوله واعطیک سیفک. قال لا ولکن اشهد ان لا آقا تلک لکن" زه به دې شاهدي اداء کوم چې جنګ نه درسره کوم ابداً ولا اعین علیک عدواً فاعطاه رسول الله ﷺ سیفه. فقال غویرث والله لانت خیر مني قال النبي ﷺ اجل انا احق بذالک. نو غویرث چې خپلو اندیوالانو ته ورسېدی نو له ماجری یې ورته وویل. فنزل الآیة المذکورة وهذه الآیة.

وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِن كَانَ بِكُمْ أَذًى مِّن مَّطَرٍ أَوْ كُنتُم مَّرْضَىٰ أَن تَضَعُوا أَسْلِحَتَكُمْ

او نشته پر تاسي ګناه که چېرې پر تاسي حمل د سلاح تکلیف وه، چې دا اذی یا باران د چې سلاح یې درلندوله. او یا تاسي مریضان واست چې د سلاح د حمل توان مو نه درلودی په دې کي چې تاسي سلاح کښېږدئ.

**درویش وايي:** چي مظهري ﷫ وايي چي په دې آيت کي چي خدای ﷻ وضع د سلاح په عذر سره د باران یا د مرض مربوطه کړه، نو دا معلومه سوه چي امریه اخذ د سلاح په وخت کي د صلوة خوف چي په دمخه آيت کي راغلی و لپاره د وجوب دی کما قال مالک والشافعي دون الاستحباب لکن مظهري د استحباب قائل نوم نه کړی ذکر. لکن صاحب د روح البيان الحنيفي حقاً وايي چي فقهاء. يعني د مذهب حنيفي وايي چي حمل د سلاح په صلوة الخوف کي واجب نه دی لانه ليس من اعمال الصلوة والامر في قوله تعالى "وليأخذوا حذرهم واسلحتهم" لپاره د وجوب نه دی بلکي لپاره د ندب دی.

**پوه سه:** چي مظهري لفظ د "لاجناح" خطاء ایستلی دی دده خيال دادی چي د جناح معنی کبیره ګناه ده او کبیره ګناه خو په ترک کي د واجب وي. نو معلومه سوه چي اخذ السلاح او حذر په دې آيت کي هم دا اوس تېر سو واجب و مندوب نه و.

**درویش وايي:** چي د "جناح" لفظ نه لغةً نه عرفاً او نه شرعاً په ګناه کبیره پوري خاص دی. نو ترک د مندوب شرعي هم في الجملة جناح ده ولو صغيرة. نو ددې اوسني آيت معنی داده چي اخذ د حذر او سلاح په صلوة الخوف کښه څه هم مندوب ده چي تارک یې بلا عذر مرتکب د صغیرې ګناه دی لکن ترک الاخذ مع عذر المطر او المرض ليس فيه جناح اصلاً. هذا تحقيق الحنيفي بالحق محمد عبيد الله الايوبي. وهذا هو الوجه في تسمية الفقير تفسيره بالتفسير الايوبي الحنيفي والله اعلم بالصواب.

وَخُذُوا حِذْرَكُمْ ۗ إِنَّ اللَّهَ أَعَدَّ لِلْكَافِرِينَ عَذَابًا مُّهِينًا ﴿١٠٢﴾

او تاسي احتیاط باید واخلئ په تحقيق خدای ﷻ ارامته کړی دی عذاب سپکاوي ورکولو، چي په دې دنیا یا قتل دی یا بندي کول دي او په قیامت کي دوږخ دی.

**پوه سه**: چې په دې آیت کې وعده د خدای ﷻ له خوا ومسلمانانو ته په کومک سره پر کافرانو باندې پس له دې چې دوی امر کړه په حذر سره. دا وعده د کومک په قوي کړې ددوی زړونه او دوی به وپوهېږي چې امر په حذر سره له کفارو څخه په سبب د ضعف ددوی د زړونو دی او نه په دې سبب چې دښمن خامخا پر دوی غالب دی. بلکې په سبب ددې چې دنیا دار الاسباب ده باید اسباب سره صرف نظر نه کړې بلکې وروسته تر تهيې د اسبابو عادیه وو او د بیدارۍ په کار کې د جنګ توکل علی الله وکړې لانه تعالی ناصر عباده في الحقیقة.

ع...... کشت کن پس تکیه بر جبار کن

## فَإِذَا قَضَيْتُمُ الصَّلٰوةَ

چې تاسې اداء کړئ صلوة خوف یعنې څنې فارغه سواست.

**پوه سه**: چې قضا دلته په معنا متارفه سره نه ده بلکې په معنا د آداء ده.

## فَاذْكُرُوا اللّٰهَ قِيَامًا وَّقُعُوْدًا وَّعَلٰى جُنُوْبِكُمْ

نو تاسې ذکر کوئ د خدای ﷻ حال کونکم قیاماً یعنې چې ولاړ یاست جمع د قائم. وحال کونکم قعوداً چې ناست یاست جمع د قاعد ده. او تاسې پر اړخو پراته یاست.

**پوه سه**: چې مراد له ذکر څخه تسبیح ده یعنې "سبحان الله" او تحمید دی یعنې "الحمدلله" او تهلیل دی یعنې "لا اله الا الله" او تکبیر دی یعنې "الله اکبر" وغیر ذالک من انواع الاذکار والمقصود استغراق جمیع الاحوال بالاذکار.

**پوه سه**: چې تسبیح او تهلیل او تکبیر وغیرها لایختص بحال دون حال یعنې یجوز تلک الاذکار في حال الجنابة والحدث ایضاً ما عدی القرآن فانه لایجوز قرائته في حال الجنابة ویجوز قرائته في حال الحدث عن حفظ بدون مس فانه لایجوز مس المصحف للمحدث.

**پوه سه**: چې مقصود په دې آیت کې مبالغه ده په ذکر کې د خدای یعنې ذکر د خدای د پر کوئ مظهرې چونکه په دقیقه نه دی خبر چې مقصود مبالغه ده. نو له

دي سببه چي مراد په آیت کي دوام الحضور دی، ولي چي دوام د ذکر د ژبي څو ممکن نه دی.

**درویش وایي**: چي دوام الحضور والمراقبة خو یېله اولیاء الله المستغرقین في محبته تعالی ممکن نه دی تولو خلګو ته او مخاطب په آیت سره څو یوازي مستغرقین دي. او هغه حدیث چي ابو داؤد روایت کړی دی له عائشي ﷞ څخه چي کان رسول الله ﷺ یذکر الله علی کل احیانه" مراد یې دادی چي ذکر د خدای مخصوص په حال دون حال سره نه دی. او مظهري د هغه حدیث تفسیر په حضور قلبي سره کړی دی والله اعلم بمراده تعالی في الآیة ومراد حدیث عائشه ﷞. او بعض محدثان وایي چي مراد په آیت کي دادی چي تاسي چي له صلوة الخوف څخه پر هیئت مذکوره فارغه سئ بیا ذکر د خدای ﷻ یعني لمونځونه کوئ قیاماً په حال کي د صحت وقعوداً او علی جنوبکم بحسب الطاقة في حالة المرض یا جراحة یا ضعف. والمقصود ان الصلوة من اعظم ارکان الاسلام فلا یجوز ترکها بل یجب ادائها حسب الطاقة من الاحوال الثلثة.

**فَإِذَا اطْمَأْنَنتُمْ فَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ**

چي هغه وخت چي ستاسي زړونه مطمئن سوه یعني خوف زائل سو، بیا تاسي اداء کوئ لمونځونه سره د تولو ارکانو او شرائطو یعني داسي لمونځ نو بیا نه دی روا لکه په وخت کي د خوف چي مو اداء کاوه.

**إِنَّ الصَّلَاةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ كِتَابًا مَّوْقُوتًا**

په تحقیق لمونځ چي دی مکتوب او مفروض دی نو "کتاباً" چي مصدر دی په معنی د مکتوب دی، او د مکتوب معنی مفروض ده باتفاق المفسرین او لمونځ موقوت دی په خپلو وختو پوري چي نه قبل الوقت یې اداء روا ده او نه یې بعد الوقت اداء روا ده، البته قضاء یې روا ده.

**درویش وایي**: چي دا آیت په تفصیل کي د اوقاتو د لمونځو مجمل دی تفصیل د اول وخت د هر لمانځه او د اخیر وخت په احادیث شریفه وو کي مذکور دي او اصل منبع ددي اوقاتو د لمونځو د اول او د اخیر هغه حدیث صحیح د

بخاري د مسلم وغیرهما دی چي پر علیه الصلوة والسلام باندي په شپه د معراج پنځه لمانځه خدای ﷻ فرض کړه. نو بیا جبرائیل ؑ دوی ورځي او شپې علیه الصلوة والسلام ته په مکه مکرمه کي د دوو ورځو لمونځو په جماعت ورکړه او اول او اخیر د لمونځو یې وروښو. لکن بیا هم د امامانو په اول او اخیر کي د بعضو لمونځو اختلاف سته چي ځای د بیان یې کتابونه د فقهي شریفي دي لکن دا څو مسئلې اجماعي دي، یعنې چي اول وخت د سهار دلمانځه طلوع د صبح صادق دی لکن بعض امامان په غلس کي یې اداء. د سهار د لمانځه مستحب بولي. او امام اعظم رحمه الله اسفار مندوب بولي. او فقیه ابو جعفر طحاوي رحمه الله لپاره د جمع د حدیث د اسفار او تغلیس دا مختاره کړې ده چي شروع دی د سهار د لمانځه په غلس کي کوي او اتمام دی په اسفار کي.

او اول د لمانځه د ماپښین اجماعاً وروسته تر زوال د لمر دی لکن اخیر وخت یې پر مرور د یک څندي سایه پیله سایه د زوال ختم کېږي او په نېز د امام اعظم رحمه الله پر دوه چندي ختم کېږي، نو احتیاط د ماپښین په لمانځه کي دادی چي دمخه تر مرور د یک چندي سرې لمونځ کوي تاچي د مذاهبو له اختلافه ووځي.

او د ماز دیگر د لمانځه اول مرور د یک چندي دی په نېز د بعض ائمه وو، او په نېز د امام اعظم رحمه الله وروسته تر مرور د دوه چندي دی. نو احتیاطاً او لپاره د مراعات د مذاهبو باید سړی د ماز دیگر لمونځ وروسته تر رسېدلو د دوه چندي اداء کړي، او ځنډول د ماز دیگر د لمانځه تر اصفراره پوري د لمر مکروه تحریمي دی.

او اول وخت د ماښام د لمانځه غروب الشمس دی او اخیر وخت یې قبل غروب الشفق ای الاحمر اوالابیض علی اختلاف المذاهب. نو احتیاط دادی چي د ماښام لمونځ په شفق احمر کي سړی اداء کړي.

او اول د ماخستن د لمانځه وروسته تر غروب د شفق دی لکن احتیاط دادی چي وروسته تر شفق ابیض یې سړی وکړي تاچه له اختلاف څخه ووځي، او ځنډول د ماخستن د لمانځه تر ثلث اللیل پوري مندوب دی الا عند تقلیل الجماعة او تر نصف اللیل وروسته پوري ځنډول مکروه دی، د درویش خپله شخصي رایه داده چي

په وخت کې د حج یا د عمرة الرمضان مراعات د جماعات عظمی د حرمین شریفینو دي سړي کوي لغایة اجماع الناس في هذين الوقتين في الحرمين الشريفين.

**فائده**: په شرح کې د حکم عطائیه وایي چې خدای ﷻ ته د بندګانو حرص او ملال معلوم و. نو ځکه یې طاعات لږ او متفرق پر دوی فرض کړه. لکه په شبانه روز کې پنځه لمونځونه او د هر لمانځه وخت یې تر فرضي لمانځه ورزیات کړی تاچه که په اختیار چا بعض نوافل لمونځونه کول وبه یې کړي. او په کال کې یې یو وار روژه پر فرض کړه. او په دوه سوه روپیو کې یې زائد عن الحاجة اصلي او کال هم پر تېر سي پنځه روپۍ زکوة یې پر فرض کړی.

**فائده**: په صحیح حدیث نبوي ﷺ کې راغلي دي چې پینځه قسمه خلګ دي چې ددوی اور نه مري. او نه مري چینجان ددوی ولا يخفف عنهم من عذابهم.

اول مشرک بالله دی. دوهم عاق د والدینو دی. دریم د همسایه د مایني سره زنا کول دي. څلورم هغه جاسوس دی چې سلطان جائر ته د خپل ورور جاسوسي کوي. او پینځم هغه څوک دی چې اذان واوري او جماعت ته نه سي ور من غير عذر.

**پوه سه**: چې بغوي رحمه الله وایي چې په جنګ کې د احد چې مشري یې د ابو سفیان پر غاړه وه. اوویا مسلمانان پکښې شهیدان سوه او ډېر مسلمانان زخمیان سول حتی چې رسول الله ﷺ هم پکښې زخمي سو. نو ابو سفیان د مکې پر خوا یو څو میله ولاړی بیرته یې اراده د رجوع وکړه مدینې ته چې د مسلمانانو استیصال وکړی حتی علیه الصلوة والسلام هم شهید کړي. نو جبرائیل علیه السلام و علیه الصلوة والسلام ته راغلی او د ابو سفیان د رجوع حال یې راوړی او دا یې وویل چې تاسې مخ ته ور ووځئ. علیه الصلوة والسلام چې دا خبره مسلمانانو ته واوروله هغو د خپلو ټپو د دردو ذکر ورته وکړی. یعنې په دې تازه دردناکه ټپو کې موږ څرنګه بیرته جنګ ته ولاړ سو. نو دا آیت نازل سو.

وَلَا تَهِنُوا۟ فِى ٱبْتِغَآءِ ٱلْقَوْمِ ۖ

تاسې مه ضعیفه کېږئ ای مسلمانانو که څه هم که څه هم په الم د جراحاتو مبتلی یاست. په طلب کې د جنګ د قوم یعنې ابو سفیان او دده د فوج چې رجوع یې وکړه.

إِن تَكُونُوا تَأْلَمُونَ فَإِنَّهُمْ يَأْلَمُونَ كَمَا تَأْلَمُونَ

که تاسي ته الم د جراحاتو د احد د رسره دی، نو کفار خو هم الم د جراحاتو لري لکه تاسي چي الم د جراحاتو لرئ، ولي چي د ابو سفيان په لښکر کي هم بعض نفر ټپيان وه.

وَتَرْجُونَ مِنَ اللَّهِ مَا لَا يَرْجُونَ وَكَانَ اللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴿١٠٤﴾

او تاسي اميد لرئ وخدای ﷻ ته په اخرت کي د ثواب او د جنت چي کافران هغه اميد نه لري، ولي چي دوی بعث بعد الموت نه مني، او دی خدای ﷻ بنه خبر په حال ستاسي او د کافرانو بلکي د هرشي في السماء والارض. او خدای ﷻ حکمت لري په ټولو اوامرو کي او په منهياتو کي. لکن ابو سفيان ته وروسته تر اراده د رجوع خدای پاک په زړه کي ببره ورواچول او ملګرو ته يي وويل چي اوس د مسلمانانو دغه مړي او ټپونه بس دي بيا به يې بله پلا ګورو.

إِنَّا أَنزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ

په تحقيق موږ پر تا باندي نازل کړی اې محمد ﷺ کتاب چي قرآن کريم دی.

درويش وايي: چي دې آيت په شان نزول کي داسي متضاد قولونه بعضو مفسرينو راوړي دي چي هيڅ جمع يې نه ده ممکنه يعني چي دا آيت دي دې ټولو په شان کي نازل سوی وي، او صاحب د روح البيان الشيخ اسماعيل حقي چي وفات يې په سنه ١١٢٧هـ سوی دی وايي چي يو سړی و له انصارو څخه چي طعمه بن ابيرق يې نوم و د بني ظفر له قوم څخه و، يوه زغره يې د خپل همسايه قتاده بن نعمان څخه غلا کړه چي هغه زغره په بوجۍ کي د اوړو وه، او د بوجۍ بيخ سوری و طعمه بوجۍ په شا کړه، نو اوړه تر هغه سوري ليکه په پسي وه او د زيد بن السمين يهودي کورته يې ورووړه چي دا خوندي کړه، نو د قتاده شک هم پر طعمه راتلی چي طعمه دي غلا کړې وي، ولي طعمه قديم د جاهليت د وخت غل و، طعمه چي يې ټينګ کړی او د کور تلاشي يې وکړه خو زغره له ده سره نه سوه پيدا او په خپله طعمه هم قسم ورته واخستی يعني والله بالله ماسرقتها ومالـه بها علم، نو قتاده بن نعمان او خپلوانو يې طعمه خوشي کړی، نو يې د وړو پل پسي واخستی،

نو د یهودي زید کورته د وروېل ورغلی، نو یهودي یې تینګ کړی، نو یهودي ورته وویل چي دا بوجۍ چي زغره هم پکښې وه ماته طعمه بن ابیرق راوړه چي دا راخوندي کړه او نورو د پرو یهودانو هم پر دغه شاهدي ورکړه چي دغه بوجۍ موږ ولیدل چي طعمه زید بن السمین ته ورکړه، نو د طعمه قوم چي بني ظفر وه د شپې سره ټول سول چي در ځئ چي رسول الله ﷺ ته ورسو چي دا غلا له طعمه څخه واړوي چي زموږ د ټوله قوم رنګ په بدېږي او پر یهودي یې تپه کړي، نو هغه وچي علیه الصلوة والسلام وویل چي یهودي ته دي عذاب د قطع الید ورکړه سي په سبب د قوم د طعمه علی برائته من السرقة وعلی ان الیهودي هو السارق، او چونکه علیه الصلوة والسلام د جرح ځای په شاهدي کي ددوی نه ولیدی، ولې چي شاهدان او مشهود له دواړه ظاهراً مسلمانان وه، مګر علیه الصلوة والسلام په دې باب کي توقف وکړی د وحي په انتظار فنزلت هذه الآیات، او دې آیاتو علیه الصلوة والسلام ته دا ثابته کړه چي طعمه او قوم دده ټوله کاذبان دي او یهودي له غلا څخه بري دی، او روح البیان دا روایت هم کړی دی چي طعمه چي خبر سو وتښتېدی مکې مکرمې ته او مرتد سو، او په مکه کي یې د شپې د خواد یو چا د کور دېوال سوری کاوه چي د کور سامان غلا کړي نو دېوال پر راونړېدی او تر دېوال لاندې مړ سو. ولهذا قیل اذا عثرت رجلاً علی سیئة فاعلم ان لها اخوات.

له امیر المؤمنین عمر رضی الله عنه څخه روایت دی چي یو سړی غلا کړې وه او ماته راغلی، نو ما د قطع الید حکم پر وکړی، نو د هغه مور راغله او ژړل یې او عمر رضی الله عنه ته یې ویل چي زما د زوی دا اوله غلا ده عفوه ورته وکړه. عمر رضی الله عنه ورته وویل چي دروغ وایې په اوله ګناه خدای ﷻ څوک نه رسوا کوي.

**درویش وایي:** چي صاحب د روح المعاني السید الوسي علامة بغداد رحمه الله چي په سنه ١٢٧٠ ه کي وفات سوی دی هغه دوه قسمه مخالف شان نزوله بیان کړي دي، وروسته تر هغه قاضي ثناء الله رحمه الله المشهور بالمظهري چي هغه په سنه ١٢٢٥ ه کي وفات سوی دی چي هغه بیا رقم رقم شان نزوله بیان کړي دي.

**درویش وایي:** چي دا و بیان د اختلاف د اهل تفسیر په شان کي ددې آیت

وعندي الارجح ماذكر صاحب روح البيان . والعلم عند الله العزيز العلام.

بِالْحَقِّ لِتَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ بِمَآ أَرٰىكَ اللهُ

اى متلبساً بالحق اى الامر والنهي والعلوم الحقة تاچه ته حکم وکړې په منځ کې د خلګو په هغه چې خدای ﷻ دربښوولي وي او وحي يې کړي وتاته چې په دې مخصوصه پېش شده قضيه کې طعمه سارق دی او که يهودي.

**پوه سه**: چې په دې آيت کې دليل پر دې دی چې عليه الصلوة والسلام حکم په ظن سره نه کاوه بلکې يقين ته به منتظر و بالوحي کما في هذه القضية.

**فائده**: بعض علماء وايي چې له دې آيت څخه دا معلومه سوه چې عليه الصلوة والسلام لره اجتهادي حکم کول نسته لکه نورو مجتهدينو ته د امت مرحومه لکن حق داده چې نبي ﷺ ته اجتهاد روا و، که قضيه تر لاس وتله تر انتظار د وحي، او که قضيه له لاسه نه وتله بيا انتظار د وحي هم روا دی او اجتهادي حکم هم روا دی، کذا قال الشيخ ابو منصور الماتريدي قدس سره، او که چېرې عليه الصلوة والسلام حکم په اجتهاد سره وکړی او خدای ﷻ مطلع پر خطاء ونه ګرځوی، نو عليه الصلوة والسلام ته دا يقين کېږي چې حکم اجتهادي زما حق عند الله دی بخلاف سائر مجتهدي الامة.

**درويش وايي**: چې د مجتهدينو د امت په باره کې لوی اختلاف دی چې په تلويح الاصول او مسلم الثبوت کې يې مفصل بيان موجود دی دلته يې نقل اجمالي و متعلم ته ددې تفسير فائده نه کوي، او بيان تفصيلي يې د ژړکوونکو ددې تفسير د پر مشکل کار دی، ولهذا اعرضت عن بيانه اجمالاً وتفصيلاً.

وَلَا تَكُن لِّلْخَآئِنِينَ خَصِيمًا ﴿١٠٥﴾

"او ته مه ګرځوه" دا جمله عطف ده پر "انزلنا" باندې، د خائنانو يعنې ددوی د خلاصونه "خصيماً" دلته په معنا د مدافع دی.

**سوال**: "انزلنا" خو جمله خبريه ده او "لاتکن" خو جمله انشائيه ده، نو عطف به يې څرنګه صحيح وي؟

**خواب:** ودې ته عطف بالمعنى وايي په نحو كې. يعني قلنا ورسره مقدر دی، والتقدير وقلنا لاتكن، نو عطف د اخبار پر اخبار دی.

**پوښتنه:** خائن خو يوازې طعمه و كمامر، نو د جمعيت څه معنى ده؟

**خواب:** د طعمه قوم چې بني ظفر و دوی هم غوښتونكي وه چې دا غلا دې پر يهودي زيد بن السمين تاوان سي او طعمه دې بري سي كمامر عنقريب.

## وَّاسْتَغْفِرِ اللّٰهَ

او ته طلب د بخښنې وكړه له خدای ﷻ څخه.

**پوه سه:** چې كه څه هم عليه الصلوة والسلام د غلا حكم پر يهودي نه دی كړی او وحي ته منتظر و لكه په زړه كي يې دا وه چې طعمه پر حق دی په شهادت د قوم او يهودي ملامت دی. نو له دې سببه خدای ﷻ دی امر كړی په استغفار سره لما قالوا ان امر الخطير خطير.

## اِنَّ اللّٰهَ كَانَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ۝ وَلَا تُجَادِلْ عَنِ الَّذِيْنَ يَخْتَانُوْنَ اَنْفُسَهُمْ

په تحقيق خدای ﷻ بخښونكی د گنهو دی او علاوه پر بخښنه مهربان هم دی. او بحث او مدافعه مه كوه د هغه كسانو له طرفه لكه چې طعمه او قوم دده وو چې دوی خيانت كوی د خپلو ځانو سره.

**سوال:** دوی خو خيانت د يهودي سره كاوه د خپلو ځانو سره خو يې نه كاوه؟

**خواب:** چونكه وبال او عذاب د دوی د خيانت عاقبة الامر ودوی ته راجع كېږي، نو ځكه "يختانون انفسهم" راوړه سو.

**پوه سه:** چې په دې آيت كي كه څه هم په طعمه او قوم كي د هغه نازل دی لكن حكم يې عام دی كما هو حكم الاحكام القرآنية موردها وان كان خاصاً لكن احكامها عامة.

## اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ مَنْ كَانَ خَوَّانًا اَثِيْمًا ۝

په تحقيق خدای ﷻ محبت نه كوي بلكې بغض كوي. ولې چې د خدای ﷻ او د بنده تر منځ، د حب او بغض تر منځ واسطه نسته لكه په بندگانو كي چې واسطه سته كما لا يخفى على كل عاقل، هغه څوك چې د ډېر خيانت كوونكی او



Scanned by CamScanner

د ډېر ګناه کار وي يعنې هر څوک چې وي لکه په مانحن فيه کې طعمة کمامر في احوال خيانته حتى مات في الخيانة والسرقة في مكة كمامر.

# يَسْتَخْفُونَ مِنَ النَّاسِ

دوی يعنې طعمه او قوم دده څانونه پوټوي له خلګو حياء او په سبب د رسوائي له ېږي.

**درويش وايي:** چې په اوسنی زمانه کې اکثره خلګ حتی العلماء ېږه د رسوائي د خلګو په زړه کې لري او د خدای ﷻ ېږه يې په زړه کې نه وي. بيت

واعظان کين جلوه درمنبر ومحراب ميکنند
چون بخلوت ميروند آن کاری ديګران ميکنند

# وَلَا يَسْتَخْفُونَ مِنَ اللّٰهِ وَهُوَ مَعَهُمْ

او له خدای ﷻ څخه څان نه پټوي او حيا نه لري، او حال دادی چې خدای پاک احق بالحياء دی لانه تعالی عالم الغيب والشهادة وقادر على التعذيب والفضيحة، او حال دادی چې خدای پاک د دوی سره ورسره ورسره دی يعنې په اعتبار د علم او قدرت، نو د داسې عالم، خبير خدای ﷻ سره بله چاره نسته چې بنده به پټ له خلګو څخه مالا يحب الله کار نه کوي.

# إِذْ يُبَيِّتُونَ مَا لَا يَرْضَىٰ مِنَ الْقَوْلِ ۚ وَكَانَ اللّٰهُ بِمَا يَعْمَلُونَ مُحِيطًا

هغه وخت چې دوی يعنې طعمه او قوم دده بنو ظفر د شپې د درواغو بندبست کاوه چې عليه الصلوة والسلام ته به داسې درواغ وايو چې طعمه بري دی او يهودي اصل غل دی چې دا داسې قول دی چې خدای ﷻ نه دی په راضي او خدای پاک په عمل ددوی محيط علماً دی.

**فائده:** اذ" ظرف دی د متعلق د ظرف چې معهم دی او ترجمه چې ماوکړه پر تقدير ددې ده چې کلمه د "ما"مصدريه سي او که موصوله، نو عائد و "ما" محذوف ته دی والتقدير بما يعلمونه محيط ، فتدبر.

## هَٰٓأَنتُمۡ هَٰٓؤُلَآءِ

**پوهه**: چي "ها" حرف تنبیه ده او "انتم" مبتداء ده او "هؤلاء" منادی ده په حذف د حرف نداء او وروسته جمله خبر ده مبتداء ده.

## جَٰدَلۡتُمۡ عَنۡهُمۡ

تاسي اې قومه د طعمه بن ابيرق لپاره دده مو جدال يعني ناحقه درواغ پر لاړ اچولي دي ددوی له خوا څخه يعني ابن ابيرق او امثاله له خوا. حتی چي موضوع د طعمه د جدال مو عليه الصلوة والسلام ته ورسول چي غواړي چي دی هم په حکم کي طعمه خطا باسي.

**سوال**: د "جادلتم" ضمير خو د طعمه و قوم ته راجع دی، نو "عنهم" ضمير وچاته راجع دی؟

**ځواب**: ضمير د "عنهم" راجع دی و طعمه ته وامثاله المفروضة كما اشرنا اليه او يا ضمير د "عنهم" هم راجع دی و قوم ته د طعمه باعتبار التغاير الاعتباري بين المجادلين، والمجادلين عنهم فتدبر غاية التدبر.

## فِي ٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَا فَمَن يُجَٰدِلُ ٱللَّهَ عَنۡهُمۡ

په دې دنيا کي يعني دفعه د سرقې له طعمه څخه او رسوايي دده له قوم څخه. نو څوک به مجادله او بحث وکړي د خدای ﷻ سره په باره کي د طعمه او د قوم دده والاستفهام للانكار يعني هيڅ څوک توان او طاقت نه لري چي طعمه او دده قوم له عذاب څخه د خدای ﷻ خلاص کړي. ان اراد الله تعذيبهم.

## يَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِ أَم مَّن يَكُونُ عَلَيۡهِمۡ وَكِيلٗا

په ورځ د قيامت، قال النحويون چي د "ام" وروسته چي بل حرف استفهام وي لكه "ام ماذا كنتم" يا "ام كيف ينفع" يا په دې "ام من" نه متصله دی نه منقطعه دی چي په معنا د بل ا دی بلکي صرف په معنی د بل دی، والمعنى بلكي څوک پر دوی يعني ددوی لپاره وكيل يعني ذمه كونكی د عذاب د خدای ﷻ يعني وكيل چي خپل موکل له عذابه څخه ساتي ددوی ساتونكي به څوک وي.

وَمَنْ يَعْمَلْ سُوْٓءًا اَوْ يَظْلِمْ نَفْسَهٗ

او که څوک عمل د بدو یعني بل چاته بد ورسوي، او یا ظلم وکړي پر ځان باندي یعني گناه لازمي وکړي چي ضرر بل ته متجاوز نه سي، او بعض مفسرین وایي چي مراد له "سوء" څخه ماسوی د شرک ده او مراد له دې ظلم څخه شرک دی، او بعض علماء وایي چي مراد له "سوء" څخه صغیره گناه ده او مراد له "ظلم" څخه کبیره گناه ده.

ثُمَّ يَسْتَغْفِرِ اللّٰهَ

او بیا طلب د بخښني وکړي له خدای ﷻ څخه په توبه سره که لازمي گناه او یا په عفوه د مظلوم او رد د مظالمو که متعدي وي گناه وه یعني حق العبد پکښې و.

يَجِدِ اللّٰهَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿۱۱۰﴾

خدای ﷻ به پیدا کړي بخښونکی د گناه او مهربانه والمراد رحمة زائدة على المغفرة په دې آیت کي اشاره ودې ته ده چي ابن ابیرق او قوم دده توبه وکاږي له ظلم څخه پر یهودي باتهامه بالسرقة کمامر تفصیله عنقریب اللهم اغفرلي ذنوبي کلها بحرمة اول یوم من شهر رمضان المبارک یوم السبت سنه ۱۴۲۷ هـ ق

وَمَنْ يَّكْسِبْ اِثْمًا فَاِنَّمَا يَكْسِبُهٗ عَلٰى نَفْسِهٖ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴿۱۱۱﴾

که څوک کسب وکړي د گناه که صغیره وي او که کبیره وي، دی کسب د گناه پر ضرر د خپل ځان، او دی خدای ﷻ ښه خبر په اعمالو د بندگانو من الحسنات والسیئات او حکمت لري په مجازاتو کي یا په دنیا کي او یا په اخرت کي.

خَطِيْٓـئَةً اَوْ اِثْمًا ثُمَّ يَرْمِ بِهٖ بَرِيْٓــًٔا

بعض علماء وایي چي مراد له "خطیئة" څخه صغیره گناه ده او بعض وایي چي په قصد نه وي، یا گناه کبیره یا په قصد سره، بیا متهم کړي په هغې گناه بل څوک چي له هغې څخه پاک وي لکه په مانحن فیه کي چي طعمه بن ابیرق زید بن السمین یهودي په غلا متهم کړي.

**پوه سه:** چي ضمیر د "به" یې مفرد راوړی او مذکور په مرجع کي دوه شیان دي

یعني "خطیئة او اثماً" له دې سببه چې نحات وایي چې مذکور په "او" سره چې هر څو شیان وي ضمیر د مفرد ورته راجع کیږي لان المراد بکلمة او احد الاشیاء المذکورة.

فَقَدِ احْتَمَلَ بُهْتَانًا وَإِثْمًا مُبِينًا

د د پر ځان واخستی بار د دروا غو چې عقول ورته په حیرت کې دي والبهت الحیرة، درویش وایي چې بهتان اشد دی اثماً تر غیبت، او ګناه ښکاره بسبب رمي البریئي.

**فائدة في الاستغفار**: په صحیح حدیث کې له حضرت علي رضی الله عنه څخه روایت دی چې ماته ابوبکر رضی الله عنه وویل وصدق ابوبکر رضی الله عنه قال مامن عبد یذنب ذنباً ثم یتوضأ ویصلي رکعتین ویستغفر الله الا غفر الله له. ثم تلا ابوبکر رضی الله عنه هذه الآیة ومن یعمل سوء الآیة. قال الشاعر الفارسي.

ای بې حد ګناه کردستی — می نه ترسی ازآن فعال شنیع
توبه کن تارضای خدا یابی — که به از توبه نیست هیچ شفیع

**پوه سه**: چې استغفار فرار العبد من الخلق الی الخالق جل شانه. وفي الحدیث القدسي الا من طلبني وجدني. قال موسی علیه السلام این اجدک یاربي "زه به تا چېرې پیدا کوم اې زما خدایه "قال اذا قصدت الي فقد وصلت الي" چې قصد وکړې ماته په تحقیق ماته وصل سوې. وقال

سلطان بلا عدل کنهر بلا ماء — وعالم بلا عمل کبیت بلا سقف
وغنی بلا سخاء کسحاب بلا مطر — وشاب بلا توبة کشجر بلا ثمر
وفقیر بلا صبر کقندیل بلا ضوء — وامرئة بلا حیاء کطعام بلا ملح

قال السعدي الشیرازي قدس سره

ناګهان بانګ درسرای افتاد — که فلان را محل وعده رسید
دوستان آمدند تا لب ګور — قدمی چند باز پس ګردید
وین کزو دسترس نمید اری — مال وملک وقباله برده کلید
واین که پیوسته باتو خواهد بود — عمل نیست ونفس پاک وپلید
نیک در یاب وبد مکن زنهار — که نیک وبد باز خواهد دید

وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكَ وَرَحْمَتُهٗ لَهَمَّتْ طَّآئِفَةٌ مِّنْهُمْ اَنْ يُّضِلُّوْكَ

كه نه واى فضل د خداى ﷻ پر تا باندي ايها النبي ﷺ او رحمت دهغه.

**پوه سه**: چي د فضل معنی عصمت ده او د رحمت معنی لطف او مهرباني ده چي ته يې په پټ حال د طعمه او قوم خبر کړې، نو هر آئينه قصد کړی وبوی طائفي د مسلمانانو ظاهراً چي بنو ظفر د طعمه قوم و. دوی چي تا خطاباسي په قضاء کي په باب کي د غلا د ابو قتاده د زغري په چم بازی سره، حتی چي ته حکم د غلا پر ابن ابيرق طعمه باندي ونه کړې بلکي پر يهودي زيد بن السمين باندي دي وکړی.

**پوه سه**: چي جمله د "لهمت" ځواب د "لولا" ده.

**سوال**: په نحوه کي وايي چي ځواب د "لولا" به منفي وي په سبب د وجود د شرط مثل لولا زيد لهلک عمرو، او په دي ځای کي خو مقصد د طائفي موجود و منفي نه و؟

**ځواب**: صحيح ده چي مقصد د طائفي موجود و لکن چونکه تاثير يې ونه کړی يعني د عليه الصلوة والسلام په خطاء ايستولو کي فنزل وجود الهم منهم منزلة العدم فصح کون جملة لهمت آه، جواب لولا، على القانون النحوي بناءً على التنزيل المذکور فتامل.

وَمَا يُضِلُّوْنَ اِلَّآ اَنْفُسَهُمْ وَمَا يَضُرُّوْنَكَ مِنْ شَيْءٍ

ولي ضرر د دوی ودوی ته راجع سو، او تاته ايها النبي ﷺ ضرر نه سي رسولای په شي سره لعصمت الله اياک من ضررهم.

**پوه سه**: چي "من شئ" محلاً منصوب دی مفعول مطلق د "يضرونک" دی ای شيئا من الضرر.

**پوښتنه**: عدم اضلال آه او عدم ضرر آه خو دواړه تېر حکايت د قرآن دمخه واقع وه نو مقتضی د ظاهر خو دا وه "وما اضلوا الا انفسهم وما اضروک بشئ" نو د مضارع صيغه يې راوړه وجه يې څه ده؟

**خواب:** په نحوه کې دې ته احضار د حالت ماضيه وايي لکه عرب چې حال عجيب ماضي حاضر فرضوي ليتعجب منه المخاطبون فيعبرون بالمضارع الدال على الحال.

## وَأَنْزَلَ اللَّهُ عَلَيْكَ الْكِتَٰبَ وَالْحِكْمَةَ

او نازل کړي دي خداى ﷻ پر تا کتاب اى القرآن او حکمت اى العلوم الحقة كما ثبتت بالآحاديث لانه عليه الصلوة والسلام لا ينطق عن الهوى ان هو وحي يوحى نو دا سوال نه وارديږي چې علوم ثابته بالاحاديث النبويه، نو وحي نه او منزل من الله نه دي.

## وَعَلَّمَكَ مَا لَمْ تَكُنْ تَعْلَمُ

او تاته درښوولي دي خداى ﷻ هغه شيان چې ته د مخه نه وې په خبر، يعنې اسرار او غيبي شيان، قتاده رحمه الله وايي علمه الله تعالى علوم الدنيا والآخرة كالحلال والحرام وغيرهما من امور الدنيا والجنة والنار من امور الآخرة.

## وَكَانَ فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكَ عَظِيمًا ﴿١١٣﴾

او دى فضل د خداى ﷻ پر تاباندې لوى چې هغه نبوت دى او ختم النبوة پر تا، او سيد المرسلين گرځول ستا الى غير ذالک.

ع ........ آنچه خوبان همه دارند تو تنها دارى

## لَا خَيْرَ فِي كَثِيرٍ مِّن نَّجْوَىٰهُمْ

هيڅ خير نشته په پټو خبرو کې ددوى او په مشورو کې ددوى د شپې لکه قوم د ابن ابيرق چې به کولې په باره کې د خلاصون د طعمه له تهمته د سرقې، فالضمير نجواهم راجع الى قوم ابن ابيرق كما مقتضيه سياق الكلام، په قاموس کې وايي چې "نجوى" مصدر دى په معنا د سرناجيه اى ساريه.

**درويش وايي:** چې "نجوى" تخصيص په شپه پورې نه لري، وان كان النجوى فيما نحن فيه اى قوم طعمه ليلاً.

**بوه سه:** چې که "نجواهم" راجع وقوم ته د ابن ابيرق سي، نو دا استثناء منقطع ده، ولې چې من امر بصدقة خو داخل په قوم کې د ابن ابيرق نه و، او مجاهد رحمه الله وايي چې "نجواهم" راجع دى ومطلق تاسو ته المفهوم من المقام

والمذكور حكماً، نو پر دې تقدير استثناء متصله ده من الضمير المذكور.

﴿إِلَّا مَنْ أَمَرَ بِصَدَقَةٍ أَوْ مَعْرُوفٍ أَوْ إِصْلَاحٍ بَيْنَ النَّاسِ﴾

**پوه سه**: چې "معروف" هغه عمل ته وايي چې حسن يې شرعا معلوم وي كالصدقة النفلية والزكوة المفروضة والقرض وغير تلك من اعمال البر، يا په اصلاح كې د خلكو پټ مجلس سره كوي.

**پوه سه**: چې "او اصلاح آه" عطف دی پر "معروف" او دا تخصيص بعد التعميم دی لان المعروف شامل للاصلاح المذكور.

**پوښتنه**: فائده د عطف يې څه ده؟

**ځواب**: مزيد اهتمام په شان سره د اصلاح مذكور او يا دا چې اصلاح بين الناس گاهې په غير معروف سره وي لكه اصلاح په دروغو ويلو سره د مصلح. چناچه د ام كلثوم بنت عقبه رضي الله عنها څخه روايت دی چې عليه الصلوة والسلام وويل "ليس بالكذاب من اصلح بين الناس" نه دی دروغجن هغه څوک چې اصلاح په منځ كې د خلكو كوي په دروغو سره "فقال خيراً او نمى خيراً" نو ده خير خبره وكړئ يا د خير خبره چاته ورسوي يعنې چې دروغ وي متفق عليه.

د اسماء بنت يزيد رضي الله عنها څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وويل "لا يحل الكذب الا في ثلاث كذب رجل امرئته ليرضيها" مثلاً د سړي ماينه ناراضه وي چې ماته ولې د اختر بنه كالي نه راكوې؟ دی شی نه لري ورته وايي چې زما پر فلاني سړي پيسې باندې دي چې هغه يې راكړي دستي به تاته كالي دروكړم، او دا خبري يې ټولې دروغ وي "والكذب في الحرب" او دروغ په جنګ كې د كافرانو "والكذب ليصلح بين الناس".

﴿وَمَنْ يَفْعَلْ ذَلِكَ ابْتِغَاءَ مَرْضَاتِ اللَّهِ فَسَوْفَ نُؤْتِيهِ أَجْرًا عَظِيمًا﴾

يعنې كه څوک وكړي يو له دغو شيانو يعني الامر بالصدقة او يا امر بمعروف يا اصلاح بين الناس. لپاره د طلب د رضاء د خدای جل جلاله ژر دی چې مونږ به وركړو ثواب لوی چې جنت دی په ورځ د قيامت.

**دروېش وايي:** چي ددې قيد فائده داده که چېري يو سړی دغه کارونه وکړي لکن سمعةً ورياءً حق د اجر نه لري "انما الاعمال بالنيات وانما لامرئ مانوى"

**پوه سه:** چي بعض قاريان "نؤتيه" په نون د متكلم وايي او بعض يې په يا د غيبت وايي چي ضمير يې راجع و خدای ﷻ ته دی.

## وَمَنْ يُشَاقِقِ الرَّسُولَ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدٰى

او څوک چي مخالفت وکړي له رسول ﷺ څخه چي مراد ځني عليه الصلوة والسلام دی وروسته تر دې چي ښکاره سي و ده ته هدايت چي عبارت دی ماجاء به الرسول يعني ودغه مخالف ته ښکاره بدليل قطعي وهو القرآن المعجز، او معجزات اخر چي دا لار د رسول چي دين د اسلام دی حق دی يعني بيا يې هم مخالفت اختيار کړی بعدم الايمان به.

**پوه سه:** چي فايده د قيد "من بعد آه" داده چي هغه مخالفت الرسول ځني وباسي چي ده ته خبر د ماحكم به الرسول نه وي ور رسېدلی، او يا حکم د رسول ور رسېدلی وي لکن په داسي سند چي بعض راويان يې متهم وي او يا مجتهد وي په فهم کې د مراد د رسول من الحديث خطاوتلی وي فانهم كلهم معذورون.

**پوه سه:** چي مخالفت ته شقاق وايي لان كلا من المخالفين في شق من الآخر.

## وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ الْمُؤْمِنِينَ نُوَلِّهٖ مَا تَوَلّٰى وَنُصْلِهٖ جَهَنَّمَ وَسَاءَتْ مَصِيرًا ﴿١١٥﴾

او متابعت وکړی د ماسوی د لاري د مؤمنانو يعني په اعتقاداتو کي او په اعمال حسناتو کي، موږ به دی والي وګرځوو د هغه لاري چي د تولی او متابعت خوښ کړي د ځان لپاره يعني الكفر والضلال، او موږ به د اخرت په ورځ دی داخل کړو وجنهم دوږخ ته د سوځولو لپاره او بد دی جهنم ځای د ورتلو.

**پوه سه:** چي بغوي رحمه الله وايي چي دا آيت په شان کي د طعمه بن ابيرق نازل سوی دی چي دی په غلا سره محکوم سو د عليه الصلوة والسلام له خوا څخه، نو د قطع اليد له بېري او د رسوائي له بېري مکې ته وتښتېدی او مرتد سو ومات کافرا.

**درویش وايي**: چې علامه بغدادي الشيخ الالوسي رحمه الله پخپل تفسیر کې وايي چې محمد بن ادريس الشافعي رحمه الله په دغه آيت سره دلیل پر حجت د اجماع الامة المرحومة وايي، چناچه مزني چې د امام شافعي رحمه الله شاګرد و وايي چې زه یوه ورځ د امام شافعي سره ناست وم چې یو سپین ږیری خاوند د هیبت چې له وړیو څخه جوړ سوي ژړ کالي يې اغوستي وه او لکړه يې په لاس کې وه راغلی او شافعي رحمه الله چې یوې ستني ته د مسجد تکیه کړې وه د شیخ د هیبت له وجهي سم کښېناستی او کالي يې پر ځان سم کړه شیخ چې راغلی وروسته تر سلام يې امام شافعي رحمه الله ته وويل ما الحجة في دين الله. قال الشافعي كتاب الله ﷻ شیخ ورته وويل وماذا یعني وروسته تر کتاب الله دلیل څه شی دی سنت نبيه ﷺ. شیخ ورته وویل وروسته بیا حجت څه شی دی شافعي ورته وويل اجماع الامة. شیخ ورته وويل افي كتاب الله، آیا دا په قرآن کې سته یعني چې اجماع حجت قطعي، امام شافعي یو ګړی ساکت سو. شیخ ورته وويل چې زه درې ورځې درې شپې تاته مهلت درکوم که دې آیت په باب پیدا کړی خو فبها ونعمت او که دې نه کړی پیدا له خلګو څخه به ګوښه کېږې. مزني وايي چې درې شبانه روزه امام شافعي رحمه الله له کوره نه راوتی، دریمه ورځ په منځ کې د ظهر او د عصر امام شافعي رحمه الله مسجد ته راووتی په داسې حال کې چې رنګ يې ډېر تغیر کړی و او شیخ هم راغلی سلام يې ووایه او کښېناستی او وه يې ويل "حاجتي" یعني زما حجت دې پوره کړی، شافعي رحمه الله ورته وويل نعم اعوذ بالله من الشيطان الرجيم قال الله ﷻ ومن يشاقق الرسول" تر اخیره پورې د آيت، شیخ ورته وویل صدقت وقام وذهب، شافعي رحمه الله وايي چې ما قرآن شریف په هر شبانه روز کې د مهلت د شیخ درې درې واره ختم کاوه حتی چې دا آيت مې پیدا کړی.

**درویش وايي**: چې توجیه د استدلال په دغه آیت سره پر حجیت د اجماع داده چې خدای ﷻ په دې آیت کې د وعید ژبرې پر دوو ډلو وکړی مراد له وعید څخه "ونصله جهنم آه" او مراد له دوو ډلو څخه یوه "من يشاقق الرسول آه" ده او بله "ويتبع غير آه" دی، او دا خو عقل نه مني چې مشاقه د رسول دې یوازې سبب د وعید وي

والا لغا الثاني يعني ويتبع آه. او دا هم له عقله لېري خبره ده چي مجموع مشاقه او اتباع د غير د سبيل آه دي من حيث المجموع سبب د وعيد وي. ولي چي مشاقة الرسول يوازي مستقل دی په وعيد کي. فلاحاجة الى ضم الاخر. نو دا معلومه سوه چي هر يو مستقل دی په استحقاق کي د وعيد. نو نتيجه دا سوه چي اتباع د غير سبيل المؤمنين حرامه ده لكونه سبباً للوعيد استقلالاً. نو چي يو ضد حرام سي بل ضد يې واجب ګرځي. نو اتباع د سبيل المؤمنين واجبه ده. وهو المعنى من حجية الاجماع. وفي الحديث ايضاً ما يدل عليه. چناچه روايت بيهقي او ترمذي کړی دی له ابن عمر او ابن عباس ﷺ څخه چي دوی وويل لا يجمع الله هذه الامة على الضلالة ابداً ويد الله على الجماعة ومن شذ شذ في النار.

**درويش وايي:** چي مشاقت د رسول کريم ﷺ دونده درنه ګناه ده چي طعمه بن ابيرق چي دا د مخالفت لار خپله کړه د تاريخ په پاڼو کي دا خبره خو متفق عليه ده چي دی مکې ته ولاړی او مرتد سو. نور په تاريخ اسلامي کي اختلاف دی بعض وايي چېري مړ سو او په فلاني سبب قتل سو يا مړ سو. او قبر يې چېري دی. تقريباً درې روايته په دې باره کي راغلي دي. نعوذبالله من غضبه وغضب رسوله.

إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ ۚ وَمَنْ يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَالًا بَعِيدًا ﴿١١٦﴾

په تحقيق خدای پاک نه بخښي شرک په ده سره. او خدای ﷻ بخښي هغه ګناه چي تر شرک کمه وي که که صغيره وي او که کبيره وي بالتوبة او بلا توبة هغه چاته چي د مغفرت مشيت يې ورته وسي. او څوک چي خدای ﷻ شريک ووايي خواه شريک په وجوب الوجود لکه مجوس چي وايي چي عالم لره دوه خدايه واجب الوجود سته يو خالق الخيرات دی چې هغه ته دوی يزدان وايي. او بل خالق الشرور چي هغه ته دوی اهرمن وايي يا شيطان او يا شريک في العبادة ورته وايي لکه مشرکين د مکې او يا مشرکين د هندوستان او يا د جاپان الى غير ذالک. نو هغه سړی ګمراه سو په ګمراهي بعيد من الحق جداً.

**پوه سه:** چې کلمه "ان" مصدري ده يعني اذا مات على الشرک.

**پوه سه:** چې اعظم د جرائمو شرک دی له دې سببه قابل د عفو نه دی که ځوک پر مړ سي او اعظم د جزاء يې خلود في النار دی ابداً. او اعظم د حسنات صالحاتو توحيد دی له دې سببه موحد له ابدي دوږخه خلاص دی وان عمل كل سيئة او جزاء يې خلود في الجنة ده اذا دخلها فكما ان الشرک لايغفر فكذا التوحيد لايهمل بدون الاجر والثواب. اللهم توفنا مسلمين والحقنا بالصالحين في دار كرامتک يا ارحم الراحمين.

**پوه سه:** چې بغوي، روح البيان، مظهري او روح المعاني رحمهم الله وايي چې دا آيت په باره کي د يو سپين ږيري صحرايي نازل سوی دی چې هغه وعليه الصلوة والسلام ته راغلی او وه يې ويل يا نبي الله انا شيخ منهمک في الذنوب، سپين ږيري يم او ډوب يم په ګنهو کي "الا اني لم اشرک بالله شيئاً منذ عرفته وآمنت به" مګر دادی چې شريک مي خدای ﷻ ته هيڅ شی نه دی کړی له هغه وخته چې ما خدای پېژندلی او ايمان مي پر راوړی دی "ولم يتخذ من دونه ولياً" او ما ځان ته بېله خدايه متصرف نه دی پيدا کړی او زه په معاصيو کي نه يم واقع سوی له جهته د دلاوري پر خدای ﷻ باندي او زما هيڅ په وهم کي نه ده راګرځېدلې چې زه په خدای پاک عاجزه کړم له عذاب ځخه خپل په سبب د تېښتي "واني لنادم تائب مستغفر فما ذا حالي فنزلت هذه الآية المتلوة.

**إِن يَدْعُونَ مِن دُونِهِۦٓ إِلَّآ إِنَٰثًا**

دوی يعني كفار مكه عبادت نه کوي بېله خدايه مګر د ښځو ای الاصنام.

**پوه سه:** چې خدای پاک بتان د مشرکانو ښځي وبللې او سره ددې چې هغه خو جمادات ډيري وه ښځي خو نه وه، دا له ځو سببه.

(۱) مشرکانو به دا بتان د ښځو پر هيئت جوړول او داسي کالي او زېورات به يې په اغوستل او پر ځړول به يې لکه ښځي چې هغه کالي او زېور په وخت کي د تزيين اغوندي او يا يې په ځان پوري ځړوي.

(۲) غالب نومان د هغو بتانو مؤنث نومان وه، نو په اعتبار د نومانو يې بتانو

ته مؤنث ووایه مثل اللات، العزی والمنات.

(۳) دا بتان خو جمادات وه لا ارواح فیها او جماداتو ته په عربي کي انثی وایي په دې سببه چي ښځه خو مفعوله ده فاعله د جماعو نه ده داغه رنګه بتان مصنوع او مفعول د خلګو وه فاعلان نه وه، نو په دې بیان د غایت جهل د مشرکانو چي معبود خو باید فاعل، خالق، رازق او صانع وي او مشرکینو پر منفعل او مصنوع باندي نوم د خدایانو ایښی دی او عبادت یې کوي، وهذا في الفعال والاقوال عجیب، او بعض مفسران وایي چي مراد له انثی ښځه ملکي دي لان بعض المشرکین یعبدون الملائکة ویقولون ان الملائکة بنات الله، والی هذا اشیر بقوله تعالی "ان الذین لا یؤمنون بالآخرة یسمون الملائکة تسمیة الانثی" او په دې یې اقرار کاوه چي انثی د هر شي اخسه وارزله ده.

وَاِنۡ يَّدۡعُوۡنَ اِلَّا شَيۡطٰنًا مَّرِيۡدًا ﴿۱۱۷﴾

او دوي یعني المشرکین په حقیقت د بتانو په عبادت کي عبادت نه کوي مګر نه د شیطان چي سرکښه دی د خدای ﷻ د امر حین امره بالسجود لآدم علیه السلام، فابی واستکبر آه. والوجه في ذالک چي شیطان خو دوی باعثه کړي پر عبادت د بتانو. نو دغه اطاعت د شیطان په باره کي د عبادت د بتانو عبادت د شیطان دی في الاصل والحقیقة، او بعض مفسران وایي چي د هر بت سره به شیطان ملګری وچي خادمانو ته د بتانو او نورو کاهنانو ته به یې ځان ښکاره کاوه او خبري به یې ورسره کولې او دوی ته به یې ویل چي عبادت د بتانو حق دی.

لَّعَنَهُ اللّٰهُ ۘ وَقَالَ

پر ده د خدای ﷻ لعنت دی.

**بوه سه:** چي دا جمله صفت ثانیه د شیطان ده، او "مریداً" یې اول صفت دی، او جمله د "قال" عطف ده پر "لعنه الله" باندي، او حاصل دادی چي شیطان هم مرید یعني سر کښه دی او هم پر ده لعنت د خدای ﷻ دی او دا خبره یې هم کړې ده چي دا قول ده دلیل دی پر سخت عداوت ده د بني آدم سره.

**فائده:** لـه توصيف څخه د شيطان پـه دې قـال سره معلومه سوه چي مراد له شيطان څخه ابليس دی لاذريته، ولې چي په حديث صحيح کي راغلي دي چي ابليس چي منعه وکړه لـه سجدې څخه و آدم ته او خدای ﷻ حکم د معلون پر وکړی، نو ده وويل چي زما قسم دی په عزت او جلال ستا چي زه به همېشه گمراه کوم بني آدم تر هغو چي ددوی ارواح ددوی پـه بدنو کي وي، او دده هم دغه خبره مقصود ده له دې قول څخه د باري ﷻ.

**لَأَتَّخِذَنَّ مِنْ عِبَادِكَ نَصِيبًا مَّفْرُوضًا ﴿۱۱۸﴾ وَلَأُضِلَّنَّهُمْ وَلَأُمَنِّيَنَّهُمْ**

زه به اخلم ستا له بندگانو يعنې د ځان تابع به يې گرځوم يوه برخه مفروضاً اي مقدراً، او زه بـه دوی گمراه کـوم چي پـه وسوسه سره بـه ددوی پـه زړو کـي حب الشهوات ور اچوم او دا وسوسه به هم ور اچوم ان لا حساب ولا کتاب ولا الجنة والنار. او زه بـه بې ځايه او باطلې تمناوي پـه زړو کـي ددوی ور اچوم منها ان لا بعث ولا حساب ومنها طول الحيوة ومنها ادراک نعيم الآخرة مع ارتکاب المعاصي الى غيرها من التمنيات الباطلة.

**وَلَآمُرَنَّهُمْ فَلَيُبَتِّكُنَّ آذَانَ الْأَنْعَامِ**

او هـر آئينـه زه پـه امـر کـوم دوی چي پـرې کـوي بـه او چـاکوي بـه غوږونـه د چارپايانو.

**يوه سه:** چي د تفعيل باب لپاره د تکثير او د تکرير دی کما في خواص ابواب الشافية.

**يوه سه:** چي انعام اوښ، غوايي او پسه ته وايي که نر وي او که ښځه.

**يوه سه:** چي په جاهليت کي دا عـادت و چي د يو چا اوښه بـه پنځه واره لنگه سوه اخير به يې نر راوړی پر روايت مشهوره. او يـا بـه اووه واره لنگه سوه چي شپږ به يې ښځي راوړې اووم به يې نر و پـه روايت د روح البيان. يا چي بـه لس واره لنگه سوه چي اخير بـه يې نر راوړی پـه روايت د مظهري، پـه هـر صورت دوی به يې غوږ ورچاک کړی يا به يې پرې کړی او څوک بـه نه پر سپرېدی او نه بـه يې

لوښله او نه به يې ذبحه کوله او چا به له اوبو او له وښو څخه نه ګرځوله او که به بخي ډېر سټړی سړی پر پېښ هم سو نه به پر سپرېدی. يعني دا اوښه يې د خدايانو لپاره پرې ښوولو. او دا اوښه به يې بحيره بلله. او پخپله چې به مړه سوه غوښې يې وښځو ته حرامي وې او يوازې به نرانو خوړلې. او سائبه بيا هغه اوښه وه چې يو سړي به ويل که زه خدای جوړ کړم فناقتي سائبة. او يا به يې وويل که زما غائب له سفره راغلی او يا زما زوی وزو کېدی او نحو ذالک فناقتي سائبة او هغه کار چې به وسو نو اوښه به يې ايله کړه هر ځای چې به ګرځېدلای چا کار نه په درلودی او نور احوال يې تول د بحيرې وه. لکه بحيره نه څوک پر سپرېدی او نه يې شيدې خوړلې او نه چا له اوبو او وښو څخه منعه کوله. دا قدر فرق يې وچې مړه به سوه نرو او ښځو دواړو به يې غوښې خوړلې. او حامي بيا هغه مېنده اوښ و چې دده ولد الولد به د سپرتيا سو او بعض وايي چې پنځه کاله به يې مېندويي وکړه. نو دوی به ويل چې انه قد حمی ظهره دې اوښ خپله ملا له سپرتيا څخه وساتل. نو دا اوښ به هم ايله ګرځېدی هيڅ څوک به نه پر سپرېدل او له اوبو او وښو څخه چا نه منع کاوه او چې مړ به سو نرو او ښځو دواړو به يې غوښې خوړلې. او وصيله هغه مېږه وه چې دا به اووه واره لنګه سوه که به يې اووم عيال نر وايي د خدايانو پر نامه به يې ذبح کول او غوښې به يې نرو خوړلې او ښځو نه سوای خوړلای. او که به يې اووم عيال ښځه وای نو لکه نور پسونه چې مړه سي نرو او ښځو دواړو به يې غوښې خوړلې.

**درويش وايي:** چې دا وه خرافات د جاهليت د وخت مالهم عليها ببرهان والله اعلم بالصواب. **وَلَأٰمُرَنَّهُمۡ فَلَيُغَيِّرُنَّ خَلۡقَ ٱللَّهِۚ**

او زه به دوی امر کوم چې تغيير د خلق الله ته ورکړي يا صورةً يا صفةً.

**درويش وايي:** چې تر تغيير د خلق الله ډېر شيان لاندي دي.

(۱) په سترګه ړوندول د حامي چې موږ د مخې ذکر کړی د عربو د عادت سره سم چې به د يو چا اوښان زر ته ورسېدل. نو د هغې حامي چې ددوی سره به يې ډېره زمانه تېره کړې وه. نو په يوه نېزه به يې په سترګه کې ووهل او ړنده به يې کړه.

(۲) د ږيري خريل او يا د پره لنډول يعني تر قبضه ډېره.

(۳) خصي كول دي د مريانو يعني د كور د خدمت لپاره چي د ښځو په مثال سي، نو بيا په كور كي خيانت د زنا، نه سي كولای.

**پوښتنه**: د حيوان خصي كول هم بايد ممنوع وای، ولي دا خو هم تغير د خلق الله دی؟

**ځواب**: قياس خو داغه دی لكن فقهاؤ د خصي كولو رخصت كړی دی، ولي چي په حيواناتو كي ضرورت و خصاته سته، ولي چي د مينده حيوان تر غوښو د خصي حيوان غوښي خوندوري وي او بې ضرره هم وي.

**مسئله**: امام اعظم رحمه الله وايي چي رانيول د خصي مريي د كور د خدمت لپاره مكروه دی، ولي چي په شراء كي ددوی ترويج د خصاء د فعل مكروه دی.

اعجوبة: په نصاب الاحستاب كي وايي چي معاويه رضي الله عنه كور ته ورغلی او خصي مريی ورسره و، بيوې ښځي ډېر بد ورته كتل او مخ يې ځني پټ كړی معاويه رضي الله عنه ورته وويل مخ دي ولي پټ كړی دی خو ستا غوندي دی، ښځي ورته وويل اترى المثلة فيه قد احلت ماحرم الله من النظر اى نظره الينا ونظرنا اليه، فتعجب معاويه رضي الله عنه من فطنتها وفقهها.

(۴) وشم: يعني خالونه وهل پر مخ يا د ښځي يا د نر او يا پر يو اندام، د وشم طريقه داده چي يو اندام په ستنو ووهي چي وينه يې وكړه، نو بيا رانجه راواخلي كه يې تور خالونه جوړول يا نيل پر واچوي كه يې شنه خالونه جوړول.

**مسئله**: ددغو خالونو ازاله كه په طبي دواوو كېدله، نو واجبه ده چي ايسته كوي به يې او كه په هغه نه كېدله، نو دي هغه د خالو د ځای پوست واړوي ان لم يخف فوت عضو او شنيه اى عيب جن والی، وهذا مذهب بعض الشوافع وعندنا لايجب الازالة.

(۵) وشر: چي د ښځي غاښونه يا سره تېروبېر وي او يا پنډ وي يا غټ وي، نو بد سي، نو ډاكټر يې په آلاتو چي په مثل د سوهان دی ورسم كړي او ډېر يې ی حتی سری چي وايي د غاښو تر منځ يې رڼا وځي.

(٦) نمص: چي د ښځي پر مخ وېښتان وي يا يې ورځي د پرې پنډوي، نو يې په نوسي يا په يوه بله آله دا وېښتان کاږي.

(٧) الوصل: هغه دادی چي د ښځي بعض وېښتان يا خلقةً کم وي او يا په عارض د يو مرض توی سوي وي. نو دا نور د انسان وېښتان په خپلو وېښتانو کي جارباسي، دليل د حرمت يې دادی چي نفع اخستل د انسان په جزء سره د کرامت له جهته ناروا دی، او د يو حيوان مثلاً اوښ وېښتان جار ايستل گناه نه ده.

(٨) ښځه لکه نر چي وېښتان پرې کوي چي څوښي يې بولي حرام دی.

(٩) سحق: سحق دادی چي يوه ښځه پر پوزي پر توگ وکاږي او پښې پورته کړي او بله ښځه ددې پر فرج خپل فرج موږي حتی چي دواړې انزال سي، په حديث شريف کي راغلي دي "سحاق النساء زناء بينهن"

(١٠) لواطت: په دې کي تغير د خلق الله په دې سبب دی چي لوطي ځای د فرث يعني د نجاست چي دُبره ده ځای د حرث يې وگرځوله. ولي چي تخم د نطفې يې پکښې توی کړی.

(١١) د پر ښائسته هلک ته کتل حرام دي په شهوت سره، ومجالسته حرام لانه کالمرئة عورة من القرن الی القدم.

(١٢) عبادت د لمر، د سپوږمۍ، د ستورو او يا د بتانو تغير د خلق الله دی ذات که يې نه بدلوي صفت خو يې وربدل کړی، ولي چي هيڅ شی له مخلوقه من دون الله حق د معبوديت نه لري.

(١٣) مثلة: مثلة چي د انسان په ژوند يا وروسته تر مړيني پزه، غوږونه يا ذکر ځني پرې کړي وغيرها من اجزاء الانسان سوی قطع اليد والرجل حداً کما مثل کفار مکة باصحاب احد رسول الله ﷺ.

**درويش وايي:** چي دا مذکوره ديارلس شيان چي په مثال د تغير د خلق الله درويش راوړه بند قليل بمقدار علم الفقير.

**وَمَن يَتَّخِذِ الشَّيْطَٰنَ وَلِيًّا مِّن دُونِ اللَّهِ فَقَدْ خَسِرَ خُسْرَانًا مُّبِينًا ﴿١١٩﴾**

که څوک وگرځوي شيطان ولي يعني دوست او معبود ماسوی د له خدايه څخه

يعني چي امر ته د شيطان ترجيح ورکړي تر امر د خداى ﷻ، ولي چي خداى له شرکه نهي کړي دي ، او د شيطان په دعوت سړى شرک کوي يعني عبادت د خداى ﷻ د عبادت سره د غير الله نه جمع کېږي، وفي الحديث الذي رواه مسلم عن ابي هريرة ؓ داسي راغلي دي چي خداى ﷻ وايي "انا اغنى الشركا، عن الشرک من عمل عملاً اشرک فيه معي غيري (ولو بالريا، والسمعة) ترکته وشرکه، وفي رواية انا منه بريئ، نو په تحقيق سره دي سړي ځان ته تاوان ورساوه ښکاره تاوان ، ولي چي ده جنت په دوزخ بدل کړى او اطاعت د خالق السموات يې په اطاعت د اخبث المخلوقات بدل کړى واي خسارة اعظم من هذه الخسارة.

## يَعِدُهُمْ وَيُمَنِّيهِمْ ۖ

شيطان ددوى سره وعدې يعني د درواغو د وسوسې له لاري او باطلي باطلي وعدې ورسره کوي، مثلاً دا خاطره په زړه کي ورواچوي چي قيامت نشته، او يا دا چي بتان به په ورځ د قيامت ستاسي شفاعت کوي الى غير ذالک من الخرافات، بلکې ګاهي شيطان په صورت کي د انسان ځان وخلګو ته ښکاره کړي لکه په ورځ د بدر چي يې داغسي کار وکړى کما حکى الله تعالى "اذ زين لهم الشيطان اعمالهم وقال لاغالب اليوم من الناس واني جار لکم فلما ترائت الفئتان نکص على عقبيه" وقد مر تفسير هذه الآية في بيان غزوة بدر.

## وَمَا يَعِدُهُمُ الشَّيْطَٰنُ إِلَّا غُرُورًا ۝١٢٠

او د دوى سره وعده نه کوي دى مګر باطل مثلاً د سړي په يو کار کي نفع وي شيطان يې په زړه کي ورواچوي چي په دې کار کي ستا تاوان او ضرر دي او يا کار په واقع کي د سړي ضرر وي شيطان ورته ووايي چي په دې کار کي ستا نفع ده الى غير ذالک من خطراته وهمزاته ونفحاته، اللهم طردآله عنا.

## أُولَٰٓئِكَ مَأْوَىٰهُمْ جَهَنَّمُ وَلَا يَجِدُونَ عَنْهَا مَحِيصًا ۝١٢١

دغه کسان دي چي ځان د ورتلو او اقامت په دوزخ دي او دوى نه سي پيدا کولاى له دوزخ څخه ځاى د تېښتي که ظرف سي ، او يا تېښته که مصدر سي؛

## وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

او هغه کسان چي ایمان یې راوړی وي او عملونه کوي د صالحاتو خصلاتو.

**پوهه**: چي اصحاب د حقیقت وایي صلاح العمل في اخلاصه فالعمل ما ارید به وجه الله سواء كان قولياً كتلاوة والتسبيح والتهليل والتحميد وغير ذالک. او عملياً كالصلوة باركانها او مالياً كالزكوة وصدقة الى غير ذالک او مركباً منها كالحج فان الثلثة مجمعة فيها.

## سَنُدْخِلُهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهٰرُ خٰلِدِينَ فِيهَا أَبَدًا ۖ وَعْدَ اللّٰهِ حَقًّا ۚ

ژر دی چي موږ به داخل کړو یعني په ورځ د قیامت وباغو ته چي بهېږي لاندي تر درختو او قصورو د جنتو ځلور ولې عسل. شیدې، اوبه او شراب او سېږي به دوی په دغو جنتو کي همېشه. او وعده د خدای ﷻ حق ده.

**پوهه**: چي "وعداً" مفعول مطلق د فعل محذوف دی ای وعد وعداً، او حقاً هم مفعول مطلق دی د محذوف دی ای حقه حقاً. نو اول په اصطلاح د نحو کي مصدر مؤکد لنفسه بولي له دې سببه چي مضمون د جمله سابقه اسميه يعني والذين آمنوا آه. خو هم اخبار او وعده ده. او حقاً مصدر مؤکد لغيره بولي ولي نفس القول مع قطع النظر عن القائل يحتمل الصدق والكذب.

## وَمَنْ أَصْدَقُ مِنَ اللّٰهِ قِيلًا ﴿١٢٢﴾

**پوهه**: چي استفهام د "من" انکار دی ای لا احد اصدق من الله په خبرو کي.

**فائده**: پوهه شه! چي ددې جملې فائده داده چي خلګو ته دا وښیي چي خبرې د خدای ﷻ صادقې دي تخلف او دروغ نشته پکښي او وعدې د خدای ﷻ اطمنان بخش دي احتمال د عدم وقوع نشته پکښي بخلاف مواعيد الشيطان لاوليائه واقربائه فانها كذب بحت عارية عن التحقق والوقوع.

## لَيْسَ بِأَمَانِيِّكُمْ

نه دی کار د آخرت مربوط ستاسي په بې ځایه امیدو پوري، یا اهل مکه لکه تاسي چي وایاست بعث بعد الموت نشته. او که وي نو "هؤلاء الاصنام شفعائنا عند الله" او یا

تاسي وایاست چي که حال دغسي وي لکه محمد چي وایي یعني چي آخرت او بعث بعد الموت سته، نو په ورځ د آخرت به مور احسن حالاً تر محمد او تر مسلمانانو یو.

وَلَآ أَمَانِيِّ أَهْلِ الْكِتٰبِ

او نه کار د آخرت مربوط دی په باطلو تمنی وو پوري د اهل کتابو یعني یهود او نصاری چي دوی وایي چي "نحن ابناء الله واحبائه" یا دوی وایي "لن یدخل الجنة الا من کان هوداً او نصاری" یا دوی وایي "لن تمسنا النار الا ایاماً معدودات" الی غیر ذالک من خرافاتهم الزائغة. بلکي ثواب او عقاب جنت او دوزخ په اسلام او کفر پوري مربوط دی لکه په دې وروسته آیتو کي چي به یې خدای ﷻ بیان کړي.

مَنْ يَّعْمَلْ سُوْٓءًا يُّجْزَ بِهٖ ۙ وَلَا يَجِدْ لَهٗ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا ۝

او څوک چي عمل د بد کار وکړي که کفر وي که گناه کبیره یا صغیره، جزاء به ورکړل سي هغه چاته په سبب د هغه سوء. او نه به کړي پیدا ماسوی له خدایه متصرف او نه کومک کوونکی چي عذاب به ځني دفع کړي.

**پوه سه**: چي کلمه د "من" عامه ده شامله ده مؤمن او کافر دواړو لره که څه هم نزول خاص دی یعني اماني د مشرکینو د مکې یا اماني د اهل کتابو لان اهل التفسیر اتفقوا ان العبرة لعموم اللفظ لا لخصوص المورد وذهب الی العموم ابن عباس وسعید بن جبیر وغیرهما رضي الله عنهما.

**پوښتنه**: آیت خو پر دې دلالت کوي چي جزاء د سوء به حتمي وي؟

**ځواب**: تولو آیات د وعید مقید په عدم مغفرت سره دي، یعني که خدای ﷻ بخښنه ورته وکړه، نو به جزاء ورکړل سي وهو مذهب اهل السنة والجماعة.

**پوه سه**: چي جزاء عامه ده که دنیاوي یې که اخروي، یعني که خدای ﷻ بخښه ورته ونه کړي، والدلیل علی ذالک ما روی چي دا آیت چي نازل سو ابوبکر صدیق رضي الله عنه ورته وویل "فمن ینجو مع هذا" څوک به نجات پیدا کړي سره د عموم ددې آیت، علیه الصلوة والسلام ورته وویل "اما تحزن اما تمرض اما یصیبک الادواء" آیا ته نه غمجن کېږې ته نه ناروغه کېږې تاته مصیبت نه

رسیږي، ابوبکر ﷺ ورته وویل بلی یا رسول الله ﷺ "قال علیه الصلوة والسلام هو ذالک" یعني د بدو عملو د مسلمان همدغه شیان په دنیا کي، او له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي دا آیت یعني من عمل سوء یجزبه چي نازل سو مونږ وژړل او ډېر غمجن سوو، او مونږ و علیه الصلوة والسلام ته وویل "مابقت هذه الآیة من شئ" یعني دې آیت خو هیڅ گناه نه پرې ښوله بېله جزاء؟ علیه الصلوة والسلام وویل چي کار خو داغسي دی الی اخیر الحدیث.

## وَمَنْ يَعْمَلْ مِنَ الصّٰلِحٰتِ مِنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى

**پوه سه:** چي کلمه د "من" چي پر صالحات داخله ده لپاره د تبعیض ده ای بعض اعمال صالحه که څه هم لږ وي په عدد کي او کم وي په حیثیت کي لقوله تعالی "فمن یعمل مثقال ذرة خیراً یره ای یر ثوابه وجزائه. او بل دلیل د تبعیض دادی چي هر څوک بلکي هیڅ څوک خو ټوله اعمال صالحه نه سي کولای او نه هم هر څوک په اعمال صالحه وو سره مکلف دي، مثلاً بعض مسلمانان چي مسکینان وي په حج کولو او په زکوة ورکولو سره مکلف نه دي الی غیر ذالک من الاعمال.

## وَهُوَ مُؤْمِنٌ

او دی مسلمان هم وي.

**پوه سه:** چي دا جمله حال ده او شرط ده د ثواب د اعمال صالحه وو په آخرت، ولي چي ایمان نه وي هیڅ عمل صالح نه اعتبار لري او نه ثواب لري.

## فَاُولٰٓئِكَ يَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ وَلَا يُظْلَمُوْنَ نَقِيْرًا ﴿۱۲۴﴾

نو دغه کسان داخلیږي په فضل د خدای ﷻ وجنت ته او پر دوی ظلم د یوه نقیر نه کړل کیږي.

**پوه سه:** چي نقیر هغه کوچنی غار دی په سر کي د خورما د منډکي چي له هغه خایه څخه خورما شنه کیږي دلته کنایه ده له کمال قلت څخه.

**درویش وایي:** چي ظلم دوه قسمه دی یا کمول د حسناتو دی او یا زیادت په سیئات کي دی، او دا دواړه قسمه په دې سره نفي سوه، ولي مؤمن که هر څو صالحات عملونه کوي بیا هم په اعمالو کي دده له سیئاتو څخه چاره نسته لان باب

السيئات واسع يشمل الصغائر ايضا. نو په هغو کي زيادت نه کيږي لانه من قبيل الظلم. په صحيح حديث کي راغلي دي چي خداى ﷻ وعده کړې ده د مؤمنانو سره چي حسنات يې يوه په لس ور حسابوي او سيئه يو په يو ور حسابوي، نو چي خداى ﷻ پر سئيه جزاء ورکړي يوه له حسناتو څخه يې ور کمه کړي نهه حسنات ورباته سي، فويل لمن زاد وغلبت احاده على اعشاره، اى سيئاته چي يو په يو وي پر حسناتو چي يو په لس وي. نيشاپوري ﷺ وايي چي حكمت د خداى ﷻ په تضعيف د حسناتو دا دی که مؤمن مدعيان ولري په ورځ د قيامت مثلاً چا ته يې بښکنځل کړي وي، او يا يې څوک ناحقه وهلى وي او يا يې نور ورته کارونه کړي وي، نو هغو مدعيانو ته يوه يوه له حسنات مضاعفه څخه ورکول کيږي لا من اصل الحسنة لان التضعيف فضل من الله تعالى واصل الحسنة عدل منه تعالى واحدة بواحدة، نو خداى ﷻ له خپله فضله څخه د مدعيانو غاړه ورباسي وهذا بشارة عظيمة للمؤمن، نو داسي مؤمن لره افسوس دی چي ده ته مظالم يعني حقوق العباد يې له تضعيفاتو څخه متجاوز سي و اصل حسناتو ته کما جا. في الحديث چي داسي مؤمن چي لوى مظالم د حقوق العباد يې په ذمه کي وي سته حتی چي تضعيفات سره د اصل حسناتو په مظالم کي د عبادو ولاړسي حتی چي د مظلوم سيئات پرده باندي ورواچوي. فيجر الى النار. قال السعدي قدس سره.

نکو کاری از مردم نيک رای — يکی را بده مينو يسد خدای
جونا اثاره طاعت امروز گير — که فردا جوانی نيايد زپير
ره خير بازست وطاعت وليک — نه هرکس تواناست بر فعل نيک
همه برگ بودن همی ساختی — بتدبير رفتن نه پرداختی

**بشارت**: پوه سه! چي دا آيت "ومن يعمل من الصالحات" الى اخيرها شامل دی تولو مؤمنانو لره که صالحان وي او که فاسقان لان الفاسق ايضاً لايخلو عن عمل صالح وادناه شهادة ان لا اله الا الله وهو اعلى شعب الايمان، نو په دې آيت کي زيری دی دواړو ډلو ته مؤمنين المطيعين والعاصين په دواړو شيانو سره اى عدم تنقيص الثواب وعدم زيادة العذاب، فتامل في شرف المؤمنين عند ارحم الراحمين.

وَمَنْ اَحْسَنُ دِيْنًا مِّمَّنْ اَسْلَمَ وَجْهَهٗ لِلّٰهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ

**پوه سه:** چي استفهام د انکاري ای لا احسن. وقوله دیناً تمیز دی نو ځکه منصوب دی او "دیناً" په اصل کي مبتداء وه، والتقدیر ومن دینه احسن من دین من اسلم آه" والمعنی څوک دی چي دین دده ښه وي تر دین د هغه چا چي سپارلی یې وي ځپل ځان وخدای ﷻ ته ای جعل ذاته ونفسه خالصةً لپاره د خدای ﷻ چي بل چا ته یې حق ور نه کړي نه له جهته د خالقیت او نه د مالکیت نه د معبودیت او نه د تعظیم.

**پوه سه:** چي تفضیل په حقیقت کي جار بین الدینین لابین صاحبیها الا بالعرض قوله "وهو محسن" دا جمله حال ده له فاعل څخه د احسن. د احسان معنی بعض مفسرین په اتیان د حسناتو او په ترک د سیئاتو کوي. او په یوه طویل حدیث کي چي بخاري او مسلم یې روایت کړی دی علیه الصلوٰة والسلام د احسان داسي ترجمه کړې ده الاحسان ان تعبد الله کانک تراه فان لم تکن تراه فانه یراک، نو احسان غایت حضور د خدای ﷻ په عبادت کي او حقیقت د ایمان هم دغه احسان دی. والحاصل چي عبادت به خالصاً و مخلصاً لپاره د خدای ﷻ وي، ریاء او سمعه چي شرک خفي دي نه به وي پکښي.

بیت

بروی وریاء خرقه سهلست دوخت — وگرباخدا درفروشي نکوست

**درویش وایي:** چي مظهري د محسن په معنی کي دا هم زیاته کړې ده چي نه به تعلق د محبت بیله خدایه د بل چا سره لري دا زیادت ظاهراً منافي دی د هغې دعاء ماثورې سره اللهم ارزقني حبک وحب حبیبک وحب من یحبک آه، الا ان یقال الحب الزائد علی حب الله ایضاً في الحقیقة راجع الی حب الله کمایدل علیه ضمیر الخطاب الیه تعالی في الحب الزائد فتدبر هداک الله.

وَّاتَّبَعَ مِلَّةَ اِبْرٰهِيْمَ

او متابعت کوي د دین د ابراهیم علیه السلام.

**پوښتنه:** د انبیاء علیهم السلام دین خو په اصول کي د دین سره یو دی مثل

التوحيد والايمان بالبعث بعد الموت والجنة والنار وامثالها. نو تخصص د ابراهيم عليه السلام يې ولې وکړى؟

**ځواب**: د ابراهيم عليه السلام دين په ټولو اديانو کې مقبول او حق دين دى حتى في اليهود والنصارى والاعجب ان المشركين ايضاً يدعون دين ابراهيم. نو له دې جهته تخصص د متابعت د ابراهيم عليه السلام وکړى يعني په دين کې. او بله زيبا وجه د تخصيص دا هم ده چې د ابراهيم عليه السلام دين علاوه پر اشتراک په اصول په اکثره فرعياتو اعمالو کې د دين اسلام سره سمون لري لکه لمونځ وکعبې ته او طواف پر کعبه او مناسک د حج او ختنه (سنتي) او مهمان نوازي وغير ذالک فدين ابراهيم اقرب الاديان الى دين الاسلام دين محمد عليه السلام فلهذا خصه بالذکر.

## حَنِيفًاؕ

حال من ابراهيم او من الملة ومعنى الحنيف المائل والمجانب من الاديان الباطلة کلها مثل عبادة الاوثان وغيرها.

پوښتنه: د "ملت" حاليت خو يې صحيح دى، ولې چې هغه خو مفعول د "تتبع" دى له "ابراهيم" ځخه به يې حاليت ځرنګه صحيح وي، ولې ابراهيم خو مضاف اليه دى، او په نحو کې وايي چې حال مابيين حال الفاعل او المفعول به؟

ځواب: په علم نحو کې دا هم وايي چې که مضاف فاعل يا مفعول وچې دې حذف سوى وايې مضاف اليه په ځاى کې د رېدلاى سواى، نو د هغه مضاف اليه ځخه هم روا دى و د، کذالک که ملت حذف سي او داسي وويل سي "بل نتبع ابراهيم حنيفاً معنى يې صحيح ده فافهم.

## وَاتَّخَذَ اللّٰهُ اِبۡرٰهِيۡمَ خَلِيۡلًا ﴿۱۲۵﴾

او ګرځولى و خداى جل جلاله ابراهيم خپل خليل يعني صديقاً صافي المحبة.

**پوه سه**: چې دا جمله معترضه ده محل د اعراب نه لري، او بعض مفسران وايي چې د "خلة" معنا فقر او احتياج ده، نو د خليل معنى فقير الى الله في کل الامور چناچه هغه وخت چې نمرود جبار ابراهيم د منجنيق په ذريعه لاس تړلى لغ و اور ته ور وغورځوى جبرائيل عليه السلام ابراهيم عليه السلام په نهير کې ونيوى او ورته وه يې ويل "هل لک من حاجة" ابراهيم عليه السلام ورته وويل "اما اليک فلا" جبرائيل عليه السلام ورته

وویل چې خدای ﷻ ته کوم عرض نه لرې؟ ابراهیم علیه السلام ورته وویل "حسبي من سؤالي علمه بحالي" درویش وایي چې هذا غایة الفقر والاحتیاج الی الله ﷻ.

**یوه سه:** چې عبدالرزاق، ابن جریر، ابن المنذر، او ابن ابي حاتم رحمهم الله پخپلو تفاسیرو کې وایي په روایت له زید بن اسلم ﷺ څخه چې اول جبار په مځکه کې چې خلګ به یې امر کول پخپل عبادت سره یعنې د خدايي دعوه یې کړې وه نمرود و، نو له اطرافو څخه به قافلې ورته را رواني وې چې ده به غنم ورکول. نو ابراهیم علیه السلام هم د یوې قافلې سره د غنمو لپاره روان سو، نو هر څوک چې به نمرود ته ورتېدی د غنمو لپاره نمرود به ورته ویل خدای دې څوک دی هغه به ورته ویل ته مې خدای یې، نو به یې د غنمو امر ورکړی، نو چې د ابراهیم علیه السلام وار راغلی او نمرود ورته وویل خدای دې څوک دی؟ ابراهیم علیه السلام ورته وویل "ربي الذي یحي ویمیت، قال انا احي وامیت" نمرود ورته وویل چې دا کار خو زه هم کولای سم. نو یو سړی چې په وژلو سره به محکوم و هغه به یې ازاد کړی او بل سړی به یې په دار کړی. قال یعني ابراهیم فان الله یاتي بالشمس من المشرق فات بها من المغرب فبهت الذي کفر" نو ابراهیم علیه السلام ته یې غنم نه کړه ور، نو ابراهیم علیه السلام خالي جولونه پر اوښ باندې کړه د کور وخوا ته را روان سو په لاره کې پر یوه سپېره غونډۍ د رېګ ورغلی، نو یې د ځانه سره فکر وواهه چې دا جولونه به د دغو رېګو ډک کړم نو اول وار چې کور ته ورسم هغه به خوشحاله سي چې هغه دې غنم یې راوړه، کورته چې راغلی بار یې له اوښه کښته کړی ستړی و بیده سو. ماینه یې راولاړه سوه چې وه یې ګوري چې څرنګه غنم یې راوړي دي چې وه یې کتل په جولو کې ډېر ښائسته وره وه، نو یې چابک خیشته کړه او ډوډۍ یې پخه کړه. ابراهیم علیه السلام چې د نمرود وخوا ته تلی په کور کې یې وره نه وه، نو ابراهیم علیه السلام چې راوېښ سو ماینې یې ډوډۍ ورته کښېښول. ابراهیم علیه السلام ورته وویل چې دا ډوډۍ دې له کومه کړه؟ ماینې یې ورته وویل چې دا تا چې وره راوړي وه له هغو څخه مې پخه کړه، نو ابراهیم علیه السلام پوه سو چې دا د خدای ﷻ له خوا رزق دی فحمد الله.

**درویش وایي:** چې کلبي رحمه الله له ابي صالح رحمه الله څخه او هغه له ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چې د ابراهیم علیه السلام کنیت ابو الضیفان و، یعني د مېلمنو پلار او کور یې هم د لوی لارې پر غاړه و، نو هر څوک مسافر چې به پر دې لاره تېرېدل د

ابـراهیم عليه السلام کـور یـې مېلمـسـتـون و، نـو یـو کـال کـاختـي مـسـلطه سـوه او د ابراهیم عليه السلام مېلمستون سوړ پاته سو، او ابراهیم عليه السلام ته به د هر کال وړه او غنم دده د مصري مخلص له خوا راتله، نو ابراهیم عليه السلام مریان او اوښان وهغه خپل دوست مصري ته واستول، نو خلیل مصري د ابراهیم عليه السلام وغلمانو ته وویل چې سږ کال پر موږ هم کاختي مسلطه ده، نو ابراهیم عليه السلام که یوازې د خپل کور لپاره اوړه غواړي نو یو بار به ورکړم او که د مېلمنو غم ورسره دی، نو دونده طاقت په ماپوري هم نسته. القصة د ابراهیم عليه السلام مریان خالي جولونه پر اوښانو راروان سوه چي د ابراهیم عليه السلام کور ته رانژدې سوه نو پر یوه رېگینه شپله یې یو د بل سره وویل چي راځئ چي تول جولونه له دې رېگه ډک کړو تاچه خلګ ونه وایي چي د ابراهیم عليه السلام مریان ناکامه راغله. نو ابراهیم عليه السلام ته چي را ورسېدل نو صورت حال یې تول ورته وواېه په دغه وخت کي د ابراهیم عليه السلام کور داري بي بي ساره بیده وه په صورت حال نه سوه خبره، چي را ویښه سوه ډک ډک جولونه یې په سرای کي ولیدل د جولو خولې چي یې ورخلاصي کړې د ډېرو صفا اوړو ډک وه، او ابراهیم عليه السلام د ناامیدی په خوب کي ډوب بیده و، ماینې یې چابک مینځیانې ډوډۍ پخونکي وهځولې چي ژر کوئ مېلمنو ته ډوډۍ پخه کړئ، خیر مېلمنو ته یې ډوډۍ ورکړه، ابراهیم عليه السلام چي راویښ سو د ډوډۍ بوی پر اومښتی، نو ساره ته یې وویل "من این هذا قالت من خلیلک المصري، قال ابراهیم لا بل من عند خلیلي الله تعالی".

**یوه سه:** چي مقام د خلت وعلیه الصلوة والسلام ته هم حاصل و. من حدیث ابي سعید الخدري رضي الله عنه قال علیه الصلوة والسلام الا وصاحبکم خلیل الله رواه الترمذي، او حاکم رحمه الله هم حدیث راوړی دی له جندب بن عبد الله رضي الله عنه څخه چي ما له علیه الصلوة والسلام څخه واورېدل "ان الله اتخذني خلیلاً کما اتخذ ابراهیم خلیلاً" او طبراني له ابن مسعود رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چي علیه الصلوة والسلام وویل "ان الله اتخذ ابراهیم خلیلاً وان صاحبکم خلیل الله وان محمداً سید بني آدم یوم القیامة" بیا علیه الصلوة والسلام دا آیت دلیل د اثبات د سادت خپل وواېه "عسی ان یبعثک ربک مقاماً محموداً" چي مقام د شفاعت کبری دی چي تول انبیاء علیهم السلام به نفسي نفسي وایي، او نبي عليه السلام به امتي یارب وایي.

وَلِلّٰهِ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَیْءٍ مُّحِیْطًا ﴿۱۲۶﴾

او خدای ﷻ لره دي خاص هغه شیان چي په اسمانو کي دي چي ملائکې دي او لمر، سپوږمی، ستوري، جنتونه و غير ذالک مما في علمه تعالى او هغه شيان چي په مځکه کي دي من الحيوانات والجن والنباتات والجواهر وغير ذالک مما يعلمها الله يعني دا ټوله مخلوق د خدای دي او ملک د خدای ﷻ دی.

**یوه سه:** چي "مافي السموات آه" مبتدا، ده او جار ومجرور يعني "لله" يې خبر دی او د خبر مذکور د تقديم دا فائده ده چي حصر راولي يعني مخلوقيت د مذکوره شيانو او مملوکيت د هغو مخصوص او محصور په خدای ﷻ پوري دی او بل هيڅ شي لره د شرکت د خدای ﷻ سره لار نسته کما يدل عليه دلائل العقلية والنقلية. سعدي شيرازي رحمه الله وايي.

برگ درختان سبز در نظر هوشيار     هرورقی دفتریست معرفت کردگار

**فائده:** دا جمله اتصال معنوي لري د هغې جملې سره "ومن احسن دينا آه" وجه الربط بينهما انه لما کان جميع الاشياء مخلوق الله ﷻ خاصةً لاشريک له تعالى في ذالک، نو پر هر انسان لازمه داده چي خپل عبادت چي په وجه تعبير خندي وسو هم خاص په خدای ﷻ پوري وگرځوي، او دی خدای ﷻ احاطه کونکی پر هر شي ای بالعلم والقدرة وليس المراد الاحاطة الجسمانية لاستحالة الجسمية عليه تعالى.

**یوه سه:** چي حاکم په مستدرک کي وايي چي په جاهليت کي دا قانون و چي ولد که څه هم نر وای چي کوچنی وای ميراث به يې نه ورکاوه، او ښځه که لويه وای که کوچنی ميراث يې نه ورکاوه او دوی به ويل هغه څوک چي په ميدان کي د جنګ نه سي دربدلای هغه د ميراث حق نه لري، نو چي د اسلام دين منځ ته راغلی نو صحابه کرامو رضي الله عنهم په دې باب کي له عليه الصلوة والسلام څخه پوښتنه وکړه، فنزلت هذه الآية.

وَيَسْتَفْتُوْنَكَ فِی النِّسَآءِ ؕ

دوی طلب د فتوٰی کوي له تا څخه په باره کي د ښځو، په صحاح کي وايي چي فتی في الجواب عما يشکل من الاحکام، نو چي باب ته د استفعال ولاړی نو معنی يې طلب د جواب دی په مشکله مسئله کي د ميراث د ښځو. وجه د اشکال ددې

مسئلې د ميراث د ښځو داده چې دا ددوی د جاهليت له اعتقاد څخه خلاف وه.

**درويش وايي:** چې په خصوص کې د شان نزول ددې آيت مفسرين اختلاف لري بعض مفسرين وايي چې دا آيت په باره کې د ميراث د ام کحة د لونړو له پلار څخه چې وفات سوی و او دا قصه مفصله په دې تفسير کې تېره سوه، او بعض مفسرين وايي چې عيينه بن حصين نبي ﷺ ته راغلی چې موږ ته خبر راکړه سوی دی چې ته لور ته د ميت نصف د مال د ميت ورکوې او خور ته هم نصف ورکوې يعنې په بعض وختو کې وانما نورث من يشهد القتال ويحوز الغنيمة، نو عليه الصلوة والسلام ورته وويل هكذا امرت. او ابن المنذر د ابن جبير ﷺ څخه داسې روايت کړی دی چې څه وخت چې آيت المواريث په سورة النساء کې نازل سو يعنې په هغه آيت ښځو ته هم حق د ميراث ورکړه سوی و. نو دا پر خلگو سخته پرېوته او دوی به سره ويل چې ښځه او کوچنی به هم دونه ميراث وړي لکه نر بالغ. نو راغله د نبي ﷺ څخه يې پوښتنه وکړه فنزلت هذه الآية، او روح المعاني يو اورېد شان نزول راوړی دی چې نقل کول يې تضيع د وخت ده.

**درويش وايي:** چې د "في النساء" لفظ که څه هم مجمل دی يعنې د ښځو په څه باره لکن د مذکوره شان نزولونو څخه دا معلومه سوه چې سوال او فتوی د ميراث د ښځو په باره کې وه.

**قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيْكُمْ فِيْهِنَّ ۙ وَمَا يُتْلٰى عَلَيْكُمْ فِي الْكِتٰبِ**

ته ورته ووايه چې خدای ﷻ بيان د حکم ددوی درته کوي او دغه رنگه حکم درکوي هغه څه چې لوستل کېږي پر تاسې په کتاب کې يعنې په قرآن عزيز کې چې آيات د ميراث دي.

**يو هسه:** چې "ما" موصوله معطوف ده پر کلمه د "الله" يعنې يوصيكم الله في اولادكم للذكر مثل حظ الانثيين الى اخيرها. چې په اول کې ددې سورت ذکر سوه او نور ځايونه د قرآن مبارک.

# فِي يَتٰمَى النِّسَآءِ

ای في شان یتامی آه.

**یوه سه:** چي اضافت د "یتمی" و"نساء" ته په معنی د "من" ده لانه اضافة الی جنسه او حرف جر یعني في متعلق ده په "یتلی" پوري لکه جار سابق چي هم متعلق په یتلی پوري و.

# الّٰتِيْ لَا تُؤْتُوْنَهُنَّ مَا كُتِبَ لَهُنَّ وَتَرْغَبُوْنَ اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ

هغه یتامی النساء چي تاسي نه ورکوئ دوی ته هغه څه چي خدای ﷻ ددوی لپاره فرض گرځولی دی یعني میراث ولور او نور حقوق ددوی. او ستاسي رغبت او شوق کیږي ددوی ته چي تاسي په نکاح کړي دوی چي نکاح یې در ته روا وي یعني دوی ښائسته وي وهذا من بلاغة القرآن.

**درویش وایي:** چي دلیل ددې چي دا آیت له بلاغت څخه د قرآن دی دادی چي د "ان" سره که لفظ د "في" مقدر سي. نو معنا یې هغه ده چي اولاً درویش ذکر کړه په دې قول کي او ستاسي آه، او که له "ان" سره "عن" مقدر سي، نو دوهمه معنا یې مراد ده چي ما ذکر کړه چي ستاسي نه کیږي ددوی و نکاح آه، او سره ددې چي "ان تنکحوا هن یوه صیغه ده.

**یوه سه:** چي د "ان" سره که "في" مقدر وي نوځو معنی یې هغه ده چي موږ ذکر کړه او که "عن" ورسره مقدر وي "ترغبون عن ان تنحوهن" نو یې معنا داده چي ستاسي شوق نه کیږي ددوی ونکاح ته په صورت کي ددې چي یتیمه بدرنگه وي.

**یوه سه:** چي ابن المنذر د حسن بصري رحمه الله څخه رایت کوي چي اوله معنی مراد ده او ابن سرین رحمه الله وایي چي دوهمه معنی مراد ده.

# وَالْمُسْتَضْعَفِيْنَ مِنَ الْوِلْدَانِ

دا عطف دی پر "یتامی النساء" باندي، ولي اهل جاهلیت کوچنیان که څه هم نر واي میراث یې ورکاوی کمامر بلکې مالونه د یتیمانو به یې خوړله.

## وَاَنْ تَقُوْمُوْا لِلْيَتٰمٰى بِالْقِسْطِ

دا عطف دی پر "يتامى النساء" باندي يعني مايتلى عليكم في الكتاب يعني قولـه تعـالى "وآتـو اليتـامى امـوالهم" پـه دې سره تاسي امر کوي چي تاسي به دربږئ و يتميانو ته يعني تربيه به يې کوئ په عدل سره که په ميراث کي وي او که د يتيم په مال کي وي "قسط" يې دا دی چي ميراث به د ميت چي قريب وي د يتيم وارث به يې ورکوي او مال د يتيم به نه خوري يعني الا بالمعروف کما في موضوع آخر من القرآن.

## وَمَا تَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِهٖ عَلِيْمًا ﴿۱۲۷﴾

او هغه چي تاسي يې فعل وکړئ د يو خير د کار په باره کي د ښځو او يا د يتيمـانو او غير ذالک نـور کارونه د خير لکه لمونځ فرضي يا نفلي او صدقه فرضي يا نفلي او روژه فرضي يا نفلي، نو په تحقيق خدای ﷻ ستاسي د خير په کار خبر دی يعني په اندازه د کار د خير به ثوابونه درکړي يا په دې دنيا او يا په آخرت کي او کېدای سي چي په دواړو حياتو کي دي ثواب درکړي لانه تعالى على مايشاء قدير.

**درویش وایي:** چي په مناقبو کي د امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله داسي راغلي دي چي يوه ورځ يوه بوډۍ ښځه دوکان ته دده ورغله او ورته وه يې ويل چي يوه بېچاره ښځه يم چي خپله لور و مېړه ته ور ودوم، نو ته يو ښه او سنګين ټکر او جامه راکړه، امام اعظم رحمه الله يوه نوې او قيمتي جامه ورته راواخستله چي قيمت يې څلور سوه درهمه و، نو ښځي ورته وويل چي زما سره ښه وکړه او دا جامه په هغه قيمت راکړه چي تاته پرته ده، نو امام اعظم رحمه الله يو ګړی فکر وواهه باره يې ښځي ته وويل چي په څلور روپۍ يې واخله. ښځي ورته وويل چي مسخرې او پسخند ولي راباندي وهې، ابو حنيفه رحمه الله ورته وويل معاذ الله ان اکون من الساخرين. لکن خبره داده چي ما دوې دغه کپړې رانيولي وې نو يوه له هغو دوو څخه مي په ټوله هغه مبلغ خرڅه کړه چي ما پر دواړو ورکړي وې من الدارهم په څلور درهمه کم. نو دا جامه ماته په څلور درهمه کي پرته ده. نو ښځي څلور درهمه و امام اعظم رحمه الله ته ورکړه او

خوشحاله د دوکان څخه را رهي سوه، سعدي شیرازي قدس سره وایي

بگیر ای جوان دست درویش پیر — نه خود را بیفگن که دستم بگیر
کسی نیک باشد به هر دو سرای — کی نیکی رساند بخلق خدای

**یوه سه:** چي بخاري او ابو داؤد رحمه الله له عائشي رضي الله عنها او ترمذي مثل د هغه له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت کړی دی چي سوده بنت زمعة رضي الله عنها چي د امهات المؤمنین څخه وه او دا سپین سري سوه او یره ئې پیرېده چي علیه الصلوة والسلام به طلاق راکړي، نو د علیه الصلوة والسلام یې خواست وکړی چي ما له خانه مه جلا کوه زه به خپل نوبت و عائشي رضي الله عنها ته ور وبخښم یعني زما صرف دغه په کار دی چي په ورځ د قیامت ستا د ازواجو په جمله کي حشر سم، نو دا آیت نازل سو.

## وَإِنِ امْرَأَةٌ

**یوه سه:** چي دا کلمه مرفوع علی شریطة التفسیر ده یعني مرفوع په "خافت" محذوف سره چي خافت مذکور یې تفسیر دی.

**سوال:** ولې په خافت مذکور سره مرفوع نه سي کېدای؟

**ځواب:** نه سي کېدای ولې چي د فاعل لشتباه د مبتدا سره راځي کما تقرر في النحو.

## وَإِنِ امْرَأَةٌ خَافَتْ مِنْ بَعْلِهَا نُشُوزًا أَوْ إِعْرَاضًا

که بیرېده او داسي سودا وربیدا سوه چي زما مېړه ترفع کوي زما له صحبته په سبب ددي چي بد یې را څخه کېږي او داسي علامې هم موجودي وي چي د ماینې دا خیال وچي مېړه به ما ته طلاق راکړي، او یا به یې مخ ګرځني اراده او چنداني ددې خبري ته به یې غوږ هم نه نیوی او ناسته ولاړه به یې کمه ورسره کوله. او د ماینې زړه نه غوښتي چي ما طلاقه کړي بسبب من الاسباب.

## فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا أَنْ يُصْلِحَا بَيْنَهُمَا صُلْحًا

نو ګناه نسته پر دواړو چي یو صلح تر منځ وکړي او زوجیت ته دوام ورکړي لکه سودې رضي الله عنها چي د علیه الصلوة والسلام سره صلح وکړه چي خپل نوبت یې وعائشې رضي الله عنها ته ورکړی او خپل زوجیت ته یې دوام ورکړی.

**یوه سه:** چي اصل د "یصالحا" په تشدید د صاد "یتصالحا" و نو تاء یې په صاد

بدله کړه او په صاد کي يې مدغمه کړه او دا هم د اکثرو قراؤ قرائت دی او کوفيان يې "يصلحاً" وايي يعني له بابه د افعال. صلح هم داده چي ماينه مهر ولور چي پر مېړه يې باندي دی تر تیوله او یا تر بعض ورتېره سي. او يا مېړه ته ووايي چي نفقه نه درڅخه غوارم يا د اقرباؤ د خوا او يا خپله مزدوري زه خپله نفقه برابروم او یا چي متعددي ماينې د مېړه وي. دا ورته ووايي چي زه نوبت نه غوارم. او يا ماينه يو شی خپل له مال څخه مېړه ته بخشش کړي تاچه د مېړه مينه او محبت ورسره پيدا سي او نحو ذالک.

**يوه سه:** چي "صلحاً" مفعول مطلق دی او مفعول به بينهما دی.

وَالصُّلۡحُ خَيۡرٌ

او صلح بای وجه کان افضل تر جلا والي د مېړه او ماينې تر منځ بالطلاق او تر هره ورخ جنگ وجدل او تر بد ژوند د مېړه او ماينې تر منځ.

**يوه سه:** چي دا آيت دفع د توهم ده چي له "لاجناح" څخه پيدا کېدی، توهم دادی چي په صلح کي خدای ﷻ گناه نفي کړه نور به صلح بنه کار نه وي، ولي ماينه چي خپل تر يو حق وتېرېږي دا گويا مېړه ته رشوت ورکوي. نو خدای پاک دفع ددغه توهم وکړه چي صلح بين الزوجين کار د خير او ثواب دی.

**فائده:** دا آيت که څه هم په دفع کي د خصومت واقعه في حقوق النكاح نازل دی لکن حکم يې عام دی، يعني د دوو کسانو تر منځ چي خصومت وي چي مفضي وجنگ او قتال ته گرځي اهل خير دي صلح تر منځ د متخاصمينو وکړي او فتنه دي دفع کړي فذالک الصلح خير من التخاصم الجاري.

**يوه سه:** چي صلح درې قسمه ده يوه صلح مع الاقرار ده مثلاً يو چا په بل چا دعوه د پور وکړه مدعي عليه په اقرار و لکن ويل يې چي نه يې ورکوم يا د دونه لوی پور د ورکړي طاقت نه لرم. نو ثالث بالخير خلگو يې تر منځ يو ډول صلح وکړه چي دواړه طرفه يې راضي کړه فهو خير من استدامة الخصومة بينهما. او بل ډول صلح د سره د سکوت د مدعي عليه يعني مدعي عليه نه اقرار کوي او نه انکار مدعي ورته تېنگ وي چي خواه مخواه زه خپل پور غوارم بيا يې خلگ تر منځ صلح

وکړي، نو دا صلح خير ده تر هغه چې مدعى يې نه پرېږدي او مدعى عليه هيڅ نه
واي، او بل صلح د سره د انکار د مدعى عليه يعني چې د مدعى پر ما هيڅ پور نه
دی باندي او شاهدان نه وي او مدعى ورته ټينګ وي چې زما پور درباندي دی او
حتماً به يې راکوي بيا اهل الصلاح والخير تر منځ يو ډول صلح وروکړي، نو دا
صلح خير ده تر دوام الخصومة بنهما اذ الخصومة الدائمة قد يفضي الى القتال.

**فائده:** دا درې سره صلح روا دي په نيز د ابو حنيفه رحمه الله، او مالک، احمد او
امام شافعي رحمهم الله وايي چې صلح سره د انکار يا سکوت نه ده روا. والدلائل
والجوابات في کتب الفقه خصوصاً کتاب الفقه على المذاهب الاربعة.

وَأُحْضِرَتِ الْأَنفُسُ الشُّحَّ ۚ

او حاضر دي د انفس سره د انسانانو بخل سره د حرص يعني بخل د انسان
طبعي کار دی يعني الشح نه غائبېږي له انسانه څخه.

**فائده:** دا حکم بناء پر انفسو د اغلب انسانانو دی لان الصحابة رضي الله عنهم والاولياء
الکرام مبرئون عن الشح، يعني په مانحن فيه کي به نه ماينه اونه مېړه تر خپل
حق تېر سي چې صلح ته غاړه کښېږدي في الاغلب په سبب د بخل او حرص.

**پوه سه:** چې "شح" بخل ته چې حرص هم ورسره وي وايي، دا دووه خويه چې
يوازي يو وي د ېر بد خوی دی، نو چې دواړه سره يو ځای سي نو به څونه بد خوی
ځني جوړ سي، عبد الله بن وهب له ليث څخه روايت کړی دی چې ماته دا خبره
رسېدلې ده چې شيطان په خپل صورت د نوح عليه السلام سره ملاقي سو، نو شيطان
ورته وويل چې نوح له حسد څخه ځان ژغوره، ولي چې ما د آدم سره حسد مختاره
کړی خدای جل جلاله له جنتو څخه وشړلم، او له حرصه ځان ساته ولي آدم چې د يوې
درختي حرص وکړی چې خدای جل جلاله ځني منع کړی و له جنته يې وه ايستی.

وَإِن تُحْسِنُوا وَتَتَّقُوا فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرًا ﴿١٢٨﴾

**پوه سه:** چې خطاب په دې آيت کي نر او ښځي دواړو ته دی، نو معنی د آيت دا ده
چې ای نرانو او ښځو يعني الازواج والزوجات که تاسي معامله د حسن ازدواج چې
نران په اداء د حقوقو د زوجاتو به کوئ او ددوی سره به عدالت کوئ که مو څه هم بد

ځني كېږي يا له بدرنګۍ له سببه او يا د اخلاقو له سببه، او ښځي دي بيا حقوق د ازواجو پر ځاى كوي كه څه هم پر خلاف د دوى د مشتهي وي، او دا معامله تاسي دواړه طرفه عملي كړئ، او تاسي دواړه طرفه له خداى ﷻ څخه وېرېږئ په سبب د نشوز او اعراض او په كمولو كي د حقوقو يو پر بل باندي، نو په تحقيق خداى ﷻ دى په عملو ستاسي ښه خبر دى، نو به تاسي ته جزاء په ورځ د قيامت دركړي كه مو حسن معامله كړې وه جزاء د حسن به دركړي، او كه مو بده معامله كړې وه د بدو جزاء به دركړي يعني دوږخ، د قديم تاريخ په پاڼو كي راغلي دي چي يو سړى ډېر بد رنګه و او مايه يې ډېره ښائسته وه، نو دي ماينې او مېړه يوه ورځ سره وكتل. نو بې وويل الحمدلله، مېړه ورته وويل چي حمد دي پر څه شي ووايه؟ ماينې يې ورته وويل چي حمد مي پر دې ووايه چي زه او ته دواړه جنتيان يو، ولي چي تا ته خداى ﷻ داسي ښائسته ماينه دركړې ده لكه زه چي ته هر وخت د خداى ﷻ شكر وايې چي ما ته دي ځرنګه ښائسته ماينه راكړې ده، او ما ته تا رنګه بد رنګه اوبې خونده مېړه خداى ﷻ راكړى دى، نو ما خداى ﷻ ته صبر كړى دى، وقد وعدالله بالجنة للشاكرين والصابرين.

سعدي شيرازي رحمه‌الله وايي

| | |
|---|---|
| چو مستوره باشد زن خوبروی | بد يدار او در بهشت شوی |
| اگر پارسا باشدوخوش سخن | نگه درنكويي وزشتی مكن |

حاصل د دې دوو بيتو د سعدي رحمه‌الله دادى كه ښځه ښائسته وي لكن مستوره نه وي كوڅه ګښته بازار ګښته وي، نو د مېړه لپاره دوږخ ده ولي چي دا له كوره وځي نو مېړه يې سودايي وي چي د چا سره به يې زناء كړې وي، او كه ماينه عابده نه وي او خوش اخلاقه هم نه وي هغه د مېړه لپاره هم دوږخ ده.

## وَلَنْ تَسْتَطِيعُوٓا أَنْ تَعْدِلُوا بَيْنَ النِّسَآءِ

او تاسي اې نرانو او د متعددو ماينو خاوندانو ستاسي په وس هيڅ نه ده پوره چي تاسي دي عدل وكړئ په متعددو ماينو كي يعني من كل الوجوه عدل حتى په محبت قلبي كي او په جماعو كي هم. ولي چي په ماينو كي د ډېرو لاړو فرق

سته من حيث الجمال وحسن الاخلاق والتدين وفي السن يعني يوه ښوانه وپياو
بله سپين سرې وي، نو هغه عدل چې شرعاً لازم دى اول په برابري کې د وارچې
په عربي يې قسم بولي، او دوهم په نفقه کې، دريم په ملبوساتو او مفروشاتو
کې، څلورم دا چې پر يوه دې پوښتنه کوي او د هرې يوې سره دې تو کې تکالي
کوي چې په عربي يې ممالحة بولي. په حديث شريف کې راغلي دي چې روايت
يې اصحاب السنن الاربعة کړى دى له ابو هريرهؓ څخه داسې راغلي دي چې
عليه الصلوة والسلام به قسم کاوه په منځ کې د ازواجو مطهراتو او عدل به يې
کاوه لکن دا دعا، به يې کوله هذا قسمي فيما املک فلاتواخذني بما تملک ولا
املک، مراد له "لااملک" څخه مجاهد او عبيده وايي چې محبت قلبي دى. او ابن
مسعودؓ وايي چې جماعي دي.

وَلَوْ حَرَصْتُمْ فَلَا تَمِيلُوا كُلَّ الْمَيْلِ فَتَذَرُوهَا كَالْمُعَلَّقَةِ

که څه هم تاسې لوى حرص او کوشش وکړئ په عدل کې من کل الوجوه، لکن
تاسې کامل ميل او ظلم پر هغه ښځه مه کوئ چې ستاسې ناخوښه وي يعني په
قسم او په نفقه کې ظلم مه پر کوئ، نو تاسې وګرځوئ دا ناخوښه ماينه چې نه
طلاقه وي او نه مېړه والا وي، ابو هريرهؓ له آنحضرتﷺ څخه روايت کړى دى
که د يو سړي دوې ماينې وي او ميل يې د يوې وخواته وي يعني په کارو کې د
عدل هغه سړى به په ميدان کې د قيامت حاضر سي دده يو طرف به مائل يعني کوږ
وي رواه اصحاب السنن الاربعة.

وَإِن تُصْلِحُوا وَتَتَّقُوا فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴿١٢٩﴾

او تاسې هغه ما مضى جور اصلاح کړئ يعني توبه وکاږئ او ماينه مو هم
راضي کړه او په وروسته کې هم تاسې د تقوى لار خپله کړه، نو خداى ﷻ
بخښونکى دى چې هغه ما مضى جور يې دروبخښي او مهربانه دى.

وَإِن يَتَفَرَّقَا يُغْنِ اللَّهُ كُلًّا مِّن سَعَتِهِ ۚ وَكَانَ اللَّهُ وَاسِعًا حَكِيمًا ﴿١٣٠﴾

او که مېړه او ماينه سره جلا سي بطلاق الزوج ايا ها خداى ﷻ به مستغني

کړي هر يو د مهره او مايني له هغه بل څخه له فراخيه د خداى ﷻ ، مهره به بې پرواه له مايني څخه بله ماينه پيدا کړي او مايني ته به خداى ﷻ بل مهره ورکړي او دى خداى ﷻ قادر پر هر شي. او يا معنى داده چي فراخه دى فضل دده او رحم دده او په هر کار کي حکمت او مصلحت لري.

**فائده:** که يو سړي د يوې مايني د قسم حق ځو زمانه تلف کړي و دا خو گناه کبيره ده، پر ده توبه لازمه ده او پس له توبې څخه د مظلومي مايني له حقه په قضاء راوړي.

**مسئله:** که د سړي په نکاح کي يوه مينځه وه او بله حره ښځه وه نو د حري سره به دوې شپې تېروي او د مينځي سره به يوه شپه تېروي.

**مسئله:** په سبب د مرض دي قسم نه پرېږدي مگر نه په رضا د ماينو. ولي چي بخاري روايت کړى دى چي سلسله دسند يې و عائشې ﷺ رسولي ده چي عليه الصلوة والسلام به په مرض موت کي پوښتنه کول اين انا غداً اين انا غداً غرض يې د عائشې ﷺ ورځ وه. ازواجو مطهرات چي پوه سوې نو ټولو عليه الصلوة والسلام ته اجازه ورکړه چي د مرض شپې او ورځي بلا قسم د عائشې ﷺ سره تېرې کړه.

**فائده:** په قسم کي صرف شپه تېرول شرط ده جماع شرط نه ده. يعني که د يوې ښځي په نوبت کي د هغې سره وطي وکړې. نو د هغې بلي په وار کي به هم وطي کوي. ولي چي وطي او جماع خو د زړه په شوق سره کېږي او هغه د سړي په طاقت نه ده پوره.

**مسئله:** که سړى په سفر يو خوا ته تلى بيا قسم د ماينو تر منځ پر مهره واجب نه دى عند ابي حنيفه ﷬ لکن اولى داده چي قرعه اندازي د ماينو تر منځ وکړي كما كان يفعل رسول الله ﷺ حال الخروج الى السفر.

وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ؕ

او خداى ﷻ لره دي هغه شيان چي په اسمانو يا په ځمکه کي دي يعني ملكاً وخلقاً وعبيداً وفيه تنبيه على كمال وسعة قدرته وملكه وخلقه وعلمه.

وَلَقَدْ وَصَّيْنَا الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ مِنْ قَبْلِكُمْ وَإِيَّاكُمْ أَنِ اتَّقُوا اللَّهَ

او موږ په تحقیق وصیت کړی دی یعني امر مو کړی و هغو کسانو ته چي هغو ته کتاب ورکړه سوی و، تر تاسي دمخه یعني یهود او نصاری او چي تر دوی دمخه امتونه وه.

**پوه سه:** چي له کتاب څخه مرا جنس دی نو ټولو کتابو ته یې شمول صحیح دی، او تاسي مؤمنانو د دین محمدي مې هم امر کړي یاست چي له خدایه وبېرېږئ، یعني شرک او کفر مه کوئ بقرینة مابعده.

**پوه سه:** چي "ان" په "اتقوا الله" کي مصدر دی په تقدیر د با ای بان اتقوا الله.

**فائده:** لام د لقد موطئة د قسم دی ای والله قد آه.

وَإِنْ تَكْفُرُوا فَإِنَّ لِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۚ وَكَانَ اللَّهُ غَنِيًّا حَمِيدًا ﴿١٣١﴾

او که تاسي کفر وکړئ نو خدای ﷻ لره بادشاهي د اسمانو او د مځکي، والمعنی نو خدای ﷻ قادر دی پر عذاب ستاسي ځای د نجات د خدای ﷻ د عذاب نسته. او یا د آیت معنا داده چي خدای ﷻ چي دونه وسیع ملک لري، نو ستاسي وعبادت ته اړ هم نه دی نه ستاسي په عبادت کولو کي وخدای ﷻ ته نفع رسېږي. او په صورت کي د نه کولو یې خدای ﷻ ته ضرر نه راجع کېږي او نفع وضرر وتاسي ته راجع کېږي. دا هم د خدای ﷻ فضل او احسان دی چي موږ ته امر او نهي کوي او د نفع او د ضرر کارونه رابنيي په واسطه د راستولو د انبیاء علیهم السلام او په انزال سره د کتب سماویه وو. او خدای ﷻ غني دی یعني حاجت نه وچا ته لري او نه د چا وعبادت ته اړ دی، او محمود یعني مستحق د حمد دی. ولي چي ټوله نعمتونه چي په هغو سره حمد پر سړي لازمېږي د خدای له خوا دی که یې څه هم څوک حمد نه وایي.

وَلِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۚ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ وَكِيلًا ﴿١٣٢﴾

او خدای ﷻ لره دي هغه شیان چي په اسمانو او مځکه کي دي یعني خلقاً وملکاً وعبیداً.

**پوښتنه**: دغه آیت دا یې دریم وار دی چې مکرر راغلي. نو فائده د دې وار تکرار یې څه ده؟

**ځواب**: ددې وار د تکرار فائده دا ده چې خدای ﷻ اهل ددې دی چې سړی توکل او تفویض د خپلو کارو وده ته وکړي. نو دا تکرار یې تمهید لقوله "وكفى بالله وكيلاً" والحاصل ان تكرار قوله تعالى ولله ما في السموات وما في الارض د جدید فائدې لپاره دی مثلاً په اول وار کې تمهید و الى قوله ان اتقوا الله. او دوهم وار تمهيد و الى قوله وكان الله غنياً. او دریم وار تمهيد و الى قوله وكفى به وكيلاً فلا يتوهم الاستدارک في الآيات الكريمة.

## إِن يَشَأْ يُذْهِبْكُمْ أَيُّهَا النَّاسُ

که خدای ﷻ وغواړي یعنې اراده وکړي تاسې به فاني کړي یعنې مځکه به له تاسې خالي کړي اې خلګو ولې چې صرف اراده د خدای ﷻ ده په اعدام کې د خلګو.

**پوه سه**: چې مفعول د "یشاء" محذوف دی بدلالة الجواب علیه ای ان یشا. ذهابکم "ایها الناس" منادی ده په حذف د حرف نداء. کما في قوله تعالى "یوسف اعرض عن هذا.

## وَيَأْتِ بِآخَرِينَ ۚ وَكَانَ اللَّهُ عَلَىٰ ذَٰلِكَ قَدِيرًا ﴿١٣٣﴾

او پیدا به کړي نور خلګ ستاسې په ځای کې یعنې هغه خلګ به تر تاسې فرمان برداره خدای ﷻ وي، او یا معنی داده چې د انسان له نوع څخه به خارج حیوانان وي.

او دی خدای ﷻ پر دا عدام او ایجاد باندې کامل القدرة اذ لایعجزه شئ او دغسې خدای پاک هم کړي دي په دمخه زمانو کې مثلاً فرعون او قوم دده له خپلو کورو او قصرو څخه وه ایستل او په دریاب کې یې غرق کړه او ددوی په بنګلو کې بني اسرائیلو واړول وامثال ذالک کثیرة.

**پوه سه**: چې دا آیت دلیل دی د کمال قدرت د خدای ﷻ او هم د کمال صوریت د خدای ﷻ. ولې چې سره د لوی قدرت چې خدای پاک یې لري خلګ ورته شرکاء وایي لکه مشرکین د مکې وغیرهم او خدای ﷻ ته لونې وای لکه مجوسیان چې وایي ملائکة بنات الله. او خدای ته خلګ زامن وایي لکه نصارئ

چي وايي عيسى ابن الله او مريمه د خداى ﷻ مابينه بولي، او يهودان وايي چي عزير ابن الله. بلكي بعض كافران له وجوده د خداى ﷻ منكر دي لكه دهريان تعالى الله عن كل ماقالوا علواً كبيراً، او سره ددي خداى ﷻ و ټولو ته رزق وركوي او ښه ښه نعمتونه وركوي. سعدي شيرازي رحمه الله چه خوش گفته.

اديم سفر زمين سفره عام اوست	برين خوان يغما چه دشمن چه دوست

اى كريميكه از خزانه غيب گبر وترسا وظيفه خور دارى
دوستان را كجا كنى محروم تو كه با دشمنان نظر دارى

**درويش وايي**: چي د ابو هريره رضي الله عنه په حديث كي چي په صحيح اسنادو ثابت دى راغلي دي چي دا آيت چي نازل سو عليه الصلوة والسلام خپل لاس د سلمان فارسي رضي الله عنه پر شا كښېښو او دا يې وويل هم قوم هذا.

**فائده**: درويش وايي چي د متعددو آيتو تفسير او مصداق عليه الصلوة والسلام قوم د سلمان فارسي ښوولى دى، مثلاً په بخاري او مسلم كي له ابو هريره رضي الله عنه روايت دى. دى وايي چي موږ ناست وو د عليه الصلوة والسلام سره چي سورة الجمعة نازل سو. دې آيت ته چي ورسېدى "وآخرين منهم لما يلحقوبهم" قيل من هو يا رسول الله ﷺ نو عليه الصلوة والسلام لاس پر سلمان فارسي رضي الله عنه كښېښو "وقال لو كان الايمان عند الثريا لناله رجال من هؤلاء اى قوم سلمان" او دغه رنگه ترمذي له ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت كړى دى چي عليه الصلوة والسلام دا آيت تلاوت كړى "وان تتولوا يستبدل قوماً غيركم ثم لايكونوا امثالكم" خلكو ورته وويل من هؤلاء. يارسول الله ﷺ نو عليه الصلوة والسلام سلمان رضي الله عنه پر ورانه ووهه ثم قال هذا وقومه او زياته يې كړه "لو كان الدين عند الثريا. لتناوله رجال من الفرس" او نور ورته حديثونه هم سته لكن گفته اند كه مشت نمونه خروار است.

مَنْ كَانَ يُرِيْدُ ثَوَابَ الدُّنْيَا فَعِنْدَ اللّٰهِ ثَوَابُ الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ

كه څوک اراده د ثواب د دينا لري يعني فقط عوض دنياوي غواړي لكه رياء كار په اعمالو كي د خير او يا مجاهد لپاره د غنيمت نو په نېز د خداى ﷻ ثواب

ددنیا او آخرت دواړه سته.

**پوښتنه**: نحات هم دا وايي او منطقيين هم دا وايي چې په منځ کې د شرط او د جزاء په علاقه د سببيت خامخواه وي يعني يا به شرط علت وي د جزاء نحو ان کانت الشمس طالعة فالنهار موجود، او بالعکس نحو ان کان زيد ناهقاً کان حماراً. نو په دې ايت کې په منځ کې د شرط چې "من کان يريد الخ" دی او د جزاء چې "فعند الله آه" دی څه علاقه ستة؟

**ځواب**: اصل جزاء په آيت کې محذوفه ده او دليل د جزاء په ځای کې د هغه جزاء دريدلی دی. والتقدير من کان يريد ثواب الدنيا فقد خسر واخطاء في الطلب اذ عند الله ثواب الدنيا والآخرة فليطلبها جميعاً واليقل ربنا آتنا في الدنيا حسنة وفي الآخرة حسنة. او يا طلب د اشرف وکړي چې ثواب د آخرت دی چې ثواب د دنيا په هغه کې نغښتی دی مثلاً څوک چې جهاد کوي نيت د ثواب الآخرة وکړي که غنيمت پيدا سو فذالک ربح زائد تابع للمنوی الاصفی. وعلی هذا فقس المرائي بالعمل فتدبر.

**وَكَانَ اللّٰهُ سَمِيعًا بَصِيرًا ﴿١٣٤﴾**

او دی خدای عالم په مسمياتو او په مبصراتو. نو د خلکو په اغراضو هم خدای ﷻ خبر دی فيجاذی کل واحد مطابق دده د قصده اونيت سره کما ورد في الحديث المتفق عليه الطويل من کانت هجرته الی دنيا يصيبها او امرئة ينکحها فهجرته الی ماهاجر اليه.

**درويش وايي**: چې هر طاعت که قولي وي او که عملي وي او که مالي وي چې له رياء څخه عاري وي ومحضاً لله وي که لږ وي او که ډېر وي هغه غنيمت دی. په حديث صحيح کې راغلي دي چې په دوزخ کې يوه شپله ستة چې له هغې شپلې څخه پناه غواړي جهنم څلور سوه واره اعد للقراء المرائين دا شپله جوړه ده لپاره د رياکارانو قاريانو، شيرازي قدس سره

نکو سيرتي بی تکلف برون به از نيک نام خراب اندرون
عبادت باخلاص نيت نکوست وگرنه چه آيد زبيمغز پوست

**حکایت فارسي:** آورده اند که جوان مرد یعنی سخي غلام خویش را گفت سخاوت آن نیست که صدقه بکسی دهد که اورا بشناسد . یعني چي دا مصدق وپېژني چي په دې کي د ریا، گنجایش سته، ولي د مصدق چي دا یقین سي چي دا فقیر او مسکین ما پېژني نو داسي ریا، به یې په زړه کي ورو وگرځي چي دا فقیر به زما تعریف ډېر ځایونه وکړي . صد دینار بستان وبه بازار برو اول درویشی که بینی بوی ده غلام ببازار رفت پیری دید که حلاق سر اورا می تراشید زر بوی داد پیر گفت که من نیت کرده ام که هرچه مرا افتوح شود بوی دهم یعني حلاق ته به یې ورکوم وحلاق را گفت بستان حلاق گفت که من نیت کرده ام که سر اورا برای خدا می تراشم اجر خود از حق تعالی بصد دینار نمی فروشم غلام حسب فرمایش بادار خود کسی نیافت باز گشت وزر را پس اورد.

## یٰٓاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا کُوْنُوْا قَوّٰمِیْنَ بِالْقِسْطِ

اې هغه کسانو چي ایمان یې راوړی دی وسئ ډېر کوښښ او سعي کونکي په پر ځای راوړلو کي د عدل او همېشه توب وکړئ پر قیام د عدل.

**درویش وایي:** چي چونکه مخاطب په دې آیت کي ټوله مؤمنان دي کما یدل علیه عنوان الآیة نو مراد هم ځني عدالت عامه دی په دې معنی که عدالت وي د زوج بین الزوجات او که عدالت وي د امیر د فوج په منځ کي د فوجیانو او که عدالت وي د رئیس المملکة په منځ د عمومي رعایاوو، او که عدالت وي د قاضي د محکمه شرعیه اسلامیه په منځ کي د خصوم، نو واجب ده پر قاضي باندي برابري بین المتخاصمین في الجلوس والاقبال علیهما.

له ام سلمة ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وویل "اذا ابتلی احدکم بالقضاء فلیسا وبینهم ای الخصوم في المجلس والاشارة والنظر ولا یرفع صوته علی احد الخصمین اکثر من الآخر رواه اسحاق بن راهویه في مسنده.

**درویش وایي:** چي په لفظ کي د حدیث چي "ابتلی" یې په مجهوله صیغه وویل سوه ددې لپاره چي سړی دي پخپله طالب د قضاء نه گرځي او که څه یعني حکومت اسلامي یو عالم مجبوره کړی پر قضاء او په اخته یې کړی لکن حتی

الوسع دي ځان ځني ساتي خصوصاً في هذا الزمان، قيل

ابو حنیفه رحمه الله قضاء نه کرده وبمرد — تو بمیری اگر قضاء نه کنی

ومن بلاغات الزمخشري رحمه الله

قضات زماننا صاروا لصوصاً — عموما في القضايا لاخصوصاً

نخافوا منهمو لو صافحونا — للصوا من خواتمنا فصوصا

شُهَدَآءَ لِلّٰهِ وَلَوْ عَلٰٓى اَنْفُسِكُمْ

**پوه سه:** چي "شهدا" خبر بعد الخبر دی د "کونوا" یعني شاهدي اداء کوو خاصةً لپاره د خدای جل جلاله که څه هم دا شاهدي پر خپل ځان وي. شاهدي پر خپل ځان اقرار بالدين دی.

اَوِ الْوَالِدَيْنِ وَالْاَقْرَبِيْنَ

یا شاهدي پر مور او پلار او یا پر نورو قریبانو یعني په حقه شاهدي اداء کول پر مور او پلار عقوق د والدینو دی وکذا سائر الاقارب.

اِنْ يَّكُنْ غَنِيًّا اَوْ فَقِيْرًا فَاللّٰهُ اَوْلٰى بِهِمَا

که وي دا مشهود علیه غني چي له مقام څخه وفهمېدی. نو دده مراعات مه کوه. او که فقیر وي زړه مه پر سوځه بلکي شاهدي په ډک زړه لله پر اداء کړه. او خدای جل جلاله اقرب دی وغني او فقیر ته یعني تر تاسي. نو که شاهدي پر غني یا پر فقیر باندي صلاح نه وای نه به یې مشروع کولای.

**پوښتنه:** د نحو په کتابو کي وایي چي متعدد شیان چي په او سره ذکر سي ضمیر د مفرد به ورته راجع کېږي لان المراد واحد المتعدد. نو حق د ضمیر اولی به نه دی؟

**ځواب:** علامه تفتازاني رحمه الله په حاشیه کي د کشاف داسي ځواب ورکړی دی چي ضمیر راجع دی و جنس ته د غني او فقیر لا الی الغنی والفقیر المذکورین قبل بکلمة او حتی یرد ماقال في السوال او روح البیان هم دغه جواب ته اشاره کړي ده حیث قال ای جنسي الغني والفقیر. وهکذا اختار هذا الجواب علامة بغداد المحقق الآلوسي.

**درویش وایي:** چې ددې ځواب حاصل دادی چې دمخه چې غني او فقیر ذکر سوي وه هغه په عنوان د مشهود علیها وه او دلته په ضمیر کې د مثنی جنس د غني او فقیر مراد دی که مشهود علیهما وي او که نه وي. د مظهري رحمه الله دا خیال دی چې د علامة تفتازاني غرض دادی چې که ضمیر د "به" مفرد ویل سوی وای نو چا به توهم د اختصاص د مفرد ضمیر په غني یا فقیر پورې نه کولای. نو چې تثنیه یې ووایه دا توهم دفع سو.

**درویش وایي:** چې دا د مظهري یو صرف توهمي خیال دی د علامه تفتازاني غرض توجیه د قانون نحوي ده چې دمخ تېر سو چې متعدد شیان چې په کلمه د او ذکر سي وروسته چې ضمیر راجع کېږي مفرد به وي لیدل علی ان المراد بالمذکورین احدهما. وحاصل التوجیه ان ضمیربهما لیس براجع الی المذکورین یعني الغني والفقیر المذکورین لانهما هناک باعتبار کونهما مشهور علیهما والضمیر راجع الی جنسهما فافهم.

**درویش وایي:** چې مظهري هغه سوال چې مظهري پر تفتازاني کړی دی بقوله ویرد علیه ان الواحد من الغني والفقیر فلاتوهم للاختصاص انتهی مبني دی پر عدم فهم د مظهري مراد د تفتازاني کمامر عنقریب.

**درویش وایي:** چې بل جواب د مثنی ضمیر راوړی بقوله قلت ویمکن انیکون مرجع الضمیر المشهود له والمشهود علیه الذین دل علیهما الکلام آه. دا جواب به هلته صحیح وای که د ماقبل کلام څخه مشهود له فهمېدلای ولیس کذالک لان المذکور فیما قبل کلمة علی فهي تدل علی المشهود علیه دون المشهود له وسیاق الکلام السابق ایضاً علی ان الشاهد ینبغي ان لایراعي الغني لغناه فلایشهد علیه ولایرحم علی الفقیر لفقره فلایشهد علیه. فالمشهود له لیس مذکوره فیما قبل صراحةً ولا مفهوماً هذا ماعند العاصي الفقیر والعلم عند العالم الخبیر.

فَلَا تَتَّبِعُوا الْهَوَىٰٓ اَنْ تَعْدِلُوْا ۚ

او تاسي متابعت مه کوئ د خواهشاتو نفسیه و، یعني په اداء کې د شاهدي،

**یوسه:** چې د "ان" سره لام جاره مقدر دی او مراد له "تعدلوا" څخه عن الحق

دی فالمعنی ولاتتبعوا الهوی لان تعدلوا عن الحق الصريح ويمكن ان يقدر المضاف ای کراهة ان تعدلوا عن الحق. نو پر دواړو تقديرو تعدلوا په آيت کې مشتق دی له عدول څخه لا من العدل کما لا يخفى فافهم.

وَإِنْ تَلْوُوا أَوْ تُعْرِضُوا فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرًا

او که تاسي کږې کړئ ژبې له شاهدي څخه د حق يعني شاهدي خو ادا، کړئ لکن تحريف او تغير ورکړئ کما في روح البيان لي الشيئ فتله وتحريفه ولي الشهادة تبديلها وعدم ادائها على ماشاهده بان يميل فيها الى احد الخصمين انتهى. او يا اعراض او منع وکړئ له ادا، څخه د شهادة الحق. نو په تحقيق خدای ﷻ په ماتعملون سره دی يعني فيجازيكم.

**پوه سه**: چي کلمه د "ما" يا مصدريه ده ای بعملکم او يا موصوله فالعائد محذوف ای بما تعملونه. وهذا هو القانون في جميع القرآن.

**درويش وايي**: چي په اشتباه والنظائر کي چي د فقهي شريفي يو معتبر کتاب دی داسي راغلي دي که چا له تا څخه پوښتنه وکړه چي کوم شاهد ته روا ده چي شاهدي پټه کړي، نو ورته ووايه چي هغه شاهد ته شاهدي پټول روا ده چي شاهدان ډېر وي او د هغو په شهادت سره کار کېږي. او يا شاهد پوهېږي چي قاضي فاسق زما شاهدي نه قبولوي بلکي د مدعی څخه رشوت غواړي.

**فائده**: فقها، وايي چي پټول د شاهدي په حدود کي افضل دی تر ادا، کولو لقوله عليه الصلوة والسلام للذي شهد عنده بالحد يعني بموجب الحد لکه زنا، سرقه، شرب الخمر وغيرها لو سترته بثوبک لکان خيراً لک وقوله عليه الصلوة والسلام من ستر على مسلم عيباً ستر الله عليه في الدنيا والآخرة. که چا پټ کړی پر مسلمان باندي يو عيب خواه موجب د حد وي لکه سرقه وغيره يا موجب د حد نه وي لکه په پښتنو کي چي څوک گوز واچوي يا يو چا د ښځي څخه مچه واخستله. خدای ﷻ به پرده واچوي پرده په دنيا او اخرت کي. وقال عليه الصلوة والسلام ادرؤا الحدود ما استطعتم.

## يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا آمِنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ

اې هغه کسانو چې ایمان یې راوړی دی ایمان راوړئ پر خدای ﷻ او پر رسول ﷺ باندې دده، قیل المعنی "اثبتوا" وداوموا علی ذالک الایمان، وقیل افعلوا او اسمعوا مافیه طمانیة القلب، وقیل اسعوا غایة السعي حتی یبلغ ایمانکم الاجمالي الی الایمان التفصیلي، او بعض وایي چې دا خطاب منافقینو ته دی والمعنی یاایها الذین آمنوا بالسنتکم نفاقاً آمنوا بالقلوب وهذا قول مجاهد رحمه الله، او بعض وایي چې دا خطاب و یهودو او نصاری وو ته دی، والمعنی یا ایها الذین بموسی وعیسی آمنوا بمحمد والقرآن وهو قول الضحاک او بعض وایي چې دا خطاب ومشرکینو ته دی والمعنی یا ایها الذین آمنوا باللات والعزی آمنوا بمحمد ﷺ لکن مخاطبة الله ﷻ مع المشرکین والیهود والنصاری ومخاطبته المنافقین بهذه المخاطبة الشریفة یا ایها الذین آمنوا بعید جداً. او په روح البیان کې وایي چې خطاب و مؤمنین ته د اهل کتاب دی ولې چې بغوي پخپل سند سره روایت کړی دی چې عبدالله بن سلام او ګڼ شمېر ملګري دده راغله او علیه الصلوة والسلام ته یې وویل انا نؤمن بک وبکتابک وبموسی والتوراة وعزیر ونکفر بما سواه، نو دا آیت نازل سو، نو معنی د آیت داده آمنوا ایماناً عاماً شاملاً بجمیع الرسل والکتب ولې چې ایمان پر بعض لکه لا ایمان دی.

## وَالْكِتَابِ الَّذِي نَزَّلَ عَلَىٰ رَسُولِهِ وَالْكِتَابِ الَّذِي أَنزَلَ مِن قَبْلُ

او پر هغه کتاب ایمان راوړئ چې خدای ﷻ نازل کړی دی پر رسول خپل یعنې محمد ﷺ او پر هغه کتاب چې خدای نازل کړی دی دمخه تر قرآن چې تورات، زبور، انجیل او نوري صحفې پر نورو انبیاء علیهم السلام والتسلیم یعنې پر دې ټولو په ایمان راوړئ.

**فائده:** کتاب ثاني اسم جنس دی لتعدد الکتب المنزلة من قبل.

**پوښتنه:** چې د قرآن په نزول کې یې باب د تفعیل راوړی او د نورو کتابو په

نزول کي يې باب د افعال راوړی وجه يې څه ده؟

**ځواب**: په خواصو ابوابو کي د شافيه وايي چي غالبه خاصه د باب تفعيل د تدريج او مهلت دی په فعل مجرد چي دلته نزول او قرآن مبارک هم شُورةً سورةً آيةً آيةً پـه درويشت کالـه کي بشپړ سوی دی بخلاف الکتب الاخر لانها نزلت دفعة واغلب خواص باب الافعال الدفعة ای عدم التدريج.

وَمَن يَكْفُرْ بِاللَّهِ وَمَلَٰئِكَتِهِۦ وَكُتُبِهِۦ وَرُسُلِهِۦ وَٱلْيَوْمِ ٱلْـَٔاخِرِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَٰلًۢا بَعِيدًا ﴿١٣٦﴾

او څوک چي کفر وکړي په خدای ﷻ سره يا له وجود څخه د خدای چي خالق العالم دی منکر سي لکه دهريان چي وايي چي عالم لره صانع نسته او يا وجود د واجب الوجود منی صانع العالم منی لکن عالم لره دوه صانعان وايي دواړه واجب الوجود بولي، دوی وايي يو خدای خالق د خيراتو او د ښوښو ميوو او د خوراکي موادو لکه غنم ورجي وغيره او د حيواناتو نافعه وو لکه پسونه، اوښان وغير ذالک دوی ورته يزدان وايي، او بل بيا صانع بولي د ضرري شيانو لکه ځوزان کروړي او زهر درلودونکي حيوانات لکه لړم، مار، غونډک وغيره ذالک او د درندګانو حيواناتو لکه ليوه، زمری وغير ذالک ورته صانع ته دوی اهرمن وای يا شيطان وايي او دې ډلي ته ثنويه وايي ولي چي دوی دوه خدايه مني، او بل کفر په خدای دی چي خدای ﷻ ته شريک في العبادة نه په اولوهيت او وجوب الوجود وايي چي دې ته مشرکين او وثنيه وايي الی غير ذالک من انواع الکفر بالله کاتخاذ الولد والزوجة الی غير ذالک مما يمتنع علی الله ﷻ.

**درويش وايي**: چي په کفر بالله کي نوري ډلي هم سته او کفر وکړي په ملکو د خدای چي دوی معصوم له ګناه څخه نه دي او يا ذکورت او انوثت لکه حيواناتو لري الی غير ذالک او کفر وکړي په کتابو د خدای ﷻ د ټولو کتابو وي لکه مشرکين چي يو کتاب الله مني او يا د بعض کتابو د خدای لکه يهودان چي نه انجيل مني او نه قرآن او نصاری چي نه تورات مني او نه قرآن او په رسولانو د خدای ﷻ کفر وکړي يا په ټولو لکه مشرکان اويا په بعضو لکه يهود او نصاری نو په تحقيق سره هغه ګمراه سوه له حق څخه په ضلال بعيد سره چي بيا يې وحق ته د رجوع لاره بنده سوه.



Scanned by CamScanner

**فائده:** پوښته! چي ددې معنا دا نه ده چي په ټوله مذکوره شيانو به صراحةً کفر کوي. ولي چي په فروق مذکوره وو کي بعضې په يوه شي سره صراحةً کفر کوي بعض په بل شي سره کفر کوي صراحةً بلکه مراد په مذکوره شيانو سره کفر دی يا صراحةً يا التزاماً.

**پوه سه:** چي کفر په يوه سره ددې مذکوره امورو مستلزم دی کفر لره په ټولو مذکوره امورو سره للتلازم بينها في الکفر. وبهذا اعلمت سر قوله تعالی "فقد ضل ضلالاً بعيداً" لانه اجتمع علی من کفر بواحد منها انواع من الضلال فيکون ضلاله بعيداً من الحق بحيث لا يکاد ان يعود الی طريقة الصواب الا باتباع دين محمد ﷺ واتباع کتابه من اوله الی اخيره واتباع سنة نبيه ﷺ.

**درويش وايي:** چي متکفل د خلاصون له دغو انواعو څخه د کفر اجمالاً زدکړه د امنت بالله وملائکته آه سره د لحاظ د معنی.

**پوه سه:** چي علامه مظهري رحمه الله په دې کفر کي بعض فرق د اهل الاهواء هم داخلي کړي دي کالمعتزلة فارجع الی ملاحظة تفسيره وتکفيره لهم بدلائل موجودة في تفسيره والله اعلم بالصواب واليه المرجع والمآب.

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا ثُمَّ كَفَرُوا ثُمَّ آمَنُوا ثُمَّ كَفَرُوا ثُمَّ ازْدَادُوا كُفْرًا

**درويش وايي:** چي اکثره مفسران پر دې خبره سره موافق دي چي دا آيت په شان کي د يهودو نازل سوی دی، نو يې ترجمه داسي ده "يهودانو چي ايمان راوړی پر موسی عليه السلام او بيا کافران سوه په سبب د عبادة العجل دا هغه وخت و چي موسی عليه السلام کوه طور ته تللی و لپاره د راوړلو د تورات، بيا چي وروسته موسی عليه السلام ورته راغلی بيا يې وروسته ايمان راوړی او له عبادت څخه د عجل يې توبه وکښل، او وروسته تر وفات د موسی عليه السلام بيرته کافران سوه په عيسی او په انجيل سره وروسته يې زيات کړی کفر خپل بکفرهم بمحمد ﷺ.

لَّمْ يَكُنِ اللَّهُ لِيَغْفِرَ لَهُمْ وَلَا لِيَهْدِيَهُمْ سَبِيلًا ﴿١٣٧﴾

نه دی خدای جل جلاله چي دوی ته دي بخښنه وکړي يعني ما داموا کفرهم. او نه

خدای ﷻ ودوی ته هدایت کوي یعني توفیق د هدایت نه ورکوي مجازات علی کفرهم المکرر.

**پوښتنه**: اجماع د امت مرحومه خو پر دې ده چي ددغو یهودانو توبه قبلېږي بخښه د دوی د کفر ورته کېږي فما معنی قوله تعالی لم یکن الله آه. روح البیان ددې پوښتنې په جواب کي داسي ویلي دي ای ماداموا علی کفرهم لانه لامغفرة للکفر، او مجاهد رحمه الله په ځواب کي د پوښتنې داسي ویلي دي ای اذا ماتوا علی الکفر او بعض مفسران وايي چي معنی د "لم یکن الله لیغفر لهم ولا لیهدهم سبیلاً" دا دی چي بعید دده ایمان راوړه ددوی وروسته تر متعدد وار کفر، ولي چي داسي کفر پر زړه باندي رین یعني زنګ او پرده او پر سترګو غشاوه پیدا کوي فیستبعد المغفرة مع استحباب الکفر ویستبعد الهدایة لهم لوجود الرین علی قلوبهم.

**فائده**: لام ته د "لیغفر" او د لیهدیم لام حجود وايي او فائده تاکید د نفي ده کذا في کتب النحو.

**پوښتنه**: په نحوه کي وايي چي حرف جر پر فعل نه داخلېږي؟

**ځواب**: وروسته تر لام ان مصدري مقدر دی نو فعل په معنی د مصدر وګرځېدی فصح دخول حرف الجر علیه لان المصدر اسم ثم المصدر بمعنی الفاعل لیصح الحمل علی اسم یکن یعني الله. فالمعنی لم یکن الله غافراً لهم ولاهادیاً لهم فتدبر.

بَشِّرِ الْمُنٰفِقِيْنَ بِاَنَّ لَهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا ﴿۱۳۸﴾

او زېری وکړه و منافقانو ته په دې سره چي دوی لره عذاب سته دردناکه.

**پوه سه**: چي بشارت که څه هم د خوشحالی خبري ته وايي او عذاب الیم خو د خوشحالی خبره نه ده بلکې ځای خو د انذر و لکن استعمال د بشارت دلته تحکما بهم دی او منافق هغه سړي ته وايي چي په ظاهره دوست او په باطن کي دښمن وي د سړي، والمنافقین في الشرع وفي زمانه ﷺ هغه کسان دي چي په اوائلو کي د سورة البقرة خدای پاک ښوولي دي حیث قال "ومن الناس من یقول آمنا بالله وبالیوم الآخر" الی ان قال "واذا لقوا الذین آمنوا قالوا آمنا واذا خلوا الی

شياطينهم قالوا انا معكم الى آخير الآيات.

الَّذِيْنَ يَتَّخِذُوْنَ الْكٰفِرِيْنَ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ ؕ اَيَبْتَغُوْنَ عِنْدَهُمُ الْعِزَّةَ فَاِنَّ الْعِزَّةَ لِلّٰهِ جَمِيْعًا ؕ

**فائده:** که "الذين يتخذون آه" وامثاله في القرآن مرفوع على الذم واى يا منصوب على الذم واى فعلى تقدير الرفع الذين هم مبتدا. ورسره محذوف ده. وعلى التقدير الثاني اريد يا اعني ورسره محذوف ده چي "الذين" يې مفعول سي والتفصيل في كتب النحو ومعنى الآية منافقين هغه كسان دي گرځوي كافران يعني يهودان خپل دوستان باطني ماسوى د مسلمانانو. آيا دوى غواړي د كافرانو له خوا څخه عزت. نو په تحقيق ټوله عزت خداى ﷻ لره دي يعني معطي او وركونكى د عزت خو خداى دى "تعز من تشآء وتذل من تشآء بيدك الخير آه" او دا عزت خداى ﷻ د خپلو دوستانو او مسلمانانو په برخه كړى دى "ولله العزة ولرسوله وللمؤمنين الى الخير الآية"

**درويش وايي:** چي نفاق قلبي شرعي مخصوص په زمانو پوري د عليه الصلوة والسلام نه دى بلكې په هره زمانه او په هر دور كي منافقان موجود وه. غاية الفرق چي منافقان د زمانې د عليه الصلوة والسلام په وحي سره منافق معلومېدى او وروسته چي وحي قطع سوې نو څوک حكم قطعي په نفاق د چا نه سي كولاى. او ياته منافقان عملي سوه وروسته تر خير القرون اكثر من ان تحصى.

وَقَدْ نَزَّلَ عَلَيْكُمْ فِى الْكِتٰبِ اَنْ اِذَا سَمِعْتُمْ اٰيٰتِ اللّٰهِ يُكْفَرُ بِهَا وَيُسْتَهْزَاُ بِهَا فَلَا تَقْعُدُوْا مَعَهُمْ

او په تحقيق خداى ﷻ نازله كړې ده په قرآن كي دا خبره چي تاسي واورئ آيات د خداى ﷻ چي كفر په كره كېږي. او پسخند په وهل كېږي، نو د هغو خلگو سره مه كښېنئ. يعني كه يو مجلس وچي په هغه كي كافران هم ناست وه لكه په مكه مكرمه كي چي به داسي ډېر پېښېدل چي كفارو د مكې به انكار كاوه له بعضې آياتو څخه د قرآن لكه آيات د بعث بعد الموت او نور او په آيتو د

قرآن مبارک به یې پسخند واهه. نو چونکه مسلمانانو د مکې چې په حال کې د ضعف وه دفع د هغو کافرانو یې له طاقته پوره نه وه چې منع یې کړي، نو خدای پاک امر ورته وکړی چې ورسره کښېنئ خو مه او دا انکار او پسخند مه اورئ بلکې له مجلسه ځئ ولاړ سئ لیدل ذالک علی انکارکم القلبي.

**فائده:** قد نزل" عاصم رحمه الله په فتح د نون او د زا وایي علی صیغة المعلوم، چې معنی یې داده قد نزل الله علیکم او نور قاریان یې په ضمه د نون او په کسره د زاء وایي علی صیغة المجهول چې مفعول مالم یسم فاعله یې "ان" آه دی ان مخفف د مثقل دی ای انه والضمیر للشان.

**فائده:** یکفربها ویستهزء بها دواړه حال دي له آیاتو څخه او دا یې لپاره د تقیید د نهي د مجالست راوړه، او ضمیر د معهم راجع دی والذین یکفرون ویستهزئون ته دی، وجهي د نهي یې داده چې سماع د کفر بالقرآن والاستهزاء بالآیات دلالت پر رضا ستاسي ونه کړي.

## حَتّٰى يَخُوضُوا فِي حَدِيثٍ غَيْرِهِ

تر هغه وخته چې کافران بحث شروع کوي په نورو خبرو کې، ددې معنا داده چې که کافرانو نورې خبري شروع کړې بیا نو ناسته ورسره روا ده که د ضرورت له سببه وي او که د غیر ضرورت له وجهي وي خو مطلقاً مجالست یې روا دی. او حسن بصري رحمه الله وایي چې مجالست یې نه دی روا وان خاضوا في حدیث غیره

**درویش وایي:** چې دا خبره علی الاطلاق نه ده صحیح، ولې چې ګاهې د بیع او شراء د مسلمانانو او کافرانو تر منځ راځي نو بیا یې ولې مجالست نه دی روا.

**مسئله:** ضحاک رحمه الله له ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چې د هر مبتدع في الدین لکه معتزله. وهابیه او سلفیه ناسته نه ده روا چې پخپل ابتداع کې خبرې کوي او خپل د ابتداعي مذهب تشریح او دلائل وای حتی یخوضوا في حدیث غیره وهذا جار الی یوم القیامة الا ان یکون المجالسة معهم للرد علیهم والجوابات عن دلائلهم الفاسدة کما في مجالس المناظرة معهم.

إِنَّكُمْ إِذًا مِّثْلُهُمْ

او تاسي مسلمانان په دغه وخت کي د کفر او استهزاء بالآیات ورسره ناست یاست مثل ددوی یاست. ولي دا رضا په کفر سره ده. او که سړی خبري د کفر نه ورسره کوي دا بیا منافقت دی.

إِنَّ اللَّهَ جَامِعُ الْمُنَافِقِينَ وَالْكَافِرِينَ فِي جَهَنَّمَ جَمِيعًا ﴿١٤٠﴾

په تحقیق خدای ﷻ جمع کوي منافقان او کافران په جهنم کي ټول.

**تنبیه:** خدای پاک "وقد نزل" په صیغه د ماضي ورواېه اشاره یې و هغه آیت ته ده چي هغه په سورت انعام کي دی چي هغه مکي دی دا آیت نازل کړی و "واذا رئیت الذین یخوضون في آیاتنا فاعرض عنهم حتی یخوضوا في حدیث غیره" د اهل مکه حال چي دوږېش دمخه ذکر کړی چي اهل مکه مشرکینو به کفر او استهزاء بالآیات کوله نو په سورت انعام کي خدای پاک مسلمانان ددوی له مجالسته منع کړه که څه هم په سورة انعام کي خدای پاک کفر بالآیات او استهزاء بهنا ته ده ذکر کړې لکن نهي له مجالست څخه د کفارو په مکه کي دلالت پر کوي. ولي که دا دوه سببه نه وای نو منع مجالست لره څه معنی وه.

بیا مسلمانان مدینې منورې ته راغله، نو احبارو د یهودانو یعني ملایانو ددوی په مدینه منوره کي هغه کارونه کول لکه کافرانو د مکې چي به کوله یعني کفر بآیات القرآن والاستهزاء بها، او منافقان چي ځانونه یې و علیه الصلوة والسلام ته مسلمانان معرفي کړي وه او په واقع کي کافران وه ددغو احبارو سره کښېنستل او ددوی پر کفریاتو به یې موافقه ورسره کوله، نو دا سورة النساء چي مدني دی په آیت کي خدای ﷻ د قدنزل آه یې صیغه د ماضي اشاره و هغه آیت مکي ته د سورة انعام وکړه. حاصل دادی چي سورة انعام چي مکي دی ممنوع ده له مجالست څخه د کافرانو چي کفار د مکې دي چي مسلمانانو ته د مکې قبل الهجرة دا وایي چي د مشرکینو سره د مکې مه کښېنئ چي دوی استهزاء او کفر کوي تر هغو په نورو کي خوض کوي. او په سورت نساء کي چي

مدني د یوازې منع د منافقانو ده چې څنګه یې مسلمانان بلل له مجالسته د
کافرانو د احبارو د یهودانو چې کفر بالایات او استهزاء بها به یې کوله. والدلیل
علی ان الممنوع في سورة النساء منافقان دي ولې چې احبارو د یهودانو خو دانه
سوای کولای چې د مسلمانانو مخلصانو په مخ کې دې استهزاء په ښکاره توګه
وکړي لان الاسلام کان غالباً في المدینة.

**درویش وایي**: چې ددې مقام تحقیق پر مذکوره وجهې باندې له خواصو څخه
ددوی تفسیر دی البته اشارات د بعض مفسرینو موجود دي لکن تفسیر او بسط
او تضریعاتي یې په تفسیر پورې د عاصي خاصي دی والله الموفق والمعین.

**درویش وایي**: چې مجالست یعني ناسته ولاړه ډېر ښه او ډېر بد تاثیرات لري،
په صحیح حدیث کې راغلي دي چې د صالح بندګانو او د خدای د دوستانو سره د
ناستي مثال داسې دی لکه سړی چې د عطر فروش په دوکان کې کښېني. نو عطر
فروش به ده ته یو څه عطر یا مفت ورکړي او یا به یې دا سړی څنې رانسي که دا
دواړه کاره ونه سي نو د عطر فروش دوکان طبعاً خوش بویه وي نو سړی چې څنې
ووځي خامخا ښه معطر بوی یې څي. سعدي رحمه الله بطریق الکنایه وایي

| | |
|---|---|
| گلی ناچیز در حمام روزی | رسید زدست محبوبی بدستم |
| بدو گفتم که مشکی یا عنبری | که از بوی دلاویزی تو مستم |
| بگفتا من گلی ناچیز بودم | و لکن مدتی با گل نشستم |
| جمال همنشین درمن اثر کرد | وگرنه من همان خاکم که بودم |

علیه الصلوة والسلام وایي چې مثال د جلیس سوء داسې دی لکه
سړی چې د آهنګر (پښ) په دوکان کې ناسته ولاړه کوي، نو چونکه
آهنګر خو په کُره کې اور تازه کوي او هغه بڅري غورځوي، نو که د
سړي په کالو کې بڅری ومښلي کالي به یې ورسوځي او که هغه هم نه
سي پېښه، نو د آهنګر دوکان طبعاً بدبویه وي. نو سړی چې څنې
راووځي حتماً به دده د کالو بد بوی څي، او کما قال رسول الله ﷺ.

الَّذِيْنَ يَتَرَبَّصُوْنَ بِكُمْ ۚ فَاِنْ كَانَ لَكُمْ فَتْحٌ مِّنَ اللّٰهِ قَالُوْٓا اَلَمْ نَكُنْ مَّعَكُمْ ۖ وَاِنْ كَانَ لِلْكٰفِرِيْنَ نَصِيْبٌ ۙ قَالُوْٓا اَلَمْ نَسْتَحْوِذْ عَلَيْكُمْ وَنَمْنَعْكُمْ مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ۗ

**پوه سه:** چي دا آيت صرف ايضاح د منافقانو د حال کوي مطلب دا چي قيد نه دی.

**فائده:** الذين" يا بدل دی د "الذين يتخذون آه" څخه او يا مبتداء ده خبر يې "فان لکم آه" دی او يا منصوب علي الذم دی يعني آذم الذين او يا مرفوع خبر د مبتداء محذوفي دی ای هم الذين آه.

ترجمة الآية" منافقان هغه کسان دي چي تاسي ته انتظار باسي د خير او د شر يعني فتح يا هزيمت. والفاء لتفصيل تربصهم" نو که وي تاسي لره فتح او بری پر دښمن يعني کافرانو او غنيمت يو څه پيدا سي، نو دوی درته وايي آيا موږ ستاسي له جملې څخه نه يو يعني مسلمانان نه يو؟ او په جهاد کي نه وو درسره ملګري؟ مطلب يې دادی چي موږ ته پوره ونډه په غنيمت کي راکړئ، او که چېري کافرانو لره برخه پيدا سي يعني پر مسلمانانو غالب سوه نو دوی کافرانو ته وايي چي آيا چي موږ د مسلمانانو سره ملګري و پر تاسي مو غلبه وکړه تر دې واقعي نو موږ تاسي تر بغل وه يستلاست. او يا تاسي مو منع کړلاست له غلبې څخه د مؤمنانو پر تاسي چي تاسي ته به مو د مؤمنانو جاسوسي کوله او ددوی په حالاتو به مو خبرولاست او يا به مو د مسلمانانو له لښکره ځان وه ايستی لکه په غزاء کي د احد چي د عبدالله بن ابي په مشری درې سوه کسه د احد له فوجه ووتل.

فَاللّٰهُ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۗ

نو خدای ﷻ به فيصله وکړي ستاسي تر منځ ايها المؤمنون او د منافقانو تر منځ د قيامت په ورځ بدخولکم الجنة ودخولهم النار دار البوار وبئس القرار.

وَلَنْ يَّجْعَلَ اللّٰهُ لِلْكٰفِرِيْنَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ سَبِيْلًا ۝۱۴۱

نه ده ګرځولې خدای ﷻ پر مسلمانانو باندي لار.

**درويش وايي:** چي ددې آيت مختلفي ترجمې کړه سوي دي حضرت علي او

ابن عباس ﷺ وایي چي مراد ځني سبیل د آخرت ده قالوا وهو الظاهر والمراد بسبیل الآخرة هو الظهور والغلبة لکه په دنیا کي چي بعض وخت غلبه کفارو وکړه پر مسلمانانو لکه په احد کي ابتلاءً للمسلمین واستدراجاً للکافرین. والحاصل چي خدای ﷻ ښکاره کوي اثر د مؤمن د ایمان په ورځ د قیامت په ورکړه سره د جنت ونعیمها الموعود لهم من الله ﷻ او په دې نعمتو کي په هیڅ کافر نه وي ورسره شریک لکه په دنیا کي چي به سره شریکان وه بلکې کافران په نعمتو کي ددنیا غالباً تر مسلمانانو بالا وه. حتی چي د قیامت په ورځ به کافران پوه سي چي حق په جانب مؤمنان دي. او عکرمه ﷺ وایي چي مراد له سبیل څخه ظهور او غلبه ده پر اصحابو د علیه الصلوة والسلام.

**سوال**: په احد کي څو غلبه کافرانو پر اصحابو د رسول الله ﷺ وکړه؟

**ځواب**: په احد کي هم اولاً صحابه وو ﷺ پر کافرانو غلبه وکړه حتی چي د کافرانو ښځي په غرو کي ځغاستلې لکن چونکه بعض مسلمانانو له امر نبوي څخه مخالفت وکړی نو خدای پاک ودوی ته مجازاتاً شکست ورکړی.

**درویش وایي**: چي د احد د غزاء تفصیل په دې تفسیر کي په اتم وجه تېر سو مطالعه یې کړه ان شئت. او بل جواب دادی چي ددغه مفسر مراد غلبه دائمه ده د کافرانو په اصحابو ﷺ باندي.

**پوښتنه**: چي په زمان حاضر کي یعني له سنه ۱۴۰۰ بیا تر ۱۴۲۷ هـ ق ولي امریکایانو په کومک ددوی د ناټو انډیوالانو کافرانو پر بعض اسلامي مملکتو لکه افغانستان او عراق باندي غلبه پیدا کړه؟

**ځواب**: غلبه د کافرانو پر مسلمانانو هر ځای چي راغلې ده په سبب د ضعف ایمان د مسلمانانو او د کثرة العصیان ددوی. او یوه بله وجه هم سته چي په اوسنی زمانه کي د اکثرو خلګو تر دین د دنیا جاه او جلال خوښ دي حتی چي بعض علماء هم په دې آفت مبتلاء دي. او د امریکایانو ډالر او روپې په خرمندو دي. نو ټوله مسلمانان په ډالرو رانیسي. شورویانو چي په کومک د خلقیانو او پرچمیانو پر ټوله افغانستان قبضه وکړه لکن چونکه شورویان مسکینان وه چي د

مسکنت له کبله به یې په افغانستان کي چونګښې او نور تجس شیان خوړل او خالص زور یې چلاوه، نو هغه وچي افغانستان خو لا څه کوي خپل اتحاد شوروي چي یو ستر قدرت و او امریکایانو د اتحاد شوروي له بېري و دنیا ته سترګي نه سوای ښکاره کولای، آخر دړي وړي سو او یو ماسکو ورپاته سو، امریکایانو چي ولیدل چي د اتحاد شوروي اتحاد له منځه ولاړی، نو د مسلمانانو پر مملکتو یې حملې شروع کړې او بل د ډالرو ورقي یې هم وه اوروڵې.

او بعض مفسران وایي چي مراد له سبیل څخه سبیل د استیصال ده چي کافران دي یکلخته مسلمانان له دنیا څخه محو کړي او داسي کېدای نه سي، ولهذا قال رسول اللهﷺ "الجهاد ماض الی یوم القیامة"

**فائده**: امام شافعي رحمه الله په دغه آیت سره دلیل وایي چي د کافر شرا، د عبد مسلم فاسده ده، او امام اعظم رحمه الله وایي چي شرا، خو یې صحیح ده لصدور العقد من اهله في محله لکن اسلامي حکومت دي کافر مجبوره کړي چي دا مسلمان مریی پر یو مسلمان خرڅ کړه.

إِنَّ الْمُنَافِقِينَ يُخَادِعُونَ اللَّهَ وَهُوَ خَادِعُهُمْ

**درویش وایي**: چي ددې دواړو طرفو پوره تفصیل ددې تفسیر د سورة البقرة په تفسیر کي تېر سو فلا نعیده خوفاً من الاطناب من شا، فلیطالع والله الموفق.

وَإِذَا قَامُوا إِلَى الصَّلَاةِ قَامُوا كُسَالَىٰ

او چي دوی ولاړېږي د مسلمانانو له جماعت څخه د لمانځه لپاره، نو دوی ولاړېږي په سست او درانه بدن سره، لکه سړی چي په زړوه لمانځه ته بیایي ولي دوی خو په لمانځه کولو د ثواب عقیده نه لري او په ترک یې له عذابه نه بېرېږي لعدم عقیدتهم.

يُرَاءُونَ النَّاسَ وَلَا يَذْكُرُونَ اللَّهَ إِلَّا قَلِيلًا

دوی صرف په خلکو یعني په مسلمانانو ځانونه ویني، یعني دا ښکاره کوي و مسلمانانو ته چي موږ هم مسلمانان یو او ذکر د خدای جل جلاله نه کوي مګر لږ.

**پوه سه**: چي روح البیان وایي چي مراد له آیت څخه تسبیح او تهلیل دی وهو

الاظهر . او مظهري وايي چي مراد له ذکر څخه لمونځ دی تسمية الکل باسم الجزء او توجيه د تقليل يې مظهري داسي کړې ده چي څوک چي لمونځ د چا د رؤيت لپاره کوي نو چي هغه نه ويني بيا خو يې نو نه کوي او دا احوال خو لږ دي.

**پوه سه:** چي "قليلاً" يا مفعول مطلق دی ای ذکراً قليلاً او يا ظرف دی ای زماناً قليلاً او جمله د "يراؤن" حال ده له فاعل څخه د "قاموا" ولايذکرون" عطف دی پر "يراؤن" نو دغه درې کسه لکه کسالی "يراؤن ولايذکرون" گرده احوال له فاعل څخه د قاموا.

مُّذَبْذَبِينَ بَيْنَ ذَٰلِكَ لَآ إِلَىٰ هَٰٓؤُلَآءِ وَلَآ إِلَىٰ هَٰٓؤُلَآءِ ۚ وَمَن يُضْلِلِ ٱللَّهُ فَلَن تَجِدَ لَهُۥ سَبِيلًا ﴿١٤٣﴾

**پوه سه:** چي "مذبذبين" حال دی له فاعل څخه د "لايذکرون" او يا له فاعل څخه د "يراؤن" والمذبذب مشتق من الذبذبة وهو جعل الشئ مضطرباً. والمعنی چي دغه منافقان مضطرب او متردد دي په منځ کي چي نه وه ډلي ته د مؤمنانو منسوب دی ظاهراً او باطناً تاچي دوی ته په ورځ د آخرت هغه ثوابونه ورکړه سي لکه مؤمنانو مخلصينو ته چي ورکول کېږي لعدم کونهم مؤمنين باطناً. او نه وډلي ته د کافرانو منسوب دی من کل الوجوه حتی چي ددوی سره معامله د کفار وکړه سي من القتل والاسر، لان ايمانهم ظاهراً مانع من ذالک، او څوک چي خدای د حق لـه لارې څخه گمراه کړي لهؤلاء المنافقين وغيرهم من الکفار المعاهدين، نو ته اې مخاطبه نه سې پيدا کولای ددوی لپاره لار وحق او صواب ته کما قال الله تعالی ومن لم يجعل الله نوراً فماله من نور.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَّخِذُوا۟ ٱلْكَٰفِرِينَ أَوْلِيَآءَ مِن دُونِ ٱلْمُؤْمِنِينَ ۚ

اې هغه کسانو چي ايمان يې راوړی دی تاسي مه گرځوئ کافران دوستان ماسوی له مسلمانانو څخه. يعني ستاسي حقيقي دوستان فقط مسلمانان دي او کفار مو دښمنان دي نو تاسي د کافرانو تـه د دوستی لاس مـه غځوئ. ولي چي بيا به حال ستاسي حال د منافقانو وگرځي چي د دوستئ لاس يې باطناً وکافرانو ته غځولی دی.

أَتُرِيدُونَ أَن تَجْعَلُوا لِلَّهِ عَلَيْكُمْ سُلْطَٰنًا مُّبِينًا

آیا ستاسي اراده ده په موالاتو کي د کفارو چي تاسي وګرځوي په دغه موالاتو سره خدای ﷻ لره پر خپل ځانو دلیل او حجت خپل په تعذیب کي. یعني د خدای ﷻ به پر تاسي دلیل د تعذیب پر تاسي وي چي ته خو د کافرانو دوست وي، نو ددوی به دله کي به ته هم ملعون وګرځي.

إِنَّ الْمُنَٰفِقِينَ فِي الدَّرْكِ الْأَسْفَلِ مِنَ النَّارِ وَلَن تَجِدَ لَهُمْ نَصِيرًا

په تحقیق چي منافقان په هغه ترټولو کښته طبقه کي د دوږخ دي په ورځ د قیامت چي تر ټولو طبقو سخترینه طبقه د دوږخ ده.

**پوښتنه**: ولي منافقان ددوته سخت عذاب مستحق دي؟

**ځواب**: منافقان بد ترین د کافرانو دي ولي چي دوی به د کفر سره سره په خدای، رسول، اسلام او قرآن باندي پسخند واهه او د مسلمانانو پټ حالات به يې وکفارو ته ښکاره کول. نو په دې دنیا کي خو دوی په سبب ظاهري اسلام د مسلمانانو له لوري د استرقان او د نهب د اموالو خلاصه وه. نو په آخرت کي به خود په درک اسفل کي من النار وي او ته نه سي پیدا کولای اې مخاطبه ددوی لپاره کومک کونکی چي له عذاب الهي ځخه دي دوی خلاص کړي.

**یوه سه**: چي درک اسفل هغه ډېره کښته طبقه د دوږخ ده چي نوم يې هاویه دی او اور یعني دوږخ اووه طبقې دي پرله پسې یو تر بل چي په منځ کي فصل نه لري والدرکات في النار مثل الدرجات في الجنة او هره درجه د جنت چي تر ټولو درجو لوړي وي ثواب د هغې درجې والا وو تر نورو درجو والا وو اعظم او افضل دی او په درکاتو کي د دوږخ چي هره درجه تر ټولو کښته وي عذاب د اهل د هغې درجې والا وو اعظم او اشد او اهیب وي.

**فائده**: له ابن مسعود ﷺ ځخه چا پوښتنه وکړه د درک اسفل په باره کي ده ورته وویل چي تابوتان دي یعني صندوق مثل دی د وسپني چي قلف وي او دروازې هم نه لري په خود تابوتانو کي منافقین په کښې وي هم بل اور دی او لاندي تر تابوت او فوق التابوت او پر بغلو د تابوت هم اوربلېږي.

**درویش وایي:** چي دا و حال د منافق شرعي چي په زړه کي کافر وي او په خوله مسلمان. او منافق عملي چي په عملو کي ومنافق شرعي ته ورته وي هغه په هغه حدیث چي بخاري وغیره یې روایت کړی دی قال علیه الصلوة والسلام "ثلاث من کن فیه فهو منافق" دري خویه چي په چا کي وي هغه منافق دی "وان صام وصل وزعم انه مسلم" که څه هم دوی روژي نسي او لمونځ کوي او دا وایي چي مسلمان یم "من اذا حدث کذب واذا وعد اخلف واذا اوتمن خان" هغه څوک چي خبري کوي درواغ وایي او چي له چا سره وعده وکړي د هغې خلاف کوي او چي څوک یې امین پر یو شي وګرځوي مثلاً څوک امانت ورته کښېږدي دی خیانت پکښي کوي.

**درویش وایي:** چي تول محدثین او تول مفسرین وایي چي دا حدیث پر طریقه د زجر او تهدید او تغلیظ لکه هغه حدیث چي "من ترک الصلوة متعمداً فقد کفر"

**إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا وَأَصْلَحُوا وَاعْتَصَمُوا بِاللَّهِ وَأَخْلَصُوا دِينَهُمْ لِلَّهِ**

مګر نه هغه کسان چي توبه وکاږي له نفاق څخه او ایمان باطني او قلبي هم پیدا کړي او بیا خپل تول عملونه صالح وګرځوي یعني د شریعت مطهره سره برابر. او اعتصام په خدای ﷻ سره یعني توثق د خدای ﷻ په دین هم وکړي یعني رسی د دین محکمه ونسي. او خالص وګرځوي خپل دین لپاره د خدای یعني ریاء نه وي پکښي والمراد بالدین العبادة. والحاصل لا یریدون بالایمان والاعمال الا وجه الله خالصاً.

**پوه سه:** چي ابن ادریس رحمه الله وایي چي څوک و حقیقت ته د اخلاص نه سي رسېدلای حتی لا یحب ان یجده احد علی شئ من عمل عمله لله ﷻ.

**درویش وایي:** چي دارنګه اخلاص په هغه کسانو کي پیدا کېدای سي چي له خواهشاتو نفسیه وو څخه هیڅ اثر نه وي پکښي بلکې د نني زماني د ملایانو دا خوښه ده ان یحمدوا بما لم یفعلوا هیهات للاخلاص فیهم اثر من الآثار. وهذا حاصل الخواص ای العلماء. فما یکون حال العوام.

ع ...... چو کفر از کعبه برخیزد کجا ماند مسلماني

او ابن ابي شيبه رحمه الله او احمد له ابي امامه رضي الله عنه څخه روايت کړی دی چي حواريونو د عيسى و عيسى عليه السلام ته وويل يا روح الله من المخلص لله قال الذي يعمل لله لايحب ان يحمده الناس عليه. او حکيم ترمذي په نوادر الاصول کي وايي قال قال رسول الله ﷺ من قال لا اله الا الله مخلصاً دخل الجنة قيل ما اخلاصها قال ان تحجزه من المحارم" ددې کلمې اخلاص څه شی دی عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي اخلاص ددې کلمې دادی چي دغه کلمه دې منع کړي له ټولو محرماتو څخه د دين.

فَأُولَٰئِكَ مَعَ الْمُؤْمِنِينَ ۖ وَسَوْفَ يُؤْتِ اللَّهُ الْمُؤْمِنِينَ أَجْرًا عَظِيمًا ﴿١٤٦﴾

نو دغه کسان چي موصوف په ماذکر من الاوصاف سره وي ملګري به وي د مؤمنانو مخلصانو سره په آخرت کي، او ژر دی چي خدای جل جلاله به ورکړي مؤمنانو مخلصانو ته لوی ثوابونه من الجنة ورضوان ومراتب القرب.

مَّا يَفْعَلُ اللَّهُ بِعَذَابِكُمْ إِن شَكَرْتُمْ وَآمَنتُمْ ۚ وَكَانَ اللَّهُ شَاكِرًا عَلِيمًا ﴿١٤٧﴾

**پوه سه**: چي کلمه د "ما" استفهام ده او په معنی د نفي ده ای ای شئ يفعل الله "والعذاب" په معنا د تعذيب دی يعني چي تاسي ته خدای جل جلاله درکوي د خدای په دې څه کېږي، ولي چي تعذيب د عبادو د خدای جل جلاله سلطنت ته نه زياتېږي او په ترک د تعذيب دده بادشاهي ته نقصان نه رسېږي او دغه تعذيب د خدای جل جلاله وده ته جلب د نفع يا دفع د ضرر نه ځني کوي. نو که تاسي شاکر او مؤمن بندګان وګرځئ نو خدای جل جلاله به ولي تعذيب درکوي البته په صورت کي د کفر او عصيان تعذيب درکوي بناً على عادته تعالى چي مسبب عادي چي عذاب النار دی پر سبب عادي چي کفر او عصيان دی مرتبه وي.

**پوه سه**: چي نسبت د شکر چي خدای جل جلاله ته وسي لکه په دې آيت کي نو معنا يې رضا ده په لږ شي له بنده څخه او ډېرول د ثواب په مقابل کي ديوه طاعت تر لسو پوري تر اووه سوه پوري الى ماشاء من الاضعاف. او نسبت د شکر چي بنده ته وسي معنی يې اقرار دی په نعمت واصله وده دا مورد د شکر چي ژبه ده. او بل



Scanned by CamScanner

تعظيم د خداى ﷻ په زړه کي دی چي دې مورد ته قلب وايي. او بل عمل دی د طاعاتو عمليه وو په ارکانو سره لکه لمونځ او دې مورد ته ارکان وايي. وبالجملة مورد د شکر عام دی تعظيم دی په زړه او عمل بالارکان دی او ثنا باللسان ده لکن متعلق د شکر يو ازی نعمت دی. والحمد بالعکس يعني مورد يې وازي ژبه ده او متعلق يې عام دی که نعمت وي او که نه فبينهما عموم وخصوص من وجه والمواد الثلث غير عافية.

له حضرت ﷺ څخه روايت دی چي تاسي ته اطراف د نعمتو ورسېدل نو تاسي يې پای ته رسېدل مه پرېږدئ په قلت شکر سره اشارةً الی قوله تعالی "لئن شکرتم لازيدنکم" يو محقق شاعر وايي.

چون بيابی تو نعمتی درجند — خرد باشد چو نقطه موهوم
شکر آن يافته فرو مگذار — که زنا يافته شوی محروم

درويش وايي

په خوله حمد په زړه عجز کوم خدای ته
چي تفسير د دې جزء و رسېدی پای ته
ورځ د يکشنبې د روژې و پنځلسمه
چي مشکلات ددې پارې ور سېدل پای ته

برادران عزيز خوندگان محترم از فراغ تفسير اين جزء والمحصنت چنان محسوس ميکنم که بارگران از شانه درويش پرداشته شد، و از خداوند متعال بصد نياز تمنی دارم که تفسير جزء لايحب الله رانيز بتوفيق رايگان خود باکمال صحت وعافيت کامل دماغی وقلبی وبدنی درويش بپايان برساند وهکذا کاروان تفسير الی اخير القرآن با کاروان توفيق رحمانی مقرون باد.

الحمد لله والصلوة علی نبيه وآله اجمعين.



# الجزء السادس

## لايحب الله

# تيسير البيان حنفي

حضرت مولانا محمد عبد الله الايوبي

الكندهاري الحنفي النقشبندي

مكتبة القراءة والتجويد

كاسي روډ كوټه بلوچستان

بسم الله الرحمن الرحیم

رَبِّ يَسِّرْ وَلَاتُعَسِّرْ وَتَمِّمْ بِالْخَيْرِ هذا الْجُزْءِ بِالْخَيْرِ وَالصِّحَّةِ وَالسَّلَامِ

اَلْحَمْدُلِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ على سَيِّدِ الْمُرْسَلِيْنَ وَعلى آلِهِ وَصَحْبِهِ اَجْمَعِيْنَ

**اما بعد:** درویش وايي چي تفسير د "لا يحب الله" په اخير کي د شپې د چارشنبي د روژې مبارکي میاشت اتلسمه سنه ۱۴۲۷ هـ ق شروع سو، او زما دي سعي او کوشش حتى الوسع وي او د خدای ﷻ دي توفیق د اتمام وي آمین.

## لَا يُحِبُّ اللّٰهُ الْجَهْرَ بِالسُّوْٓءِ مِنَ الْقَوْلِ اِلَّا مَنْ ظُلِمَ

نه دی خوښ د خدای ﷻ جهر او اعلان په بد سره د قول.

**پوه سه:** چي عدم محبت د خدای ﷻ کنایه ده له بغض او سخط ځکه لعدم الواسطة في افعاله تعالی والباء متعلقة بالجهر وکلمة من متعلقة بمحذوف وقع حالا من السوء والتقدير لايحب الله الجهر من احد في حق غيره بالسوء كائناً من القول.

"الا من ظلم" ای الا جهراً من ظلم فالاستثناء متصل فان المظلوم يجوز له ان يجهر برفع صوته على من ظلمه يعني يا دوی وظالم ته يوه لويه ښېرا وکړي او يا د ظالم بد او دده ظلم او شر بيان کړي په حضور کي د قوم د رئیس او يا په حضور کي د قاضي د شرعي محکمې، لکه مظلوم چي ووايي چي فلانی زما کور ته را ولوېدی او زما د کور سامان يې غلا کړی او يا يې په غصب او زور راڅخه يوووړی. او بعض مفسرين وايي چي يو سړی و مظلوم ته بښکنځل وکړي، نو دوی حق لري چي و ظالم شاتم ته په جهر جواب د شتم ور کړي لکن هغه قدر چي شاتم ور ته ويلي وي بالا بود به نه کوي مثلاً يو سړی و بل ته ووايي ستا مور وغییم، نو دی هم ور ته ویلای سي چي ستا مور وغییم دا حق نه لري چي ستا مور او پلار دواړه وغییم.

## وَكَانَ اللّٰهُ سَمِيْعًا عَلِيْمًا ۝١٤٨

او دی خدای ﷻ اورېدونکی د د کلام د مظلوم او عالم دی په حال د ظالم.

**فائده:** خدای ﷻ تخصیص د جهر بالسوء وکړی که څه هم اخفاء د قول بالسوء هم د خدای ﷻ نه ده خوښه لان الجهر فحش.

**فائده:** دوه کسه چي یو و بل ته ښکنځل کوي ګناه ټوله پر هغه سړي ده چي ابتداء یې په ښکنځلو سره کړي وي چي هغه بل سړی تجاوز په ښکنځلو کي ونه کړي کمامر مثاله وبهذا جاء حدیث ابي هریره ﷺ کما رواه المسلم قال رسول الله ﷺ المستبان ماقالا فعلى المبادي مالم یعتد المظلوم یعني دوه کسه چي ښکنځل سره کوي هر څه چي وایي ګناه یې ټوله پر هغه چا ده چي اول یې شروع په ښکنځلو سره کړې وي ولي تر هغو چي مظلوم په ښکنځلو کي تجاوز ونه کړي. او بغوي رحمه الله وایي چي مجاهد رحمه الله ویلي دي چي دا آیت د مېلمانه په باره کي دی چي پر یو قوم مېلمه سي او هغه یې حق د مېلمستیا نه کړي پر ځای، نو ده ته جهر آروا ده چي ددې د سپیتاني بیان دي وکړي، له عقبه بن عامر ﷺ څخه روایت دی چي موږ و علیه الصلوة والسلام ته وویل چي ته موږ پر یو خوا واستوې. نو موږ پر یو قوم ورسوو دوی موږ ته ډوډۍ وغیره رانه کړي، نو ستا څرنګه رایه ده چي موږ ددې خلګو سره څرنګه برتاؤ وکړو، نو موږ ته علیه الصلوة والسلام وویل که تاسي نازل سواست پر یو قوم هغو ستاسي حق د مهمانۍ پر ځای کړي نو هغه حق ځني قبول کړئ نور زائد شیان مه ځني غواړئ او که یې حق د مهمانۍ نه کړی پر ځای فخذومنهم حق الضیف یعني په زوره یې ځني واخلئ حق د مېلمنو رواه البخاري ومسلم.

**درویش وایي:** چي هر شان نزول د "لایحب الله الجهر" چي مفسرانو بیان کړی دی علامه آلوسي بغدادي په روح المعاني کي وایي والعبرة لعموم اللفظ لا لخصوص السبب آه.

**إِن تُبْدُوا۟ خَيْرًا أَوْ تُخْفُوهُ أَوْ تَعْفُوا۟ عَن سُوٓءٍ فَإِنَّ ٱللَّهَ كَانَ عَفُوًّا قَدِيرًا ﴿١٤٩﴾**

که تاسي ښکاره کړی د خیر کار چي عبارت دی د طاعت قولي یا فعلي څخه هر عبادت چي وي او که هغه د خیر کار په پټه وکړي او یا عفوه وکړي له بدو څخه یعني د ظالم، والمقصود ههنا ذالک یعني چي جهر بالسوء ونه کړي او ان تبدوا

خیراً او تخفوه و تعفوا ته تهمید دی په دلیل د اخیر د آیت یعني فان الله کان ا
یعني چي خدای ﷻ سره د قدرت عظیمه پر هر نوع تعذیب د عاصي لري بیا هم و
گناه کارانو ته عفوه غوره کړې ده، نو په مقتضی ددې حدیث تخلقوا باخلاق الله
تاسي هم د ظلم د ظالم په باره کي د عفو لار خپله کړې تر دې چي جهر بالسوء
کوئ فتمحوا السیئة بالحسنة. حاصل دادی چي جهر بالسوء د ظالم مکافاتاً
لظلمه رخصت کما یدل علیه اول الآیة یعني قوله تعالی "الا من ظلم" او عفوه یې
ورته عزیمت دی کما یدل علیه اخیر الآیة یعني "فان الله کان عفواً قدیراً" وفي
الحدیث الذي رواه ابو داؤد والترمذي عن ابن عمر ﷺ، ده وویل چي د رسول
الله ﷺ څخه چا پوښتنه وکړه چي زه څو واره و خپل خادم مریي وغیره ته عفوه د
گناه کوم؟ علیه الصلوة والسلام ورته وویل هره ورځ اوویا واره

**مسئله:** اظهار د قبائحو او جنایاتو د یو ظالم خو واجب نه دی البته رخصت دی
لکن دداسې ظالم چي ضرر یې عمومي وي او مرض یې ساري وي لکه یو ملا چي
برملا و خلگو ته نصیحت او تعلیم د اعتزال کوي، او یا د سفلیانو د عقائدو تعلیم
و خلگو ته کوي او یا معلم الوهابیة وي وامثال ذالک. نو اظهار د عیبو د ورته
ملایانو روا ده بلکي واجب دی تحذیراً للناس عن ضلالاتهم لان هؤلاء الفرق اشد
ضررا للناس عن الخناس لانهم یحکمون بشرک جمیع الامة المرحومة سوی فرقهم
المنحوسة و قد بنوا هؤلاء في کل بلد من بلاد پاکستان مدارس لتعلیم
ضلالاتهم، ومن عجائب حیل هؤلاء دادی چي دوی پخپلو مدرسو کي لوی طالب
علمان نه داخلوي. ولې چي دوی وایي چي د لویو طالب علمانو عقیده پخه ده مونږ
یې نه سو گمراه کولای بلکې دوی پخپلو مدرسو کي ساده لوح اطفال داخلوي چي
پر ساده تخته هر ډول خط امکان پذیر دی بلکې په عین حال کي دوی ودغو اطفالو
ته ښه ښه ماکولات ورکوي او په عیدینو کي ښه ښه ملبوسات ورکوي.

**پوښتنه:** مشران ددغو مدرسو دا دونده ډېر امداد له کومه ځایه څخه تر لاسه کوي؟

**ځواب:** ددوی یعني د مشرانو ددغو مدارسو د کورو مصارف او د مدارسو تول
د لالا له کوره دی. په پښتو کي متل دی وایي

چته دي خوشحاله وي غم يې د لالا پر سر.

په صحيح حديث کي راغلي دي "اذکروا الفاسق بما فيه ليحذره الناس" او په بل اثر کي راغلي دي "ثلاثة ليست لهم الغيبة الامام الجابر، والفاسق المعلن بفسقه" يعني ظالم بادشاه او هغه فاسق چي فسق يې رسوا کوي لکه شراب خوره چي شراب خانه يې په رسوا جوړه کړې وي الى غير ذالک من دار الزنى مثلاً. او بل مبتدع چي خلګ و خپل بدعت ته رابولي کالفرق المذکوره.

تعجب دادی چي دغه اهل الفرق و ټولو مقلدانو ته د مذاهبو اربعه وو او و ټولو مشائخو د څلورو طريقو د تصوفو مبتدعان وايي اعاذنا الله وجميع احبائنا من امثال هذه الضلالات، پښتانه يو متل کوي چي غلبيل و کوزې ته ويل څو مره د پر سوري لرې. نو دغه فرق موږ ټولو مقلدانو ته د مذاهب اربعه وو او مقلدانو ته د مشائخو کرامو مبتدعان بلکې مشرکان وايي او خپلو ځانو او خپلو اتباعو ته موحدان وايي، او د فقهي شريفي کتابونه داسي په اهانت او سپکاوي اخلي چي د سري پر سر اور بلوي ثم ان اکثر السوء والبدعة يتعلق باللسان لان اللسان ضعير الجرم کبير الجرم.

**يوه سه**: چي که د سړي پښه وښويږي څو نهايت غم يې دادی چي ماته به سي کافر کيږي څو به نه او داغه رنګه د پښې د ښويدلو سره د مرګ بېره چندان نسته او د ژبې هغه نوره ګناه کبائر چي په دې سره کيږي لکه غيبت بهتان شيطانت دروغ ناحقه قسمونه پوچ او فحش د هغو سره ګاهي د ژبې خبره سړی و کفر ته ورسوي لکه الفاظ د کفر على فصل في جامع الفصولين مثلاً العياذ بالله.

سب د قرآن سب د عليه الصلوة والسلام سب د شريعت مطهره سب د دين مقدس الى غير ذالک مما يتعلق باللسان په تاريخ کي راغلي دي چي ابن السکيت اللغوي چي د متوکل على الله خليفه د زامنو چي معتز بالله او موید بالله يې نومان وه معلم او ښوونکی و، يوه روځ د خليفه دغه دوه زامن په دربار کي د پلار وه چي ابن السکيت ورغلی نو خليفه المتوکل على الله و ابن السکيت ته وويل زما دا دوه زامن پر تا ګران دي او که حسن او حسين رضي الله عنهما در باندي ګران دي ابن

السکیت ورته وویل والله ان قنبراً خادم علي رضي الله عنه خیر منک ومن ابنیک خلیفه حکم وکړی چي د ابن السکیت ژبه دي تر څټ ویستل سي فمات، ومن ابیات ابن السکیت التي علمها ابنی المتوکل الخلیفة في الیوم السابق هذان البیتان.

یصاب الفتی من عثرة بلسانه — ولیس یصاب من عثرة الرجل

فعثرته بالقول تذهب راسه — وعثرته في الرجل تبرء علی مهل

**ترجمه**: سړي ته آفت رسیږي له ښویدلو څخه د ژبي او دونده آفت نه ورسیږي له ښویدلو څخه د پښې، ولي چي په ښویدلو کي د ژبي یې سرځي، او ښویدل د پښې جوړیږي په مهلت سره.

## إِنَّ الَّذِينَ يَكْفُرُونَ بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ

په تحقیق هغه کسان چي کفر کوي په خدای سره او په رسولانو د خدای جل جلاله، بغوي رحمه الله وایي چي آیت په شان کي د یهودانو نازل سوی دی. ولي چي دوی خو علیه الصلوة والسلام او قرآن نه مني او عیسی علیه السلام او انجیل هم نه مني، نو دوی ګویا ټوله رسولان او کتابونه د خدای جل جلاله نه مني لان بعض الرسل مصدق بعض، وبعض الکتب ایضاً مصدق لبعض، نو که څه هم دوی وایي چي موسی او تورات منو او ایمان پر لرو لکن دي ایمان بالبعض ته اعتبار نسته عندالله. او کفر ددوی په خدای سره ددې سببه دی چي دوی آیات د خدای جل جلاله که په انجیل کي دي او که په قرآن کي دي دوی یې نه مني نو خدای هم نه مني.

## وَيُرِيدُونَ أَنْ يُفَرِّقُوا بَيْنَ اللَّهِ وَرُسُلِهِ

او دوی اراده ددې لري چي د خدای جل جلاله ایمان او د رسولانو ایمان سره جلا کړي یعني یا وایي چي خدای منم رسولان یې نه منم لکه اهل شرک چي وایي یعني ددوی زعم باطل ورته ایمان بالله او خدای جل جلاله ته شریک ویل ممتنع الاجتماع لان الایمان بالله عبارة عن عدم الشریک له في الالوهیة یعني في وجوب الوجود لکه مجوس چي وایي چي واجب الوجود دوه دي یو یزدان دی او یو اهرمن دی وعن عدم الشریک له في العبادة او مشرک که اول شریک نه وایي دوهم شریک خو وایي کما یقولون اشارة

الی الاصنام هؤلاء آلهتنا فنظل لها عاکفین ای عابدین او یا لکه یهود چې دوی وایي خدای ﷻ خو منو او عیسی او محمد علیهما الصلوة والسلام نه منو.

وَيَقُولُونَ نُؤْمِنُ بِبَعْضٍ وَنَكْفُرُ بِبَعْضٍ وَيُرِيدُونَ أَن يَتَّخِذُوا بَيْنَ ذَٰلِكَ سَبِيلًا ۝

او دوی وايي چې موږ پر بعض نبیانو ایمان لکه موسی علیه السلام او موږ کفر او انکار له بعض نبیانو څخه لکه عیسی او محمد ﷺ. او دوی اراده لري چې په منځ کې د کفر او ایمان لار پیدا کړي یعني دین

أُولَٰئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ حَقًّا ۚ وَأَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ عَذَابًا مُّهِينًا ۝

دغه کسان دي کافران په حقه سره، او موږ اراسته کړی دي کافرانو لره که مشرکان وي او که یهودان وي او که نصاری وي وغیر هؤلاء من فرق الکفرة عذاب د اهانت یعني د سپکاوي.

**پوه سه**: چې خدای پاک عذاب د کفارو په دوږخ په "مهین" سره مقید کړی ددې لپاره که بعض مؤمنان په سبب د بعض عصیان دوږخ ته ورسي هغه عذاب د سپکاوي لپاره نه دی بلکې د ګناه له خیرو څخه د پاکۍ لپاره دی مثالهما الحطب علی النار والذهب علی النار فافهم.

**سوال**: هم خو ضمیر فصل دی په منځ کې د مبتداء او خبر او غالبه فائده د ضمیر فصل حصر د خبر دی پر مبتداء او سره ددې چې کافران خو بېله یهودانو نو هم سته؟

**ځواب**: حصر په اعتبار د کمال ددوی دی په کفر کې فالمعنی هم الکاملون في الکفر لانهم یثبتون الواسطة بین الکفر والایمان وفي الواقع لاواسطة بینهما. ولې چې ایمان بالله هلته اعتبار لري چې د ایمان سره د ټولو انبیاؤ او د ایمان سره د ټولو کتابو ملګري وي، او تصدیق د ټوله مابلغه الرسل به کوي اجمالاً في البعض لکه زموږ مسلمانان ایمان پر تورات اوانجیل او تفصیلاً لکه زموږ ایمان پر قرآن عظیم الشان باندي والحق واحد مشترک بین جمیع الرسل وجمیع الکتب وایمان هؤلاء الیهود ولیس کک فماذا بعد الحق الا الضلال.

وَالَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ وَلَمْ يُفَرِّقُوا بَيْنَ أَحَدٍ مِنْهُمْ

او هغه کسان چي ایمان يې راوړی وي پر خدای ﷻ يعني بدون الشريک وبصفاته الکمالية الجمالية والجلالية وبدون القول بالابوة لاحد وما يناسب بذاته الجليلة من عدم المکان والجهة والجسمية وغير ذالک مما يمتنع على ذاته الکاملة. او ایمان يې راوړی وي پر رسولانو د خدای ﷻ، يعني پر ټولو رسولانو لا کاليهود يؤمنون بموسى عليه السلام فقط ولا کا النصارى يؤمنون بعيسى عليه السلام فقط. او فرق يې نه وي کړي په منځ کي د رسولانو بالايمان بالبعض والکفر ببعض وليس المراد الفرق بينهم في الافضلية والسيادة.

الاعراب موصول يعني الذين مبتداء ده والظاهر چي خبر يې جمله ده اولئک آه. او بعض مفسران وايي چي خبر د موصولو محذوف دی يعني اولئک هم المؤمنين حقاً. او پر دې تقدير جمله د اولئک جمله مستانفه ده.

**سوال:** بين خو پر متعدد شيانو داخلېږي او دلته پر مفرد داخل دی چي لفظ د احد دی؟

**ځواب:** احد چونکه په سياق کي د نفي دی نو عام او متعدد دی.

أُولَٰئِكَ سَوْفَ يُؤْتِيهِمْ أُجُورَهُمْ

دغو کسانو ته به پوره ورکول کېږي ثوابونه ددوی.

**پوه سه:** چي بعض قراء "سيؤتيهم" په صيغه د غائب وايي يعني باليا، او بعض يې په صيغه د متکلم وايي يعني بالنون او دواړه قرائته متواتره دي. يعني هغه ثوابونه به خدای ﷻ ورکوي چي ددوی سره يې وعده کړې ده. او کلمه د "سوف" چي لپاره د استقبال بعيد ده دلالت کوي پر دې چي دغه پوره ثوابونه په ورځ د قيامت ورکول کېږي وان استوفى لهم بعض الاجور في الدنيا ايضاً.

وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَحِيمًا ﴿١٥٢﴾

او دی خدای ﷻ بخښونکی د بعض هغه خطاياوو چي ددوی څخه تفريط سوی او خدای ﷻ مهربان دی چي ددوی حسنات په ور مضاعف کوي من واحد الی

عشرة والى سبعمائة بل الى ماشاء الله ﷻ.

**پوه سه:** چي ايمان او توحيد اصل الاصول دی او ايمان کښ هم زيادت او نقصان نه قبلوي په نېز د امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله. لکن نور د ايمان زياتېږي په عباداتو سره او په سيئاتو سره يې نور کمېږي. جنيد بغدادي سيد طائفة الصوفية رحمه الله وايي چي ادب دوه قسمه دی يو ادب د سر او د باطن دی چي زړه پاک وساتي له عقائدو زائغو څخه او بل ادب د علانيه دی وهو حفظ الجوارح عن الشرور والسيئات واعمالها في اداء الاوامر والطاعات وفقنا الله الى كلا الادبين.

**پوه سه:** چي ابن جرير الطبري له محمد کعب القرظي څخه روايت کوي چي بعض يهودان چي بغوي رحمه الله وايي چي هغه يهودان کعب بن الاشرف او فحاص بن عاذورا و. نو يې عليه الصلوة والسلام ته وويل چي موسى عليه السلام خو موږ ته تورات پر تختو ليکلی راوړی دی. نو که ته نبي برحق يې ته هم موږ ته کتاب پر تختو نوشته راوړه. نو به موږ ستا تصديق وکړو فنزل هذه الآية.

## يَسْـَٔلُكَ أَهْلُ الْكِتٰبِ أَنْ تُنَزِّلَ عَلَيْهِمْ كِتٰبًا مِّنَ السَّمَآءِ

ستا څخه خواست او سوال کوي. اهل کتاب چي مراد ځني يهودان دي چي ته نازل کړه پر دوی يو کتاب له اسمانه څخه.

**درويش وايي:** چي سوال او غوښتنه له عليه الصلوة والسلام څخه دوه قسمه ده يو سوال لپاره د هدايت دی. يعني د ځان په دين خبرولو لپاره هغه سوال ته اجابت او قبلونه کېږي مثل ماسئال الصحابة رضي الله عنهم عن النبي ﷺ كما جاء في القرآن يسئلونک ماذا ينفقون. نو خدای پاک سمدلاسه ځواب ورکړی بقوله قل العفو وقوله يسئلونک عن المحيض. خدای ﷻ في الحاله ځواب ورکړی قل هو اذی الآية. وقوله تعالى ويسئلونک عن الاهلة خدای ﷻ فوري ځواب ورکړی "قل هي مواقيت للناس والحج" وامثال ذالک. او يو سوال دی د تعنت يعني د ضديت د لاري او سوال د اقتراح دی يعني بې ځايه لپاره اسکات د نبي ﷺ هغو سوالونو ته خدای ﷻ ځواب نه ورکوي. ولي چي د سائل غرض هدايت او ځان پوه کول غرض نه دی.

**فائده:** دا آيتونه دي ځايه "يسئلک اهل الکتاب الى قوله بهتاناً عظيما" چي

نازل سوه او یهودان یې ډېر خوړ کړه او ددوی له قبائحو څخه یې پرده پورته کړه.
نو یو سړي د یهودانو د ډېره غضب څخه پر ژنګنو سوه، نو داسې و علیه الصلوة والسلام ته وویل "ما انزل الله علیک ولا علی موسی ولا علی عیسی ولا علی احد شیئاً" نو ددغه قول حکایت خدای ﷻ بل ځای په قرآن کې کړی دی "وما قدروا الله حق قدره اذ قالوا ما انزل الله علی بشر من شئ"

**فائده:** درویش وایي: چې دغه یهودان خو ددې لپاره علیه الصلوة والسلام ته راغلي وه چې ته مثل موسی علیه السلام قرآن په تختو کې موږ ته راوړه اخیر پای یې پر دې تمام سو چې پر هغه چې پر تختو راوړه سوی کتاب و یعني التوارت باندې د انکار کمبل ور اچول.

## فَقَدْ سَأَلُوا مُوسَىٰ أَكْبَرَ مِن ذَٰلِكَ

په تحقیق دوی سوال کړی دی له موسی علیه السلام څخه دا ستا تر سوال لوی او نامناسبه سوال کاوه، والمقصود من هذا التسلي لرسول الله ﷺ یعني په دغه سوال چې دوی له تا څخه وکړی غم جن کېږه مه. ولې چې ددوی اسلافو د موسی علیه السلام څخه ستاتر دا اوسني سوال ډېر شنیع او نامناسبه سوالونه کړي دي یعني هذه عادة لهم سلفاً وخلفاً کما عرفت في سوالک.

مصرع: شنشنة اعرفها من حصه اخزم.

**یوه سه:** چې ضمیر د "سئلوا" خو اهل کتابو ته راجع دی لکن دا وروستني سوال خو ټولو اهل کتابو یهودانو د عصر موسوي نه دی کړی بلکې هغو اوویا کسو کړی دی چې موسی کوه طور ته ورسره بیولي وه. لکن اسناد یې وټولو ته کقولهم لبوفلان قلتوا مع ان القاتل واحد منهم یعني د فلاني زامنو مړی کړی دی سره ددې چې قاتل یې یو زوی وي.

## فَقَالُوا أَرِنَا اللَّهَ جَهْرَةً

نو دوی وویل و موسی علیه السلام ته چې ته په موږ وویښه خدای ﷻ چې دا ته خبري ورسره کوې علانیةً چې موږ یې ووینو.

**یوه سه:** چې "جهرة" منصوب دی علی انه مفعول مطلق په حذف د مضاف ای ارائة جهرة

**درویش وایي:** چې څه وخت چې د موسی علیه السلام سره اوویا کسه کوه طور ته ورغله او پر موسی علیه السلام نور الهي فیض سو چې نور د ملګرو څخه پټ سو او د خدای ﷻ او د موسی علیه السلام تر منځ خبري اتري جاري سوې چې دوی هم اورېدلې، نو موسی علیه السلام چې له مناجات الهي فارغه سو ملګرو یې ورته وویل چې دا څوک و چې ستاسره یې خبري کولې، موسی علیه السلام ورته وویل خدای پاک و، ملګرو یې ورته وویل چې موږ ستا دا دعوه نه منو که خدای و نو دی په موږ علانیةً او په ښکاره تو ګه ځان ووېښي.

## فَأَخَذَتْهُمُ الصَّٰعِقَةُ بِظُلْمِهِمْ

نو دوی ونیوله اسماني تکې یعني اور چې تو له پکښې هلاک سوه. په سبب د ظلم ددوی پر خپلو ځانو چې سوال د رویت الهي خلاف العادة والحکمة یې وکړې او ځان ته دونده لوړه مرتبه ورکړه چې موږ دې په دنیا کي په دغو سترګو خدای ووینو، نو ځکه خدای ﷻ تکه پر رایله کړه.

**پوه سه:** چې دا آیت پر دې دلالت نه کوي چې روئیت د خدای مطلقاً یعني في الدنیا والآخرة ممتنع لقوله تعالی "وجوه یومئذ ناضرة الی ربها ناظرة" وغیر ذالک من الآیات والاحادیث المبارکة في رویة الله یوم القیامة یبلغ احادها الی حد التواتر المعنوي کما لایخفی، والمعتزلة ینکرون الرؤیة.

**درویش وایي:** چې دا اوویا کسه چې په اسماني اور هلاک سوه نو موسی علیه السلام خدای پاک ته په زاریو سو چې خدایه دا کسان خو قوم پر ما تاوانوي وایي به چې روغ تیار دې بو تله او مړه دې کړه، په بل ځای کي قرآن دا سي راغلي دي چې موسی وخدای پاک ته وویل ان شئت اهلکتهم وایاي، هغو و چې د موسی علیه السلام عذر او عجز خدای ﷻ ومانه هغه اوویا نفره یې ورته راژوندي کړه.

## ثُمَّ اتَّخَذُوا الْعِجْلَ مِنۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُمُ الْبَيِّنَٰتُ

بیا دوی وګرځاوه ګلګی (سخندر) چې سامري ورته جوړ کړی یعني خدای ﷻ وګرځاوه او عبادت د هغه یې شروع کړی دا هغه وخت و چې

موسی علیه السلام طور ته تللی و د تورات د راوړلو لپاره او هارون علیه السلام یې جای نشین ګرځولی و سامري چې نوم د هغه هم موسی علیه السلام و بني اسرائیل چې شپږ لکه وه په هغو کې یوازې دوولس زره کسه د هارون علیه السلام سره سوه نورو ګردو پر ګاؤ پرستي شروع کړه الی مجئ موسی من الطور.

**درویش وايي:** چې دا ډېره اوږده قصه ده چې د شپاړسمي سیپارې د سورت طحٰه په تفسیر کې به راسي ان شاء الله او دا اتخاذ العجل وروسته چې دوی واضح معجزې د موسی علیه السلام پر لاس ښکاره سوې یعنې عذر د جهل یې دفع سو.

**پوه سه:** چې دا جنایت هم له قدماؤ څخه د بني اسرائیلو پېښ سوی دی.

**فَعَفَوۡنَا عَنۡ ذٰلِكَۚ**

• نو موږ هغو ته یعنې ستاسي اوائلو ته عفوه وکړه یعنې دوی توبه وکښل یعنې د استیصال عذاب مو نه کړی پر نازل.

**درویش وايي:** چې په دې آیت کې په الطفه وجه سره دعوت دی و بني اسرائیلو ته د عصر نبوي چې تاسي هم له کفر څخه د علیه الصلوٰة والسلام توبه وکاږئ تاچې تاسي ته به هم عفوه وکړه سي لکه ستاسي و اسلافو ته بعد التوبة.

**وَءَاتَيۡنَا مُوسَىٰ سُلۡطَٰنٗا مُّبِينٗا**

او موږ ورکړې وه ښکاره پر بني اسرائیلو باندې ولې چې د ګلګې عبادت دوی شروع کړی که څه هم هارون دلې و او ډېر نصیحت یې ورته وکړی لکن د هغه به خوله یې نه وکړه موسی علیه السلام چې له طوره راغلی ګردو عبادة العجل پرېښو او توبه یې څنې وکښل، او موسی علیه السلام هغه ګلګی په اور وسو دوی هیڅ ږغ نه کاوه بیا وروسته موسی علیه السلام دوی امر کړه چې د توبې د تمام لپاره به دوی ځانونه تسلیموي په وجه د عبدة العجل چې هغه غیر عابدین دوی قتل کړي دوی ورته تیار سوه او ویا زره کسانو خپل ژوند له لاس ورکړی وروسته په شفاعت د موسی علیه السلام او هارون علیه السلام قتل متوقف سو او توبه نازله سوه، ، تمام هذه القصة في تفسیر سورة البقرة نو هم دا وه غلبه د موسی علیه السلام پر بني اسرائیلو باندې.

## وَرَفَعۡنَا فَوۡقَهُمُ ٱلطُّورَ

او مونږ پورته کړی یعني جبرائیل په امر د خدای ﷻ سر بهره یعني پر سرو ددوی یو قامت په قدر د یوه غره لپاره د اخذ د وعدې ددوی څخه په قبول کې د اوامرو او نواهي د تورات، درویش وایې چې دا واقعه هم د اسلافو د بني اسرائیلو ده.
**یوه سه**: چې مراد له طور څخه طور معهود نه دی بلکې مراد یو غر دی. قصه دا وه چې تورات چ مجموعاً په یوه وار نازل سو چې په هغه کې زر سورته وه او په هر سورت کې لوی او کوچنې زر آیته وه چې مجموع تورات لس زره آیته وه او هغه حلال او حرام. روا او ناروا. اوامر او منهیات الی غیر ذالک من القصص والامثال موجود وه، نو په تورات کې داسې اوامر وه چې بني اسرائیلو د هغو سره هیڅ عادت نه درلودی او داسې منهیات موجود هم وه چې بني اسرائیل په هغو سره دوخته عادي وه، نو تورات چې موسی علیه السلام پر بني اسرائیلو تلاوت کړی هغو جواب ورکړی چې دا ټول اوامر او منهیات زمونږ له طاقت څخه خارج دي. نو جبرائیل علیه السلام ته خدای ﷻ امر ورکړی چې یو غر چې پر قدر د معسکر ددوی یعني چې شپږ لکهه کسان وه روا وکاږه ددوی پر سرو یې یو قامت لوړ ونیسه. او موسی علیه السلام ته یې امر وکړی چې ورته ووایه چې تورات قبلوې که غر دربانديِ ایله کړم، نو دوی د غره له بېرې پر سجده پرېوتل او تورات یې قبول کړی او په عین حال کې یې داسې بغلې سجده وکړه چې په یوه سترګه یې غره ته کتل چې را ایله یې نه کړي، چې تر اوسه بني اسرائیل هم هغسې بغلې سجده په لمونځو کې کوي. له دوی څخه چې اوس څوک پوښتنه وکړي چې ولې داسې بغلې سجدې کوئ؟ دوئ ورته وایې چې زمونږ اسلاف په داغسې سجدې کولو له عذابه خلاص سوي دي، نو چې دوی د تورات احکام قبول کړه نو غر بېرته څنې پورته سو.
**تنبیه**: قرآن کریم د درویشت کاله په زمانه کې د خیر البشر ﷺ آیةً آیةً سورةً سورةً په حسب د وقائعو او په اندازه د ضروریاتو پایه تکمیل ته ورسېدی او اوامر او منهیات په تدریج سره یو په بل پسې راتلله، لهذا هیڅ چا له اصحابو کرامو رضی الله عنهم څخه د هیڅ حکم څخه د قرآن مجید علامه د نه قبلولو ښکاره نه کړه لکه یهودانو

چي د تورات له قبلولو څخه بنکاره کړه، نو د مکې د کفارو دا سوال ښخایه ولولا انزل علیه القرآن جملةً واحدةً یعني کتوراة موسی الطیلا او د حکمت د تدریج د قرآن عظیم الشان څخه غافله وه.

## وَقُلْنَا لَهُمُ ادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا

او موږ وویل وبني اسرائیلو ته چي تاسي داخل سئ ودروازې ته ایلیا او دا هم پر ژبه د موسی الطیلا په داسي حال کي چي طور یې له سرو ولاړی پر سجده باندي یعني په وخت کي د داخلېدو د دروازې د ایلیا سرونه کښته کړئ، او په بل ځای کي د قرآن یې داسي هم ورته وویل سوه "وقولوا حطة" یعني امرنا حطة چي مراد څني بخښنه د گنهو وه، په بل ځای کي د قرآن مبارک راغلي دي "فتبدلوا الذین ظلموا قولاً غیر الذي قیل لهم" یعني حطة ومع هذا دوی فعل د سجدې هم بدل کړی، نو چي دروازې ته د ایلیا راورسېدلې که څه هم دروازه د ایلیا لوړه وه لکن جبرائیل یې دروازه راکښته کړه چي دوی و سر ټیټېدلو ته مجبوره سي لکن دوی د سر کښته کېدلو څخه انکار وکړی او پر کناتو ځکېدل په دروازه ننوتل او امر الهي د حطة یې هم بدل کړی بقولهم حنطة في شعرة.

**درویش وایي:** چي دا بله موضوع وه له څخه د اسلافو د یهودانو چي په دې ځای کي خدای پاک مجملاً اشاره ورته وکړه، او په بل ځای کي یې د قرآن کریم دا ټوله موضوع مفصله بیان کړه سوې ده.

## وَقُلْنَا لَهُمْ لَا تَعْدُوا فِي السَّبْتِ وَأَخَذْنَا مِنْهُمْ مِيثَاقًا غَلِيظًا

**درویش وایي:** چي دا قصه بله د قبائحو څخه د اسلافو د یهودانو چي معنی معنا د آیت داده چي موږ وویل وبني اسرائیلو ته پر ژبه د داؤد الطیلا چي تاسي تجاوز مه کوئ په ورځ کي د شنبې چي ددوی لپاره خاص د عبادت ورځ وه د دنیاوي کسب به یې نه کاوه، مراد د تجاوز في السبت کي دادی چي ښکار د ماهیانو به نه کوئ د شنبې په ورځ او موږ واخستی له دوی څخه په هغه زمانه کي ټینګه وعده په دې باب کي، تفصیل ددې قصې دادی چي د داؤد الطیلا په زمانه کي یو ښار و په نامه د ایله چي

درياب پر غاره وه او عمومي خوراک ددوی د ماهیانو غوښې وې نو د شنبې په ورځ دوی د ماهیانو له ښکاره څخه منع وه. امتحان د خدای ﷻ و چي د شنبې په ورځ به د درياب په غاړه کي غټ غټ ماهيان ګرځېدله او چي د شنبې ورځ به تېره سوه ماهيان به ورک سوه چي يوه دانه به دوی په ډېر تکليف ښکار کوله. اخير شيطان دوی ته دا وسوسه وراندي کړه چي تاسي خو له نيولو څخه د ماهيانو په ورځ د شنبې ممنوع ياست، نو تاسي داسي وکړئ چي له دريابه يو لښتی کش کړئ او د لښتي په پای کي لويه فراخه غاره جوړه کړئ، نو په ورځ د شنبې ماهيانو ته لاس مه وروړئ بلکې هر سړی دی په يو لرګي ماهيان پر خپل لښتي برابروي چي دوی ولاړ سي او په هغه فراخه غاره کي قرار ونسي تر ماښامه دا کار کوئ ماښام چي کورته ځئ د لښتي خوله د درياب له خوا په ختو بنده کړئ چي ماهيان بيرته درياب ته ولاړ نه سي د يکشنبې په ورځ چي راسئ په هغه ډب کي هر څو ماهيان چي تاسي د سبط په ورځ راپړي وهلي وه په آسانۍ سره به يې د هغې غاري څخه ښکار کړئ. خير دا کار خلګو په ډکه پيمانه شروع کړی. د ايله خلګ پر دې قسمه سوه لويه حصه داغه وه چي دا د حيلې د شيطان ښکار يې کاوه، او بعض علماء او پوهان ددې وطن په وعظ او تبليغ يې خوله پوري کړه چي دا حيلې پر ېږدئ دا خو عين د ماهيانو ښکار دی، ولي چي ماهي ستا په لاس کي چي تر سبا پوري ستا په حوض کي بندي دی. او بله ډله چي محدود کسان وه هغو نه ښکار کاوه يعني په مذکوره حيله او نه يې چاته نصيحت کاوه اخير الامر هغه واعظه ډله له وطنه بار سوه ګوښه يې په خېمو کي ګذاره کوله د ورځي به يو واز راغله وعظ به يې وکړی او يو مايتحاج اليه چي به يې رانيوی هغه به يې رانيوی بيرته به خپلو خېمو ته ولاړه.

## فَبِمَا نَقْضِهِمْ مِّيْثَاقَهُمْ

**يوه سه:** چي "ما" زائد دی لتاکيد مضمون الکلام او کلمه د "با" متعلق ده په محذوف پوري د تقدير نقضوا الميثاق ففعلنابهم مافعلنا ولعناهم:

**درويش وايي:** چي لعن دا و چي واعظه ډله راغله که ګوري د ماهي ګيرانو د کورو دروازې د دننه له خوا بندي دي او هيڅ څوک په کلي کي نسته، اخير دوی

یوه سوه چې پر ماهي ګیرانو یوه بلا نازله سوې ده. نو پر دېوالو ور واوښتل که څه ګوري سر ایونه د سرکوزانو او د بیزوګانو ډک دي او هغه بیزوګانو به ددوی کالي بویول او تر سترګو به یې اوښکي بهېدلې.

**درویش وایي**: چې دادی لعنت پر اصحاب السبت لکه په بل ځای کي د قرآن کریم چې راغلي دي کما لعنا اصحب السبت.

**پوښتنه**: چې واعظانو خو نجات پیدا کړی او ماهي ګیران خو په لعنت ککړ سوه، پاته دریمه ډله سوه چې نه یې ښکار کاوه او نه یې په چا کار درلود بعض تاریخ پوهان وایي چې هغو هم نجات پیدا کړی ولي چې سبب د لعن خو ښکارو هغه دوی نه کاوه، او بعض وایي چې څوک چې د منکرکارو کولو په وطن کي اوسېږي او دوی منع نه ورته کوي نو د دنیا عذاب چې نازل سي نو پر دواړو ډلو نازلېږي. البته د آخرت په عذاب کي فرق سته فتدبر.

وَكُفْرِهِم بِآيَاتِ اللَّهِ

او په سبب د کفر ددوی یعني یهودان په ایات د خدای ﷻ یا هغه آیات چې منزل ددوی په تورات کي وه چې نعوت د علیه الصلوة والسلام پکښې وه او یا آیات د قرآن کریم او د انجیل دي "وکفرهم" عطف دی پر "فبمانقضهم" باندي.

وَقَتْلِهِمُ الْأَنبِيَاءَ بِغَيْرِ حَقٍّ

او په سبب د وژلو ددوی انبیاء بېله حقه لکه زکریا. او یحی او نور هم.

**پوښتنه**: مرګ د نبي خو وي ناحقه، ولي چې قتل بالحق خو درې قسمه دی یو قتل دی قصاصاً دوهم قتل دی په سبب د ارتداد او دریم قتل دی په سبب د زنا بعد الاحصان، له دې درو اسبابو څخه یو په انبیاؤ کي متصور نه دی فما فائدة التقدیر بغیر حق؟

**ځواب**: مراد له غیر حق څخه دادی چې ددوی په زعم کي یعني دوی هم سبب د قتل د انبیاؤ نه سوای بیانولای.

## وَقَوۡلِهِمۡ قُلُوۡبُنَا غُلۡفٌ

او دوی به و علیه الصلوة والسلام ته ویل چي زموږ زړه په غلاف کي دی یعني په پرده کي دی مما تدعونا الیه، او یا زموږ زړونه ظروف د علم دي ستا د ښوونې ضرورت نسته او یا دا معنی چي هر شی چي حق وي زموږ زړونه یې قبلوي لانها ظروف العلوم الحقة او ستا تعلیم نه قبلوي. نو معلومه سوه چي ستا خبري حق نه دي وقد کذبوا اعداء الله في التقادیر الثلثة.

## بَلۡ طَبَعَ اللّٰهُ عَلَيۡهَا بِكُفۡرِهِمۡ فَلَا يُؤۡمِنُوۡنَ اِلَّا قَلِيۡلًا

"بل" لپاره د اضراب دی د دوی له دعوو څخه ای لیس الامر کذالک بلکي مهر لګولی دی خدای ﷻ د دوی پر زړو په سبب د کفر د دوی. نو ځکه د دوی زړونه په پرده کي د کفر دي او فکر په آیاتو کي د خدای ﷻ نه سي وهلای نو دوی ایمان نه راوړی مګر لږ. یا معنا دا ده ایماناً قلیلاً چي هغه لره اعتبار نسته وهو الایمان ببعض الانبیاء وبعض الکتب، او یا معنا دا ده چي لږ د لوی قوم څخه د یهودانو په ایمان مشرفه سول لکه عبدالله بن سلام و اصحابه ؓ.

**پوه سه**: چي نقض العهد سبب د غضب د رب دی کما قال الله تعالی فبما نقضهم آه او په صحیح حدیث کي راغلي دي چي حدیث ډېر اوږد دی چي که خلګو عهد د خدای او عهد د رسول د خدای مات کړي خدای ﷻ به مسلط کړي پر دوی باندي دښمن چي بېګانه به وي له دوی څخه.

**پوه سه**: چي عهد الله وعهد الرسول ماتول عبارت دی د عدم العمل څخه بما جاء به الله والرسول من المامورات والمنهیات، مثنوي معنوي

سوی لطف بي وفایان هین مرو کآن پل ویران بود نیکو شنو

## وَّبِكُفۡرِهِمۡ وَقَوۡلِهِمۡ عَلٰى مَرۡيَمَ بُهۡتَانًا عَظِيۡمًا

او په کفر سره د یهودانو یعني ثانیاً بعیسی ؑ او دوی وایي پر مریمې بهتان چي وایي دا زانیه ده او عیسی ؑ ولد الزنی دی.

**پوه سه**: چي غیبت هغه خبرو ته وایي چي په یو سړي کي یو بد خوی وي او بل

سړي د هغه د عيب بيان کوي، او بهتان هغه عيب د چا بيانول دي چي هغه عيب په هغه کي نه وي.

**فائده**: وبکفرهم" معطوف دی پر "بکفرهم" سابق باندي و حرف با يې راوګرځول للفصل بين المعطوف والمعطوف عليه.

**سوال**: دا عطف خو عطف د شي دی پر ځان باندي يعني کفر پر کفر؟

**ځواب**: اول کفر مطلق او عام دی او دوهم کفر مقيد بعيسى عليه السلام دی. يا دا بکفرهم دي معطوف وي پر بما نقضهم باندي او دوه واره کفر ذکر کول لپاره د تنبيه دی پر دې چي کفر د يهودانو مکرر دی. فانهم کفروا بموسى ثم بعيسى وداؤد وسليمان ثم بمحمد صلى الله تعالى عليه وعليهم اجمعين.

**وَقَوْلِهِمْ إِنَّا قَتَلْنَا الْمَسِيحَ عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ رَسُولَ اللَّهِ**

او بل په سبب د دې چي يهودانو به په ډېر فخر سره ويل چي موږ مړ کړی المسيح عيسى بن مريم چي رسول د خدای جل جلاله و.

**پوښتنه**: يهود خو عيسى عليه السلام رسول الله نه بولي بلکې ابن الزانية يې باله، نو دلته يې ده ته څرنګه نسبت د رسول الله وکړی؟

**ځواب**: مراد د يهودانو دادی چي رسول الله دی د ده په زعم او دا هم احتمال لري چي دوی دي رسول الله استهزاء ورته ويلي وي، وفي روح المعاني ان اليهود وصفوه بوصف الذم فبدله الله بوصف المدح يعني رسول الله.

**وَمَا قَتَلُوهُ وَمَا صَلَبُوهُ وَلَٰكِن شُبِّهَ لَهُمْ**

نه دوی يهودانو عيسى وژلی او نه يې په دار کړی دی لکن دوی ته اشتباه پېښه سوه، راوي وايي چي يو قوم د يهودانو عيسى عليه السلام او دده مور ته بنکنځل وکړه عيسى عليه السلام و هغو ته ښېرا وکړه، نو هغه سرکوزان او بيزوګان سوه، نو يهودانو قصد وکړی دده د وژلو نو خدای پاک دی خبر کړی چي زه دي اسمان ته پورته کوم.

**درويش وايي**: چي ددې ټوله قصه په سورت آل عمران کي تېره سوه، او په بعض رواياتو کي راغلي دي چي عيسى عليه السلام چي په يوه خونه کي و او چاته نه و معلوم، نو

یهودي عیسی علیه السلام وروښو او پر هغه شبه د عیسی واقع سوه عیسی علیه السلام خدای پاک اسمانو ته پورته کړی او هغه یهودي چي د عیسی شبه پر وه یهودانو قتل کړی او په دار یې کړی، او په یو روایت کي له ابن عباس رضي الله عنه څخه راغلي دي چي یهودا چي رئیس د یهودانو و په هغه وخت کي و یو نفر دده له ملګرو څخه چي طیطانوس یې نوم وورته وه یې ویل چي ورسه په هغه خونه کي چي عیسی بندي دی مړ یې کړه، نو عیسی خدای پاک آسمانو ته پورته کړی و او شبه یې په طیطانوس واچول نو هغه چي راووتی وه یې ویل چي عیسی خو په خونه کي نه و، نو یهودا امر ورکړی چي دغه عیسی دی لرؤیة شبه عیسی علیه، نو قتل یې کړی، وروسته یهودانو تلاش وکړی چي هغه سړی یعني طیطانوس څه سو چي موږ په عیسی پسي استولی و، که دا مړی عیسی وي نو طیطانوس څه سو او که دا طیطانوس وي نو عیسی څه سو ولهذا قال الله تعالی "ولکن شبه لهم" دوی ته یعني یهودانو ته یې قتل د عیسی لو په اشتباه واقع سوه یعني دا چي موږ مړ کړی عیسی و او که ددوی استولی سړی طیطانوس و.

وَإِنَّ الَّذِينَ اخْتَلَفُوا فِيهِ لَفِي شَكٍّ مِّنْهُ

او په تحقیق هغه کسان چي اختلاف یې کاوه په قتل کي د عیسی علیه السلام په شک او تردد کي وه په قتل کي د عیسی، یهودان وایي چي موږ عیسی وژلی دی او یوه ډله د نصاری وو هم پر عقیده د یهودانو دی چي مقتول و او بله طائفه د نصاری وایي چي عیسی هیڅ چانه دی وژلی بل رفعه الله الی السماء ونحن ننتظروا الیه، بعض راویان وایي چي خدای پاک شبه د عیسی یوازي پر مخ د طیطانوس اچولې وه او نور جسد یې د طیطانوس و نو بعض یهودانو وویل چي دغه مقتول عیسی و لان وجهه وجه عیسی، او بعضو به ویل چي دا مقتول طیطانوس و لان جسده جسد طیطانوس.

مَا لَهُم بِهِ مِنْ عِلْمٍ إِلَّا اتِّبَاعَ الظَّنِّ ۚ وَمَا قَتَلُوهُ يَقِينًا ۝ بَل رَّفَعَهُ اللَّهُ إِلَيْهِ ۚ وَكَانَ اللَّهُ عَزِيزًا حَكِيمًا ۝

نسته دوی لره یعني یهودانو په قتل سره د عیسی یقین چي دوی دي یقین یا پر قتل ولري او یا پر عدم قتل مګر نه هري ډلي قناعت د ګمان کاوه.

**پوه سه**: چي استثناء دلته منقطع ده ولي چي ظن خو له قسم څخه د علم او يقين نه دی يعني دوی متابعت د ظن کاوه چي موږ عيسی مړ کړی او دوی نه دی وژلی عيسی په يقين يعني دعوه کونکي د قتل د عيسی هم پر قتل دده متيقن نه وه صرف د گمان له لاري يې داخبره کوله. خدای پاک ددوی د قول رد په دې خبره چي بلکې خدای پاک دی پورته کړی وخپل ځان ته ای الی موضع اختاره الله لعيسی وهو السماء. او دی خدای ﷻ غالب فيما اراد لامعقب لحکمه. او حکيماً يعني خدای ﷻ عبث کار نه کوي بلکې په هر کار کي حکمت لري علمه الناس اولم يعلموا.

**فائده**: خدای ﷻ پر دغو يهودانو باندي چي اراده د قتل د عيسی يې درلوده که څه هم کامیابه نه سوه مسلط کړی صيطيونس بن استيانوس رومي چي په لوی جنگ کي ډېر يهودان قتل کړه.

**فائده**: جلال الدين السيوطي رحمه الله پخپل تفسير درمنثور کي وايي په تفسير کي د سورة کهف له ابن شاهين څخه يې روايت کړی دی چي څلور نبيان په حيوة دنيوي سره اوس هم ژوندي دي دوه په اسمان کي او دوه په ځمکه کي، ادريس او عيسی عليهما السلام په اسمان کي، خضر او الياس عليهما السلام په ځمکه کي، خضر د درياب په غاړه کي دی وعنده عين الحيوة. او الياس په ځمکه کي دی.

**فائده**: مريمه د خدای يوه ولي ښځه وه لکن ددې په اهانت او تر حد بالا تعظيم سره دوې ډلي کافراني سوې. يهودان په اهانت سره کافران سوه چي دې ته زانيه وايي، او په غايت تعظيم سره يې نصاری کافران سوه چي ددې زوی عيسی ته ابن الله وايي گويا مريمه زوجة الله بولي نعوذ بالله من ذالک کله. او زموږ د مسلمانانو مذهب متوسط بين افراط النصاری وتفريط اليهود. او موږ وايو چي عيسی عبدالله ورسوله وامه صديقة.

## وَإِن مِّنْ أَهْلِ الْكِتَابِ إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهِ قَبْلَ مَوْتِهِ

**پوه سه**: چي "ان" نافيه دی او استثناء مفرغ ده والمعنی له اهل کتاب يعني اليهود والنصاری هيڅ يو نسته مگر قسم په خدای دی چي هرو مرو به ايمان راوړي پر عيسی باندي.

**پوه سه:** چي "يؤمنن" جمله خبريه ده تاكيد د جمله قسميه انشائيه دمخه تر مرگ د عيسى ﷺ.

**درویش وایي:** چي اكثره مفسران او عام اهل علم پر دې دي چي ضمير مجرور د "به" راجع دی و عیسی ته، او عکرمه ﷺ وايي چي ضمير "به" راجع دی و عليه الصلوة والسلام ته، او بعض وايي چي ضمير راجع دی و خدای ﷻ ته. قال المظهري والمال واحد فان الايمان بالله لا يعتد الا بالايمان بجميع رسله والايمان بمحمد ﷺ الايمان بعيسى وبالعكس انتهى. او ضمير د "موته" راجع دی واحد محذوف ته ای قبل موت ذالک الاحد عند معاينة ملائكة العذاب عند الموت حين لا ينفعه الايمان.

**پوه سه:** چي ضمير د "به" چي راجع سي و عيسى ته، نو ترجمه د آيت داسي ده، يهودي چي وخت يې د زكندن ورسېږي او مرگ ورته حاضر سي، نو ملكې يې پر مخ او كوناتو وهي چي تاته عيسى نبي درغلی و نو تا يې تكذيب وكړی. او له نبوت څخه دې انكار وكړی، دا يهودي ووايي چي اوس زه اقرار كوم چي عيسى عبدالله ورسوله و ملكې ورته ووايي چي اوس دي نو ايمان فائده نه كوي، ولي چي حال د معاينة العذاب دی ومضى وقت التكليف وهو الدنيا، بيا ملكې د زكندن په وخت كې نصراني ته ورسي چي تاته درغلی و عيسى عبدالله ورسوله او تا به ويل چي عيسى هو الله او ابن الله دی نصراني ووايي چي اوس زه منم چي عيسى عبد الله ورسوله و، ملكې ورته ووايي چي اوس ستا ايمان فائده نه كوي ولي چي دار التكليف تېر سو اوس وخت د معاينة العذاب دی چي ايمان نه قبلېږي، او بعض مفسرين وايي چي ضمير د "به" او د "موته" دواړه راجع دی و عيسى ته والمعنى ح ، مامن اهل الكتاب الموجودين عند نزول عيسى الى الارض الاليؤمنن به اى بانه رسول الله وعبده لاساحر كما كان يقوله اليهود حين كون عيسى في الارض ولا ابن الله كماكان يقوله النصارى او د ايمان ددوی به دمخه تر مرگ د عسيى وي.

**درویش وایي:** چي وعلى ماقلنا في حق عيسى وايمان اليهود والنصارى به قس حال ارجاع الضمير الى الله تعالى او الى محمد ﷺ وحاصل الجميع انه

لا يموت كتابي اى النصارى واليهودي حتى يؤمن بالله وحده لاشريك له ولا يخطر ببال اليهودي ان عزير ابن الله ولا في ذهن النصارى ان عيسى ابن الله بل يقولون ان محمداً ﷺ عبده ورسوله وان عيسى عبده ورسوله لكن كل من هذه الاعترافات في تلك الحالات اى حالة معاينة العذاب لاترفع ولا يدفع عنه عذاب الآخرة لان الدافع عنه الايمان في الدنيا حالة اختيار وهذه حالة الاضطرار.

**فائده**: په دې آيت كې باعثه كول دي د خلكو پر ايمان برسول الله حالة الاختيار لانه المفيد في الخلاص من عذاب النار والله اعلم وعلمه اعظم.

**پوه سه**: چې ابو هريره رضي الله عنه د نبي ﷺ څخه روايت كړى دى چې په وخت كې د نزول د عيسى ټوله ملل او اديان هلاكيږي الا الاسلام، رواه ابن جرير والحاكم في المستدرک.

**درويش وايي**: چې له هلاک څخه مراد د ټولو اديانو عدم العمل بفروعها وانما قلنا بفروعها لان الاصول مشتركة بين الاديان كلها كما لا يخفى.

وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ يَكُوْنُ عَلَيْهِمْ شَهِيْدًا ۚ

او په ورځ د قيامت به وي عيسى يا محمد ﷺ او يا الله ﷻ پر اندازه. ارجاع د ضمير د لنؤمنن به، خداى پاک به پر خپلو بندګانو شاهدي اداء كوي كما قال وكفى بالله شهيداً والانبياء كلهم يشهدون على امهم، او محمد ﷺ به شاهدي اداء كوي د انبياؤ لپاره چې دوى تبليغ د دين كړى دى حين ينكر اقوامهم من التبليغ.

فَبِظُلْمٍ مِّنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا

**پوه سه**: چې تنوين د "ظلم" لپاره د تعظيم دى، والباء للسببية اى بسبب ظلم عظيم د هغو كسانو له خوا چې په دين يهوديت كې دي من نقضهم الميثاق وكفرهم بآيات الله وقتلهم الانبياء بغير حق وبهتانهم على مريم وقولهم په فخر سره چې موږ عيسى قتل كړى كمامر تلک القبائح في الآيات السابقة.

حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ طَيِّبٰتٍ اُحِلَّتْ لَهُمْ

موږ حلال طيب شيان چې پخوا دوى ته حلال وه حرام وګرځول وهذا التحريم

للحلال انما هو جزاء ظلمهم في الدنيا وفي الآخرة عذاب عظیم هغه شیان وه چي په سورت انعام کي ذکر سوه په دې آیت کي "وعلى الذين هادوا حرمنا کل ذی ظفر" په اخير کي د هغه آیت خدای پاک داسي هم وویل "ذالک جزینهم ببغیهم وانا لصادقون" او دا احتمال هم سته چي مراد دي له "طیب" څخه جنت وي ویلایم قوله تعالی واعتدنا للكافرين آه، او یا معنا د آیت داده چي ارزاق طیبه حلال خو په دنیا کي ډیر دي لکن خدای دوی محرومه گرځولي دي، نو دوی رزق خبیث حرام خوري لکه رشوتونه، د غلا مالونه وغير ذالک من الاموال المحرمة.

**پوه سه**: چي د خدای ﷻ د یهودانو سره دا عادت و چي دوی به یو جنایت او معصیت وکړی خدای ﷻ به دوی ته یو نوع د طیباتو یعني چي دوی ته به دمخه حلال وه حرام به یې ورته وگرځول کلحوم الابل والبانها.

## وَبِصَدِّهِمْ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ كَثِيرًا ﴿١٦٠﴾

او په سبب دد دې چي دوی منع کول له سبیل الله یعني له متابعت څخه د دین د اسلام او ایمان راوړه پر علیه الصلوة والسلام ډیر له خلکو څخه. نو کثیراً مفعول به او یا صداً کثیراً، نو کثیراً په اعتبار د موصوف محذوف مفعول مطلق دی.

## وَأَخْذِهِمُ الرِّبَوا وَقَدْ نُهُوا عَنْهُ

یعني خلگو ته به یې اموال ربویه په سود ورکول، په "وقد نهوا" کي واو حالیه دی یعني چي دوی په تورات کي د سود د اخذ منع کړه سوي دي، له دې آیت څخه دا معلومه سوه چي نهي مطلق په تورات کي لپاره د تحریم دی کما في القرآن العظيم ايضاً.

## وَأَكْلِهِمْ أَمْوَالَ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ

او دوی به خوړل یعني اخستل به یې مالونه د خلگو که به ماکول وه او که به غیر ماکول په باطله طریقه سره کالرشوة والخيانة، واليمين الكاذب والغصب وغير ذالک من وجوه التحريم.

**فائده**: بصدهم" سره د ما عطف علیه معطوف دی علی "بظلمهم" او هغه متعلق دی تو له بقوله "حرمنا" او پر حرمنا باندي بیا دا عطف دی.

وَأَعْتَدْنَا لِلْكَٰفِرِينَ مِنْهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا ﴿١٦١﴾

او موږ اراسته کړي دي و کافرانو ته دردناکه عذاب.

**پوښتنه**: عذاب خو دردناکه نه دی دردناکه خو کافران او دوږخیان دي؟

**ځواب**: عذاب عظیم پر طریقه د مبالغې راغلی دی یعني ګویا له ډېر عظمت څخه د عذاب ګویا عذاب معذب دی کما في لیل لئیل وداهیة دهیا کما في العربیة ویحتمل ان یکون الیم بمعنی المولم یعني که څه هم الیم فعیل د مجرد له بابه دی لکن دلته دی مجازاً په معنی د اسم فاعل له بابه د افعال یعني مولم. وقد جاء في قول الشاعر

امن ریحانة الداعي السمیع یورقني واصحابي هجوع

ریحانه د شعار خور وه چې یو چا په زوره څخني بېولې وه او شاعر د یو څو کسو سره د خور د خلاصون لپاره ور روان وه چې شپه پر راغله، تو له اند یو الان یې بیده سوه او شاعر ته خوب نه ورتلی په سبب د خور د سودا، نو دا شعر یې ووایه آیا د ریحانه له خوا څخه په ما یو بلونکی په ما خبري اوري. نو دغه سمیع په معنی د مسمع دی لعدم صحة معنی الفعیل کما لا یخفی، د شعر ترجمه داسي ده، چې ما بیداره کوي یعني دا داعي سمیع دی او سره ددې چې زما ملګري ټوله بیده دي.

لَّٰكِنِ الرَّٰسِخُونَ فِي الْعِلْمِ مِنْهُمْ وَالْمُؤْمِنُونَ

لکن هغه کسان چې محکم علم لرونکي وي یعني بالتورات له دې یهودانو څخه لکه عبدالله بن السلام واصحابه وبني عمه ﷺ، او که مسلمانان له اصحابو ﷺ څخه که مهاجرین وي او که انصار وي.

**پوه سه**: چې "راسخون" مبتداء ده "والمؤمنون" پر عطف دی او خبر یې دادی:

يُؤْمِنُونَ بِمَا أُنزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنزِلَ مِن قَبْلِكَ وَالْمُقِيمِينَ الصَّلَوٰةَ

دوی ایمان راوړی دی پر هغه کتاب چې پر تا نازل سوی دی چې قرآن عظیم الشان دی او پر هغو کتابو چې پر تا دمخه نازل سوي دي کالتوراة والانجیل والزبور وسائر الصحف المنزلة علی الانبیاء فیما مضی من الزمان من لدن آدم علیه السلام.

**پوه سه:** چي بغوي رحمه الله له عائشې رضي الله عنها او ابان بن عثمان رضي الله عنه څخه روايت کړی دی چي لفظ "والمقيمين" غلط سوی دی له کاتب څخه وينبغي ان يكتب والمقيمون. ولي چي دا خو مرفوع دی او حالت د رفعي د جمع مذکر سالم خو په واو او نون دی او دغه په سورت مائده کي په دې آيت کي ان الذين امنوا والذين هادوا والصائبون هم سهوه د کاتب ده بايد "والصائبين" وای. ولي چي دا خو په اعتبار د عطف پر الذين حال يې د نصب دی. او حالت نصبي د جمع مذکر سالم خو په يا او نون سره دی. او دغه رنګه دا قول د خدای ﷻ "ان هذان لساحران" سهوه د کاتب ده بايد "ان هذين لساحران" وای لانه في مقام النصب والنصب في التثنية والملحق بها باليا. وقال عثمان رضي الله عنه ان في لحننا خطاء يسقيمه العرب بالسنتهم ژر دی چي عرب به يې پخپلو ژبو صحيح وايي. نو چا و عثمان ته وويل الاتغيره يعني دغلطو الفاظو ته وصحيح دول ته تغير نه ورکوي. عثمان رضي الله عنه ورته وويل دعوه فانه لايحل حراماً ولا يحرم حلالاً. پريږدئ چي دا غلطيا وي په داسي الفاظو کي دي چي هر ډول يې ووايي نه حرام په حلالېږي او نه حلال په حرامېږي يعني حل وحرمت تعلق نه پوري لري. لکن صحيح داده چي دا قول چي فلاني توری د قرآن او فلاني دا سهوه بين ده له قائلو څخه عفی الله عنهم بلکي اجماع د امت پردې ده چي هر څه کلمات چي دوی يادي کړي دي چي حق د اداء يې داسي وه تولي کلمات پر موجود في القرآن لفظ صحيح دی لکن هر ځای هغه لفظ چي دوی به غلط باله هغه پر ژبه د عربو برابر ول د نحو پر قانون توجيه غواړي ددې ځای په توجيه کي اختلاف دی. بعض وايي چي په قانون منصوب على المدح دی وتغيير الاعراب للتنبيه على فضيلة الصلوة. والتقدير امدح المقيمين الصلوة. او بعض وايي منصوب په تقدير د اعني چي فعل متكلم واحد دی. نو مقيمين به يې مفعول سي او د وروسته سره مبتدا. مقدره وي ای هم المؤتون الزكوة اوبعض مفسران وايي چي مقيمين په مقام د جر دی عطف دی پر ما انزل اليک بانډي والتقدير يؤمن بما انزل اليک وبالمقيمين الصلوة ای الانبياء عليهم السلام.

**درويش وايي:** چي د منصوب على المدح توجيه ډېره ښايسته ده ليشوعه في امثاله

غاية الشيوع او بايد چي د مرفوع على المدح كما يقال الحمد لله اهل الحمد بالرفع على المدح والمنصوب على المدح كما في القول المذكور الحمد لله اهل الحمد بالنصب على المدح وهكذا المرفوع على الذم والمنصوب على الذم.

**درويش وايي:** چي ددې اصطلاحاتو د تحقيق لپاره شرح جامي يا مطول په غور سره مطالعه كړئ، كه درويش دلته اصطلاحات په تفصيل سره بيانوي وخت به هم ضائع سي او كاغذ به هم او فائده به يې چندان تر سره نه وځي.

**وَالْمُؤْتُونَ الزَّكٰوةَ وَالْمُؤْمِنُونَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ**

او هغه كسان چي د خپلو مالونو زكوة وركوي، او ايمان لري پر خداى ﷻ او پر وحدانيت د خداى وغير ذالک او د قيامت پر ورځ.

**پوه سه:** چي مظهري وايي چي "والمؤتون الزكوة" عطف دى پر "والراسخون" باندي فالرفع يې على الظاهر او يا مبتدا، د خبر يې جمله د اولئک آه ده "والمؤمنين آه" عطف دى پر "المؤتون الزكوة باندي.

**درويش وايي:** چي مظهري صرف په مراعات د اعراب د رفع د المؤتون والمؤمنون دا عطف مختار كړى دى. ورنه دا عطف بعيد دى، ولي دا دوه لفظه په والمقيمين الصلوة پوري متصل راغلي دي بايد پر هغه عطف سي. فالعطف على البعيد مع امكان العطف على القريب بعيد والحق ماقال صاحب روح البيان چي والمؤتون الزكوة عطف دى على المقيمين الصلوة فرفعه ايضا على المدح وكذا رفع والمؤمنون بالله على المدح.

**درويش وايي:** چي فينتظم الكلام القرآني على الوجه المناسب للانتظام، وعلى ماقال المظهري يكون الكلام القرآني كدرر منثورة والله اعلم بالصواب.

**فائده:** ايمان يې مقدم كړى في قوله تعالى والمؤمنون يؤمنون بما انزل آه لانه المقصود الاهم في الآية.

**اُولٰٓئِكَ سَنُؤْتِيْهِمْ اَجْرًا عَظِيْمًا ﴿١٦٢﴾**

دغو كسانو ته چي موصوف په صفات مذكوره في الآيات السابقة سره وي ژر دى

چي موږ به ور کوو ورته لوی ثواب په اخرت کي چي جنت دی او نعیم د جنت دي.

**پوه سه:** چي کلمه د "سنؤتیهم" په نون د متکلم او په یا د غیبت دواړه قرآات متواتره دي.

**پوه سه:** چي ابن اسحاق له ابن عباس ﷜ څخه داسي روایت کړی دی چي عدي بن زید الیهودي وویل چي موږ علم نه لرو چي خدای ﷻ دي وروسته تر موسی ﷺ پر یو بشر کتاب نازل کړی وي او یا دې دین جدید ورته استولی وي فانزل الله.

## اِنَّآ اَوۡحَیۡنَآ اِلَیۡكَ كَمَآ اَوۡحَیۡنَآ اِلٰى نُوۡحٍ

موږ وحي کړي دي وتاته یا محمد لکه چي موږ وحي کړي وي ونوح ته.

**پوښتنه:** د نوح د تخصیص وجه څه ده سره ددې چي دمخه تر نوح هم انبیا وه لکه آدم وغیره؟

**ځواب:** وجه د تخصیص یې داده چي دی ابو البشر الثاني دی د دنیاوالو لپاره، لکه آدم چي ابو البشر اول و. ولي چي نور تول له کفار په طوفان نوح کي غرق سوه حتی چي دده یو زوی چي کافر و نوم یې کنعان و هم غرق سو. نو دده په کښتی کي نر او ښځي اتیا کسه وه چي په هغو کي درې دده زامن وه حام، سام او یافث او د هغو زوجاتي هغه نور بعض د نوح ﷺ لمسیان وه او بعض چي بیګانه وه د هغو نسل نه سو پاته، نو پر مځکه هر نر او ښځي که مسلمانان دي که کافران دي که عرب دي که عجم دي که ترک دي که تاجک وغیرهم دده له اولاد څخه دي، کما قال الله تعالی "وجعلنا ذریته هم الباقین" ای ذریة نوح ﷺ. او بل دا چي نوح ﷺ اول نبي دی چي نوی شریعت او احکام یې من عند الله راوړي دي تر دده پوري شریعت د آدم ﷺ باقي و، او نوح اول نبي دی چي د شرک د مقابلي سره مخامخ سو. او نوح اول نبي دی چي قوم چي دده دعوت په مقابل کي شرک رد کړی او ده ښېرا ورته وکړه "رب لاتذر علی الارض من الکافرین دیارا" او توله اهل الارض په ښېرا دده هلاک سوه په طوفان سره، او نوح ﷺ اطول د انبیاؤ دی از روی عمر. قال الله ولبث فیهم الف سنة الا خمسین عاما" او ده په دغه مدید او طویل عمر کي په سخت ازار د قوم صبر کړی و، قدرت الهي د نوح سره د طول

عمر في الغاية نه يې يو غابښ خټلی دی او نه يې وېښته سپين سوي دي او تر اخير پوري پر قوت د ځوانی باقي و، لکن چونکه دنيا دار الخلد نه ده که هر څو سړی ژوندی وي طوفان د دنيا پر راځي هغه دی چې نوح العليه په زور کلونه کېږي چې په درياب کي د فناء پروت دی.

وَالنَّبِيِّنَ مِنْ بَعْدِهِ ۚ وَأَوْحَيْنَا إِلَىٰ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ وَالْأَسْبَاطِ وَعِيسَىٰ وَأَيُّوبَ وَيُونُسَ وَهَارُونَ وَسُلَيْمَانَ ۚ وَآتَيْنَا دَاوُودَ زَبُورًا ﴿١٦٣﴾

او موږ وحي کړي دي نورو نبيانو ته تر نوح العليه وروسته او لکه موږ چې وحي کړې دي و ابراهيم او دده زامنو ته چې اسماعيل او اسحٰق وه، او يعقوب چې د اسحٰق زوی و، او ددوی و اولادو ته.

**پوښتنه**: چې د "والنبيين" ځخه مراد ادريس، هود، صالح، شعيب وغيرهم. او له "اسباط" ځخه اولاد د يعقوب مراد دي يا دده دوولس زامن يا انبياء د بني اسرائيلو تول چې ددوی له اولادو ځخه دي.

**پوښتنه**: عيسی، ايوب، يونس، هارون او سليمان عليهم السلام خو هم له اسباط ځخه د بني اسرائيلو وه، نو راوړلو ته يې څه ضرورت و؟

**ځواب**: راوړه ددغو نو موږ نبيانو لپاره د تنبيه ده پر مزيد فضل باندي ددوی.

**فائده**: "وآتينا" عطف دی پر "اوحينا" باندي. زبور د داوُد العليه د کتاب نوم دی. بغوي رحمه الله وايي چې په زبور کي صرف تحميد او تمجيد او ثناء وه على الله جل جلاله. داوُد العليه به لوی دښت ته ووتی، نو به ودرېدی زبور به يې شروع کړی علماء د بني اسرائيلو به دده تر شا ودرېدل او نور عوام الناس به د ملايانو تر شا ودرېدل او پېرانان به د انسانانو شاته ودرېدل پر ترتيب الاعظم فالاعظم. او د ځرو حيوانات لکه هوسی، چغالان وغيرها به دده ومخ ته ولاړ وه تعجباً لما يسمعن منه. او مرغان به پر سرو ددوی ولاړ وه وزر به يې ښورولـه، لـه ابی موسی اشعري رضي الله عنه ځخه روايت دی چې ماته عليه الصلوٰة والسلام وويل "لو رأيتني

البارحة" او ما غوږ نیولی و ستا و قرائت ته "لقد اعطیت مزماراً من مزامیر آل داوُد" تاته درکړه سوی رباب یعني حسن الصوت د له مزامیرو څخه د آل داوُد.

**پوه سه:** چي لـه آل داوُد څخه نفس داوُد مراد دی. ابو موسی ﷺ وایي چي ما ورته ویل چي که زه خبر وای چي تا خوږ راته نیولی دی "لحبرته تحبیراً" یعني ما به ډېر اواز ته ښائست ورکړی وای. قال السعدي قدس سره السامي

به از روی زیبا است آواز خوش — که آن حظ نفس است واین قوت روح

وعند هبوب الناشرات علی الحمی — تمیل غصون البان لا الحجر الصلد

**درویش وایي:** چي د سعدي د قول دلیل دادی هر څو چي ښائسته مخ وي ولو کان وجه یوسف ﷺ مرغان د هوا او حیوانات د غرو نه راجمع کېږي. او پر حسن صوت د داوُد ﷺ به ټولـه شیان سره جمع کېدل که څه هم حیوانات وه. عجم په معنا د زبور خونه نوهیدل لکن نغمه او حسن صوت د داوُد چي د غوږو لـه لاري به راجمع کېدل.

## وَرُسُلًا قَدۡ قَصَصۡنَٰهُمۡ عَلَيۡكَ مِن قَبۡلُ وَرُسُلًا لَّمۡ نَقۡصُصۡهُمۡ عَلَيۡكَۚ

او ما استولي دي داسي رسولان چي موږ یې تاته قصې او احوال بیان کړي دي مثل آدم ونوح و ادریس وشیث وموسی وعیسی علیهم السلام. او داسي رسولان مي هم استولي دي چي ما یې تاته قصې او احوال نه دي بیان کړي.

**پوه سه:** چي عامل د نصب د "رسلاً" ارسلنا دی چي لـه اوحینا السابق څخه وفهمېدی. لـه ابو ذر غفاري ﷺ څخه روایت دی چي ما و علیه الصلوة والسلام ته وویل یا رسول الله "ای الانبیاء کان اول قام آدم" ما ورته وویل چي آدم نبي و. علیه الصلوة والسلام راتـه وویـل هو! نبي و چي وحي ورتـه راتلې. بیا ما ورتـه وویـل "یارسول الله کم المرسلون منهم قال ثلثمائة وبضعة عشر جماً غفیراً" وعن ابي امامة ﷺ قال قلت یا رسول الله کم وفائدة الانبیاء" څو دی پوره حساب د انبیاؤ؟ علیه الصلوة والسلام وویل "مائة الف واربعة وعشرون الفاً الرسل من ذالک الجم ثلث مائة وخمسة عشر جما غفیراً" رواه احمد وابن ابي حاتم. وفي روایة ثلث مائة واربعة عشر. وفي روایة ثلث عشر وهو المشهور.

**درويش وايي:** چي د دې لپاره چي سړی پر انبياء عليهم السلام ايمان راوړي پېژندل د نبي بعينه يعني باسمه وحاله شرط نه ده د ايمان د صحت لپاره. بلکې د ايمان د صحت شرط دادی ان يؤمن بهم جمعياً من کانوا وکم کانوا حيث کانوا

**مسئله:** د ټولو علماؤ د عقائدو او د علوم عقليه وو پر دې اتفاق دی چي د نبي او د رسول تر منځ عموم و خصوص مطلق دی. او نبي هغه رجل دی چي خدای راستولی وي لپاره د تعليم د اصولو او احکامو د دين که نوی کتاب يا شريعت ورسره وي او که نه. او رسول هغه څوک دی چي يا يې فقط کتاب متجدد وي يا يې دين متجدد وي. نو نبي عام او رسول خاص دی. او بعض علماء وايي چي رسول عام دی تر نبي يعني که انسان وي او که ملکه او نبي خاص دی په انسان پوري.

**درويش وايي:** چي دا مذهب له احاديث مذکوره وو څخه مخالف دی کما لايخفى.

**درويش وايي:** چي صاحب د روح البيان د نبي او د رسول تر منځ يو عجيب او غريب فرق کړی دی. دی وايي "الرسل هم الذين اوحى اليهم بجبرئيل والانبياء هم الذين لم يوح اليهم بجبرئيل وانما اوحى اليهم بملک آخر او برويا. في المنام او بشئ آخر من الهام انتهى.

**مسئله:** په ايمان کي د انبياء عليهم السلام کي دې څوک تعين د عدد نه کوي مثلاً داسي دې وايي چي زما ايمان دی پر يو لک او څلورويشت زره انبياؤ. بلکي داسي دې وايي چي زما ايمان دی پر ټولو انبياؤ عليهم السلام هر څو چي دي. وذالک لاختلاف الروايات في عدد جميع الانبياء عليهم السلام. نو که څوک تعين د عدد وکړي. نو که د انبياؤ تر عدد لوړ وايي نو غير انبياء يې په انبياء کي شامل کړه. او که کښته عدد ذکر کړي نو بعض انبياء يې له ايمان څخه خارج کړه. نو اسلم طريقه په ايمان د انبياؤ کي دادی چي تفويض د عدد دې وخدای ﷻ ته وکړي او داسي دې ووايي چي زما ايمان دی پر ټولو انبياؤ عليهم السلام باندي. فلا يلزم عليه شئ من الزيادة والنقصان في ايمان الانبياء کما يتوهم ذالک عند تعيين العدد المخصوص فاحفظ هذه النکتة.

وَكَلَّمَ اللّٰهُ مُوسٰى تَكْلِيمًا ﴿١٦٤﴾

**بوه سه**: چې اقصی و اعلی مراتب الوحي هو الكلام الالهي مع النبي بدون وساطة الملك، لکه د موسی ؑ سره چې خدای پاک خبرې وکړې بدون وساطة الملك پر کوه طور باندې وهذا هو المراد في هذه الآية او په لویه درجه کې د انبیاؤ علیهم السلام و محمد ﷺ ته خدای پاک دا شرافت ورکړی دی چې فوق سبع سموات خدای خبرې بدون وساطة الملك ورسره کړې دي. قال السعدي الشيرازي قدس سره. في بيان معراج النبي العربي ﷺ.

چنان گرم در تیه قربت براند — که در سدره جبرئیل ازو باز ماند
بدو گفت سالار بیت الحرام — که ای حامل وحي برتر خرام
بگفتا فراتر مجالم نماند — بماندم که نیروی بالم نماند
اگر یک سری موی برتر پرم — فروغ تجلی بسوزد پرم

**درویش وايي**: چې په هغو آیتو کې چې په معراج کې د رسول ﷺ راغلي دي داسي مشافهةً او بلا واسطة الملك اشاره بلکې تصريح سوې ده. ثم دنى فتدلى، بیا علیه الصلوة والسلام نژدې وخدای ﷻ ته یعنې په قرب رتبې سره لا بالقرب المکاني فتدل او ډېر نژدې سو "فكان قاب قوسين اوادنی" نو سو علیه الصلوة والسلام یعنې قرب د علیه الصلوة والسلام د خدای ﷻ سره په اندازه د دوو کمانو بلکې تر هغه لا کم نژدې سو "فاوحى الى عبده ما اوحى" نو خدای ﷻ وحي وکړې وخپل بنده محمد ﷺ ته هغه څه چې وحي ورته وکړې.

**درویش وايي**: چې ما اوحی یې په ما ابهامي سره راوړی یعنې تعیین د ما اوحی یې ونه کړی له دې سببه چې علیه الصلوة والسلام ته په لیلة المعراج کې درې قسمه وحي وسوې یو دا قسم وحي وې چې علیه الصلوة والسلام یې مامور کړی په تبلیغ و ټول امت ته لکه پنځوس لمونځونه په شبانه روز کې او اووه واره غسل له جنابت څخه چې هغه بیا په کومک د موسی ؑ لمونځونه پر پنځه ودرېدل او غسل د جنابت پر یوه وار. او بل دا قسم وحي وې چې ستا خوښه ده کې څوک اهل و نو ورښیه یې که یې نه ورښیه، چې اول قسم ظاهر د شریعت دی چې

عليه الصلوة والسلام يې وټولو ته تعليم کړی دی. او دويم قسم وحي د قائق د علم تصوف دي چي بعض افراد د صحابه کرامو ﷺ په مشرفه سوي لکه د علم طريقت د حقيقي راه نمايانو څلور طريقو په اذهانو کي محفوظ دي او نور ودي دوهم قسم ته ابو هريره ﷺ په داسي الفاظو اشاره کړې ده حفظت من رسول الله ﷺ وعائين من العلم اما احدهما فبثته فيکم" يو وعا څو ما په تاسي کي نشر کړی دی يعني علم الحلال والحرام وعلم صلوة وغيرها. واما الآخر فلو بثته لقطع هذا البلعوم" او هغه بل که زه نشر کړم زما سره غاړه به راپرې کړل سي.

**درويش وايي**: چي شايد په دوهم وعاء کي عليه الصلوة والسلام وده ته نومان د امراء الجور او احوال ددوی ورښولي وه لکه يزيد بن معاويه. عبدالملک بن مروان حجاج بن يوسف وغيرهم چي بعض له هغو څخه چي ابو هريره ﷺ دا خبره کول پر سر قدرت وه. لکن ابو هريره ﷺ اشارةً داسي ويل اعوذ بالله من راس ثلثين سنة ومن امارة الغلمان.

**درويش وايي**: چي هذا حاصل ما في البخاري وغيره من المواضع المتفرقة. او دريم قسم يې داسي وحي ورته کړي چي هيڅ چاته به يې نه ورښيه. ولي چي قابليت د زدکړي په هيڅ چا کي په دنيا کي نسته البته په ورځ د قيامت به هغه علوم کشف سي. حاصل د کلام دادی چي عليه الصلوة والسلام ټوله فضائل د ټولو انبياؤ عليهم السلام ورکړه سوي وه مع مزيد فضل عليه الصلوة والسلام.

آنچه خوبان همه دارند تو تنها داری

**رُسُلًا مُّبَشِّرِينَ وَمُنذِرِينَ لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَى اللَّهِ حُجَّةٌ بَعْدَ الرُّسُلِ**

رسولان وه چي زيري کونکي وه و اهل الايمان والعمل الصالح ته په جنت او زلفی الی الله او بېرونکي وه اهل الکفر والعصيان په دوزخ سره، تاچي نه سي پيدا خلکو لره يعني په ورځ د قيامت عند تعذيبهم پر خدای ﷻ باندي يو حجت يعني عذر تر ارسال د رسولانو وروسته يعني عذر به يې قطع سي.

**بوه سه**: چي "رسلاً" يا منصوب دی علی المدح کمامر او يا ارسلنا ورسره مقدر دی.

**بوه سه**: چي "لئلا" متعلق دی په ارسلنا محذوف پوري او يا په مبشرين او

منذرين پورې، او دا علت دی د ارسال او د بشارت او انذار لپاره.

**يوه سه**: چې "حجة" د كان اسم دی او خبر يې يا "للناس" دی او "على الله" يې يا حال او يا خبر دی، او "للناس" يې حال دی هغه حجت ددوی به دا وای که بې ارسال د رسول ودوی ته په سبب د علم ازلي د خدای عذاب ورکړه کېدای ربنا لولاً ارسلت الينا رسولاً فنتبعه.

**سوال**: دا د دوی خبره خو عذر دی، نو حجت يې ولې وبالله او سره ددې چې پر خدای ﷻ حجت ويل محال دی هيڅ چا لره په هيڅ فعل کې په افعالو کې د خدای ﷻ لانه يفعل مايشاء.؟

**ځواب**: هو! خدای پاک چې معذرت ته حجت ووايه تنبيه يې پر دې وکړه چې معذرت په قبول کې په نېز د كريم ورحيم بادار لکه حجت قاطعه دی چې رد يې نه کوي په مقتضی د کرم خپل، بغوي رحمه الله وايي چې په دې آيت کې دليل قاطع پر دې دی چې الله تعالى خلگو ته عذاب دمخه تر بعثت د رسولانو نه ورکوي كما قال الله وماكنا معذبين حتى نبعث رسولاً، او حنيفيان وايي چې خدای ﷻ عذاب نه ورکوي پر ترک د ماموراتو او نه پر فعل د منهياتو الا بعد بعثة الرسل او هرچه وجود د صانع العالم او د توحيد د هغه پر ارسال الرسل موقوف نه دی للدلائل القطعية العقلية في الانفس والافاق على ذالک. او عقل د هغه په معرفت کې کافي دی، نو بناءً عليه كه يو سړی په شواهقو د بعض جبالو وي چې هيڅ په ارسال الرسول خبر نه وي او عقيده د عدم وجود الصانع وکړي يا عقيده د شرک وکړي هغه په ورځ د قيامت معذب في النار ابداً، ولهذا قيل در تحفه نصائح

گر انبياء هم نه آمدي نی شرع بودی درجهان
واجب شدی بر مؤمنان ايمان بخالق مقتدر

**درويش وايي**: چې يو حديث طويل چې يوه جمله يې ددې مقام سره برابره ده مظهري د مغيره بن شعبه رضي الله عنه څخه روايت کړی دی چې يو وخت سعد بن عبادة رضي الله عنه وويل كه زه ووينم د مايني سره يو سړی يعني په زنا سره زه به يې په توره ووهم غير مصفح يعني په پڅه خوا نه بلکې په تېره خوا، نو دا خبره و عليه

الصلوة والسلام ته چا وروسول، نو علیه الصلوة والسلام وویل چي تاسي تعجب کوئ و غیرت ته د سعد والله لانا اغیر منه والله اغیر مني" او له جهته د غیرت د خدای ﷻ حرام گرځولی دی فواحش یعني زناوي ماظهر منها ومابطن ولا احد احب الیه العذر من الله، ومن اجل ذالک بعث المنذرین والمبشرین.

**درویش وایي:** چي دغه ټوټه د حدیث د مانحن فیه سره برابره ده ولا احد احب الیه المدحة من الله تعالی ومن اجل ذالک حمد الله نفسه في القرآن یعني في عدة مواضع او خدای ﷻ وعده د جنت کړي ده د خپل حامد سره، رواه البخاري وغیره.

وَكَانَ اللّٰهُ عَزِيزًا حَكِيمًا ۝

او دی خدای ﷻ غالبه پر هر شي چي اراده ورته وکړي لا یمنعه شئ ولا معقب لحکمه" او حکمت لري چي و هر نبي ته یې د حال د مبعوث الیهم معجزه ورکړي ده مثلاً په زمانه کي د فرعون ساحران او جادوگران ډېر وه، نو موسی ﷺ ته یې ورته معجزه ورکړه چي عصاه وه او دی یې په هغه ماهرانه کار کي د فرعونیانو چي سحر و غالب وگرځاوه کمامر تفصیله، او په زمانه کي د حضرت عیسی ﷺ د طبابت او د قسم قسم مرضو د علاجو چرچه وه، خدای ﷻ وعیسی ﷺ ته معجزه د ابراء الاکمه یعني مور زاده ړوند والابرص او احیاء الموتی معجزه ورکړه چي دا کارونه د طبابت د وسیع دائرې د طبابت چي په هغه زمانه کي وه غیر ممکن ثابت سوه، او د علیه الصلوة والسلام په زمانه کي فخر د عربو او یو پر بل بالا دستي په فصاحت او بلاغت سره وه کما یشهد علیه حال المعلقات السبع علی جدار الکعبة نو خدای د فصاحت او بلاغت څخه مالامال قرآن معجز ورکړی چي فصحاء د عدنان بلغاء د قحطان له دي کوچني سورت له مقابلې څخه پاته راغله او اظهار د عجز خو یې نه کاوه ولي چي ددوی لپاره د لېري کولو د خجالت، او بل دا چي باید ایمان راوړي، نو د عجز د شرم دفع یې په دي وکړه، انهم سحروا تسحیراً، او په عین حال کي معجزه د رسول مقبول ﷺ چي قرآن کریم و پر معجزات عالیاتو د نورو انبیاؤ علیهم السلام عالي سوه، ولي چي دا معجزه قرآنیه کر الازمان ومر الدهور پاته ده الی یوم القیامة او اعلان د قرآن

عظیم اوس هم پر ځای پاته دی اعني ان کنتم في ریب مما نزلنا آه. او معجزات د نورو انبیاؤ محصور پر زمانه د حیوة ددوی وې اوس یې صرف حکایت پاته دی چې د منکر مقابله په کېږي که څه هم څه مؤمنان یې مني په سبب د حکایت د قرآن عظیم الشان له هغو معجزاتو څخه. وبالجملة عنایات د خدای ﷻ پر علیه الصلوة والسلام تر حد د حساب وړ دي. منها سلسله د انبیاء علیهم السلام پر ده خدای ختمه کړه او نوی نبوت یې تر ابده پورې بند کړی. ومنها جعله خیر البشر آدم ومن دونه. ومنها جعل امت الاجابة او امة دعوته اکثر من جمیع امم سائر الانبیاء علیهم السلام. ومنها جنتیان د امت د علیه الصلوة والسلام دوه ثلث د امتیانو جنتیانو د ټولو امتو دي کما جاء في الاحادیث المبارکة حتی په ورځ د قیامت به یو سل وشل صف د جنیانو وي ولایعلم تعداد اشخاص الصف الواحد الا الله. په دې کې به اتیا صفه امت محمدي وي او څلوېښت صفه به د نورو ټولو امتو جنیان وي. ومنها مقام محمود شفاعت کبری به د علیه الصلوة والسلام او هغه وخت چې هر نبي به د نفسي نفسي آواز بلندوي آنحضرت ﷺ به د امتي امتي نارې وهي. ومنها شرف المعراج کمامر آنفاً.

**درویش وایي:** چې لایمکن الثناء کما کان حقه..... بعد از خدا بزرگ توی قصه مختصر. وایضا قیل بطریق الکنایة

آفاق گردیده ام مهر تابان ورزیده ام — بسیار خوبان دیده ام اما تو چیزی دیگری

په اخیر کې مناجات دي د درویش وایي اقتباساً من مناجات حسن رضي الله عنه.

الهي یا الهي یا الهي — ندارم جز امیدت تکیه گاهی
زکن موجود کردی کل عالم — مرا از زنب خود کن عذر خواهی
ندارم توشه راه قیامت — بجز شرمنده گی وروه سیاهی
ندارم طاعت مقبول درگاه — بجز اشک ندامت آه آهی

وقت ظهر ۲۵ رمضان المبارک سنه ۱۴۲۷ هـ ق.

**پوه سه:** چې محمد بن اسحاق او ابن جریر له ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چې یو جماعت د یهودانو و علیه الصلوة والسلام ته راغلل. نو علیه الصلوة

والسلام ودوی ته وویل چي قسم په خدای دی چي تاسي پوهېږئ چي زه رسول د خدای ﷻ یم؟ دوی ورته وویل مانعلم ذالک موږ ستا پر نبوت هیڅ علم نه لرو. او بغوي رحمه الله وایي چي رئیسان د کفارو د مکې و علیه الصلوة والسلام ته راغله نو دوی وویل چي موږ ستا پر نبوت هیڅ علم نه لرو. او بغوي رحمه الله وایي چي رئیسان د کفارو د مکې و علیه الصلوة والسلام ته راغله نو دوی وویل چي موږ ستا په باره کي له یهودانو څخه د مدینې پوښتنه کړې ده او ستا د نعت او بیان پوښتنه مو کړې ده چي ستاسي په تورات کي سته او که نه؟ هغو موږ ته وویل چي موږ دی هیڅ نه پېژنو او نه زموږ په کتاب تورات کي سته فانزل الله تعالی.

## لَٰكِنِ اللَّهُ يَشْهَدُ بِمَا أَنزَلَ إِلَيْكَ أَنزَلَهُ بِعِلْمِهِ

یعني یهودان که شاهدي نه ورکوي ستا په نبوت سره لکن خدای شاهدي ورکوي ستا په نبوت سره د ما انزل الیک، یعني هغه ستا په نبوت سره شاهدي یعني القرآن المعجز بالنظم والمعنی. چي نازل کړی دی متلبساً بعلمه الخاص. وهو العلم بالمغیبات الماضیة والمستقبلة والعلم بتالیف القرآن بحیث یعجز عن الاتیان بمثل اقصر سورة الثقلان ای الانس والجن. او یا مراد علم د خدای په هغه چا سره چي هغه اهل د نبوت وي او اهل د نزول د کتاب معجز او په هغه کي استعداد د تحمل د مشاق د نبوت وي او علم د خدای ﷻ دی په هغه شیانو سره خلګ حاجت ورته لري په اصلاح کي د معاش دنیوي او د معاد اخروي.

## وَالْمَلَائِكَةُ يَشْهَدُونَ

او ملکي هم شاهدي اداء کوي په صحت سره د نبوت ستا. ولي چي ملائکه ستا سره کومک کوي په جنګو کي د کفارو سره کما حضروا في غزوة بدر، نو که ته صادق په دعوی کي د نبوت نه وای نو ملکو ستاسره په جنګو کي کومک نه کاوی. ومسلمه کذاب چي مدعي د نبوت و بالکذب او یا اسود عنسي چي هغه هم مدعي د نبوت و بالکذب ولي یې کومک نه کاوه. ولي ملکي هر کار چي کوي په امر د خدای ﷻ یې کوي قال الله تعالی في شانهم وهم بامره یعلمون.

وَكَفَىٰ بِاللَّهِ شَهِيدًا ﴿١٦٦﴾

او کافي دی خدای ﷻ من حیث الشهادة له شهادت څخه د غیره ولي چي خدای سناد صحت نبوت لپاره حجج قائم کړی دی. او معجزات باهره یې تاته درکړي دي.

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوا عَن سَبِيلِ اللَّهِ قَدْ ضَلُّوا ضَلَالًا بَعِيدًا ﴿١٦٧﴾

په تحقیق هغه کسان چي کافران دي هم منع کوي له لاري څخه د خدای ﷻ چي دین د اسلام دی او اتباع د علیه الصلوة والسلام ده چي په اوله مرتبه کي کفار د مکې وه چي دوی به وخلګو ته ویل اتاتون السحر وانتم تبصرون، او په دوهمه مرتبه یهودان د مدینې وه چي نعوت د علیه الصلوة والسلام چي په تورات کي وه دوی پټ کړه او د علیه الصلوة والسلام له متابعت او ایمان څخه به یې خپل اتباع منعه کوله چي دا یعني علیه الصلوة والسلام هغه نبي موعود في التورات نه دی، نو دا کسان ګمراهان دي له لاري څخه د حق په لویه ګمراهي سره چي هم په خپله ګمراهان وه او هم بې نور خلق ګمراه کوله.

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَظَلَمُوا

یعني هغه کسان چي په خدای سره کفر وکړي او په رسولانو د خدای چي خدای ته شریک ووایي یا ولد او ابن ورته وایي لکه نصاری چي وایي عیسی ابن الله دی او یا یهود وایي چي عزیر ابن الله دی، یا مجوس وایي چي ملائکه بنات الله دي، او رسولان سحرګران بولي الی غیر ذالک، او دوی ظلم وکړی پر محمد ﷺ بانکار نبوته بعد العلم بمعجزاته وبعد العلم بنبوته في التوراة، او یا مراد دادی چي ظلم کوي پر خلګو چي د حق له لاري یې منع کوي لکه مشرکین د مکې او یهودان د مدینې او د شاوخوا.

لَمْ يَكُنِ اللَّهُ لِيَغْفِرَ لَهُمْ وَلَا لِيَهْدِيَهُمْ طَرِيقًا ﴿١٦٨﴾

نه دی خدای ﷻ چي بخښنه دي وکړي ودوی ته مادامو اعلی ذالک الحال، او نه دوی ته لار ښیي په آخرت.

إِلَّا طَرِيقَ جَهَنَّمَ خَٰلِدِينَ فِيهَا أَبَدًا

مگر نه لار د دوزخ ورښيي . همېشه به وي دوی په دوزخ کي.

**سوال**: په وخت کي د دخول د جهنم خلود نسته ولي چي خلود مکث دی په دوزخ کي تر ډېرو زمانو پوري؟

**ځواب**: په علم نحو کي داسي حال ته حال مقدره وايي، والمعنى مقدرين الخلود فيها وقت الدخول.

وَكَانَ ذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرًا ﴿١٦٩﴾

او دی ادخال و جنهم ته پر خدای ﷻ اسانه. ولي خدای چي يو کار کوي هيڅ مشکل په مخه نه ورځي.

**پوښتنه**: دروازه د توبې خو هر کافر ته خلاصه وه او د ايمان راوړلو لاره ډېره فراخه ده، نو څرنگه خدای عظمت رحمت، د مغفرت او د جنت لار پر دوی بنده کړه؟

**ځواب**: دا آيت په حق کي د هغو کسانو دی چي په علم ازلي خدای ﷻ ته دا معلومه وه چي دا کسان پر کفر باندي مري والله اعلم بمراده في کتابه.

**پوه سه**: چي په حديث شريف کي راغلي دي "يخرج من النار من كان في قلبه ذرة من الايمان.

**فائده**: شقيق بلخي قدس سره چي به وعظ ختم کړی، نو به يې داسي ويل چي زما له مجلس څخه د وعظ درې قسمه خلک ولاړېږي (۱) کافر محض (۲) ومنافق خالص (۳) ومؤمن محض، ولي چي زه خو تفسير د قرآن پاک کوم او زه خبري کوم د خدای ﷻ او د هغه د رسول ﷺ له خوانو که څوک زما تصديق ونه کړي هغه کافر محض دی. او که يې په زړه کي شبه ورپيدا سي زما په خبرو کي هغه منافق محض دی. او يو سړی ته چي گناه کاره وي په زړه کي پښېماني پر گناه وروگرځي او د آئينده لپاره ټينگ قصد وکړي چي زه بيا دا کار نه کوم نو هغه مؤمن مخلص دی.

**وعظ**: پوه سه! چي اول علم ته ضرورت دی او دوهم و عمل ته. ولي چي عمل د

علم ميوه ده څکه ويل سوي دي چي عالم بي عمله لکه درخته بې ميوې. په صحيح حديث کي راغلي دي چي يو چا د عليه الصلوة والسلام څخه پوښتنه وکړه چي علم څه شی دی عليه الصلوة والسلام ورته وويل دليل العمل. بيا چا پوښتنه څني وکړه فما العقل. قال ﷺ قائد الخير. بيا چا پوښتنه څني وکړه فما الهوی قال مرکب المعاصي. بيا چا ورته وويل فما المال قال رداء المتکبرين. بيا چا ورته وويل فما الحيوة الدنيا. قال سوق الآخرة د آخرت يو بازار دی څوک گټي په دې بازار کي د آخرت لپاره کوي او څوک تاوانونه د آخرت پکښي کوي کما هو شان الاسواق. بيت

ومن مذهبي حب العمر الطويل لاجل الاجر الجزيل في الآخرة. وللناس فيما يعشقون مذاهب.

**درويش وايي**: چي ما پر ځان لازم گڼلی دی ختم تفسير د قرآن. دا تمنا به مي باقي وي تر تفسير د اخير د قرآن عزيز.

**يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَآءَكُمُ الرَّسُوْلُ بِالْحَقِّ مِنْ رَّبِّكُمْ فَاٰمِنُوْا خَيْرًا لَّكُمْ ؕ**

اي خلکو خطاب عام دی للعرب والعجم په تحقيق تاسي ته راغلی رسول محمد ﷺ متلبس په حق سره ای بالقرآن ودين الاسلام له جنابه څخه د خدای ﷻ نو ايمان راوړئ پر ده باندي.

**پوهه**: چي بعض مفسرين وايي چي "خيرالکم" مفعول مطلق دی د "آمنوا" په حذف د موصوف ای ايماناً خيرلکم. او بعض وايي چي مفعول به د فعل محذوف دی ای ايتوا امراً خيراً لکم مما انتم عليه من الکفر. او بغوي رحمه الله وايي چي تقدير يې داسي دی کان الايمان خيراً لکم. او بصريون له دې تقدير څخه انکار کوي. دوی وايي چي "کان" سره له اسمه نه سي حذف کېدای الا فيما لابد منه. مظهري رحمه الله چي ددې سوال جواب ورکړی دی چي حذف د کان سره د اسمه روا دی کما في قولهم الناس مجزيون باعمالهم ان خيراً فخيراً ای ان کان عمله خيراً کان جزائه خيراً ففي الشرط والجزاء حذف کان مع اسمه.

**درويش وايي**: چي دا ځواب صحيح نه دی ولي چي دا محاوره خو ځای د

ضرورت ده. او بصريانو ځای د ضرورت مستثنی کړی دی بقولهم الا فيما لابد منه فافهم.

وَإِن تَكۡفُرُواْ فَإِنَّ لِلَّهِ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِۚ وَكَانَ ٱللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا

او که تاسي کفر وکړئ پس خدای ﷻ لره دي ملکاً وخلقاً تول هغه شيان چي په اسمانو کي دي من الملائكة والكواكب والشمس والقمر وغير ذالک او هغه څه چي په مځکه کي دي من الانس والجن والحيوانات والنباتات والخزائن وغير ذالک او دی خدای خبر په هر شي چي يو له هغو څخه ايمان دی د من يؤمن او کفر دی د من يکفر، حکيم دی چي مؤمن او کافر يې په جزاء کي نه دي سره برابر کړي لانه خلاف مقتضی حکمته تعالی.

**پوه سه:** چي "وان تكفروا" ددې شرط جزاء محذوفه ده او هغه وروسته دليل د جزاء په منځ کي ولاړی دی والتقدير وان تكفروا فالله غني عنكم يعني لا يتضرر بكفركم كما لاينتفع بايمانكم. ولي چي نفع د ايمان او ضرر د کفر راجع وتاسي ته.

يَٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ لَا تَغۡلُواْ فِي دِينِكُمۡ

**پوه سه:** چي "غلو" تجاوز دی تر وسط حال تر منځ د افراط او تفريط خواه افراط خواه تفريط ته وي. نو مخاطب په دې آيت کي يهود او نصاری دواړه دي. ولي چي يهودانو په شان کي د عيسی عليه السلام د تفريط لار خپل مذهب وګرځاوه چي يوې خوا ته خو يې دده تکذيب په نبوت سره وکړی او له بلې خوا يې دده مور مريمه مهتمه په زنا. کړه او نصاری وو افراط په حق کي د عيسی عليه السلام خپل مذهب وګرځاوه علی اختلاف آرائهم، چي يعقوبيه وايي چي عيسی هو الله او نسطوريه وايي چي عيسی ابن الله دی. او مرقوميه وايي چي ثالث ثلثه دی يعني يو اصل خدای دی او بل عيسی دی او بله دده مور مريمه ده. والحال المتوسط وهو الحق ان غيسی عبدالله ورسوله كما هو عقيدة المؤمنين.

وَلَا تَقُولُواْ عَلَى ٱللَّهِ إِلَّا ٱلۡحَقَّۚ إِنَّمَا ٱلۡمَسِيحُ عِيسَى ٱبۡنُ مَرۡيَمَ رَسُولُ ٱللَّهِ وَكَلِمَتُهُۥٓ

او تاسي مه وایاست پر خدای ﷻ مګر نه حق چي خدای له شريک څخه او له

ماينې ځخه او نه ولد ځخه او نه جسد ځخه نه ټولو ځخه پاک دی.

**پوه سه**: چې المسيح مبتدا، ده او عيسى بن مريم عطف بيان دی او رسول الله خبر د مبتدا، دی، يعني داسې نه ده لکه نصاری چې وايې چې دی د خدای زوی دی او نه داسې ده لکه يهود چې وايې چې عيسى كذاب دی په دعوه كې د رسالت بل هو رسول الله "وكلمته" عطف دی پر "على رسول الله" باندې والمعنى هو اثر كلمة الله وهي كن فالمضاف محذوف.

**پوښتنه**: چې ټوله انسانان خو اثر د كلمه كن دی على ماجرت به العادة الالهية نو د عيسى ﷺ د تخصيص به څه وجه وي؟

**ځواب**: چونكه تكوين د نورو انسانانو په كلمه د كن وسائطو سره دی من الاب والجد وان علا والام وام الام ان علت لكن تكوين د عيسى ﷺ چونكه بلا واسطة الاب دی نو ځكه يې عيسى كلمه وبلى فافهم.

## اَلْقٰهَآ اِلٰى مَرْيَمَ وَرُوْحٌ مِّنْهُ

چې وه يې رسول دا كلمه و مريمې ته او عيسى ﷺ روح له خدای ﷻ ځخه دی.

**پوه سه**: چې "روح منه" عطف دی پر خبر چې رسول الله دی. والمعنى ذو روح بحذف المضاف صادر منه تعالى بخلقه كسائر الحيوانات فلايمكن انيكون الهاً او خدای ﷻ يې اسناد وځان ته وكړی تشريفاً. وقيل سمى روحاً لانه كان يحي الموتى بالدعاء. او بعض وايې چې عيسى يې روح وباله له دې سببه چې روح نفخ ته وايې چې جبرائيل په قميصه كې د مريمې پوه كړه او دې حمل واخستى سمى النفخ روحاً لانه خرج من فم الروح وهو جبرئيل او اضافت يې وخدای ته وكړی لانه كان بامره تعالى من غير مادة او بعض وايې چې د روح معنى رحمت دی اى رحمة منه لمن اتبعه وامن به.

راويان د تاريخ د بادشاهان قديم د اسلام وايې چې هارون رشيد يو طبيب درلودی چې په مذهب نصارى و او ځوان وحسن الوجه جداً. او هارون رشيد ډېر حريص وپر ايمان دده او هر وخت به هارون دعوت د اسلام وهغه ته كاوه او هغه طبيب به منع ورته كول او هارون رشيد ډېر غټ غټ اميدونه ده ته وركول كه دی

ايمان راوړي. او هغه به منع كوله. يوه ورځ هارون و هغه ته وويل چي څه سبب دی چي څه سبب دی چي ايمان نه راوړې. طبيب نصراني ورته وويل چي ستا سي پر كتاب ما لره دليل پر دې سته چي عيسى جزء د خدای يعني ابن الله دی رشيد ورته كوم آيت دی په قرآن كي هغه ورته وويل دا قول د خدای "وكلمته القها الى مريم وروح منه" نو دا مطلب چي عيسى جزء د خدای دی ولي چي كلمه د من لپاره د تبعيضده. نو رشيد ډېر زړه تنگ سو او علماء يې را جمع كړه نو داسي يو علام نه سو پيدا چي نصراني قانع كړي. حتى چي هارون الرشيد ته يو چا وويل چي يوه ډله د حاجانو د خراسان را راوانه ده چي په هغو كي عالم سته چي نوم يې علي بن الحسين واقدي دی او د مرو باشنده دی او هغه په علم القرآن لوی امام دی. نو هارون هغه عالم راوغوښتی او نصراني طبيب سره يې يو ځای كړی. نو غلام نصراني خپل سوال پر وكړی لكن و علامه مذكورته في الفور جواب په ذهن كي نه ورغلی. نو يې هارون رشيد ته وويل چي يا امير المؤمنين چي خدای ﷻ په ازلي علم كي خبر و چي دا خبيث زما څخه سوال كوي ستا په مجلس كي او زه په دې پوهېږم چي قرآن چي يو جامع كتاب دی حتماً دد غه سوال جواب پكښي دی. نو يې هارون رشيد ته وويل چي في الحال قناعت بخش جواب ددې خبيث زما په ذهن كي نسته لكن خدای ﷻ پر ما نذر لري چي زه به هيڅ شی ونه خورم او نه به شی وڅښم چي ددې سوال ځواب مي نه وي پيدا كړی ان شاء الله تعالى فدخل بيتاً مظلماً واغلق عليه الباب. او قرآن مبارك يې شروع كړی حتى چي دې آيت ته ورسېدی "وسخرلكم مافي السموات وما في الارض جميعا منه" فصاح باعلى صوته افتحوا الباب فقد وجدت الجواب. نو خلكو دروازه ورخلاصه كړه نو هغه طبيب نصراني و حضورته د هارون رشيد راوغوښتی او هغه آيت يې ورته تلاوت كړی او ورته وه يې ويل كه من تبعيضي جزئيت لره مستلزم وي، نو بايد مافي السموات ومافي الارض هم جزء او بعض د خدای ﷻ سي، نو طبيب نصراني قانع سو او اسلام يې راوړی او هارون رشيد ډېر خوشحاله سو، ولي چي هارون رشيد له ډېره وخته په انتظار و د خپل طبيب نصراني و اسلام ته. جامي رحمه الله وايي

چه خوش باشد که بعد از انتظاری بامید رسد امیدواری

او هارون رشید علي بن الحسین په ښه ښه انعاماتو ونازاوه. او علي بن الحسین چي مرو یعني خپل وطن ته ولاړی، نو یو کتاب یې تصنیف کړی په نامه د النظائر في القرآن چي هغه داسي کتاب دی چي مثل نه لري. درویش وایي که دا ګټور کتاب د چا سره وي چاپ دې کړي لیعم نفعه.

## فَآمِنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ ۖ وَلَا تَقُولُوا ثَلَاثَةٌ ۚ انتَهُوا خَيْرًا لَّكُمْ ۚ

تاسي ایمان راوړئ پر خدای باندي بانه واحد لاشریک ولاولد، او ایمان راوړئ پر ټولو رسولانو د خدای ﷺ ومنهم عیسی. او تاسي مه وایاست چي الهه دري دي ای الله و عیسی ومریم. نهي سئ له تثلیث څخه د خدایانو.

**پوه سه:** چي "ثلثة" د مبتدا. محذوفي خبر دی ای الالهة ثلثة "خیرا لکم" منصوب ی په فعل مقدر سره ای اقصدوا و ائتوا شئ چي ستاسي لپاره خیر دی تر دې تر تثلیث الآلهه وهو التوحید. او دا هم ممکنه ده چي خیراً دې مفعول مطلق د انتهوا په حذف د موصوف ای انتهوا انتهاءً خیر الکم.

## إِنَّمَا اللَّهُ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ ۖ

انما کلمه د حصر ده او لفظ الله مبتداء دی او "اله" یې خبر دی او "واحد" یې صفت دی. د "واحد" معنا داده چي په خدای کي هیڅ نوع د تعدد نسته لاباعتبار الشرکاء في وجوب الوجود وهي الاولهیة ولا باعتبار المعبودیة ولا باعتبار الاجزاء ولا باعتبار الولادة کما یقول المشرکون والمجوس ان الملائکة بنات الله وامهاتهم بنات سرواة الجن نحکها الله فولدت منهن الملائکة. تعالی الله تعالی عن ذالک علواً کبیراً.

## سُبْحَانَهُ أَن يَكُونَ لَهُ وَلَدٌ ۘ

والتقدیر اسبحه سبحانا چي ده لره وي ولد اعم من انیکون عیسی کما یقوله طائفة من النصاری ان عیسی ابن الله اوالملائکة کما یقوله المجوس وبعض المشرکین، ولي چي توالد تماثل غواړي بین الوالد المولود وهو تعالی لامثل له،

او بل ولد ددې لپاره دی چي والد فاني سي ولد به د هغه په ځای کي قائم وي وهو تعالی ازلي ابدي لافنا، له ولازوال. له هم دې سببه ولد خدای لره د خپل ځان شتم بللی دی. عن ابي هريرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ قال الله تعالى كذ بني ابن آدم ولم يكن له ذالک وشتمني ولم يكن له ذالک اما تكذيبه اياى فقوله لن يعيدني كما بدئني وليس اول الخق باهون علي من اعادته واما شتمه اياى فقوله اتخذ الله ولدا وانا الاحد الصمد الذي لم الد ولم اولد ولم يكن لي كفواً احد، رواه البخاري.

ترجمة الحديث المذكور: له ابو هريره ﷺ څخه روایت دی دی وایي چي رسول الله ﷺ وویل چي خدای ﷻ ویلي دي چي زه دروا غجن وبللم بني آدم يعني بعض بني آدم چي د بعث بعد الموت څخه منکر وي او نه و لائق د بني آدم سره تکذيب زما. او ماته يې ښکنځل وکړه بني آدم او ده لره نبايده ماته ښکنځل کول او هرڅه چي تکذيب د بني آدم دی ما لره هغه دادی چي ما بیرته نه سي ژوندی کولای يعني خدای لکه اول چي يې پیدا کړی یم. او اول خلق د بني آدم ماته اسانه و تر اعاده دده. او هرڅه چي ښکنځل د بني آدم و ماته هغه دا خبره دده ده يعني د بعض بني آدمانو مثلاً چي عیسی د خدای زوی بولي او یا ملکي د خدای لوڼي بولي، نو دده ښکنځل دادي و ماته چي دوی وایي اتخذ الله ولداً خدای ځان لره ولد ګرځولی دی کمامر. او زه احد یم شریک نه لرم او صمد یم چاته حاجت هم نه لرم هغه ذات یم زه چي نه ما څوک زیږولی دی او نه زه له چا څخه زیږېدلی یم او نسته مالره مثل هیڅ څوک. یعني نه په ذات کي او نه په صفاتو کي صدق الله وصدق رسوله.

لَهُ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَمَا فِى الْاَرْضِ ۗ وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَكِيْلًا ﴿١٧١﴾

او خدای ﷻ لره دي تول هغه شیان چي په اسمانو کي دي من الملائکة او چي په مځکه کي دي من الاناسي وغيرهم يعني تول زما مخلوق او مملوک دي ولامناسبة بين الخالق والمخلوق والمالک والمملوک حتى يتصور الولاد بيني وبينهم، نو دا جمله د ماقبل تعلیل ګرځېدلي ده. او کافي دی خدای ﷻ حافظ او مدبر لکل من سواه، نو چي داسي دی چي "من سواه" نو خدای له دې څخه مستثنی دی.

**پوه سه**: چې بغوي رحمه الله وايي چې وفد نجران چې نصارى وه عليه الصلوة والسلام ته يې وويل چې ته ولي زموږ پر صاحب يعني عيسى عليه السلام عيب وايې؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل ما كوم عيب ستاسي د صاحب ويلى دى. دوى ورته وويل چې ته نه وايې چې عيسى عبدالله ورسوله دى؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل چې داخو د عيسى پېغور نه دى چې دى عبدالله سي. يعني بلكې عبوديت شرف دى د عيسى هغه تاسي چې واياست چې عيسى ابن الله دى هغه د عيسى سپكاوى دى او يا يې خداى بولې يا يې ثالث ثلثه بولئ فنزل هذه الآية.

لَنْ يَّسْتَنْكِفَ الْمَسِيْحُ اَنْ يَّكُوْنَ عَبْدًا لِّلّٰهِ

استنكاف يعني تكبر نه كوي عيسى له دې څخه چې دى دې بنده د خداى وي ولې چې عبوديت د خداى جل جلاله خو شرف او كمال او فخر او عزت دى بلكې بندګان د خداى په بندګى فخر كوي. ولې چې اصل د ټولو كمالاتو د خداى تعالى بندګي ده، البته استنكاف او ذلت او بې شرفي په عبوديت كې د غير د خداى ده چې هغه تاغوته دى ممكن دى ع زندګي بى بندګى شرمندګى.

**درویش وايي**: چې حقيقي بندګان د خداى جل جلاله دونه په درياب كې د خداى جل جلاله غرق دي چې خلګ ګمان د مړه پرې كوي. د ولي الله په باره كې چې د سكري بابا په نامه يادېږي داسې تاريخي صحيح قصه راغلې ده چې ده ته به په بعضې اوقاتو كې دونه دوام داره استغراق وريېښې دى چې خلګو به د مړه خيال پر كاوه. حتى چې پر خوله بې يو تهوكر ورواچوى لګه د پښتنو په رواج كې چې د مړي زني ور تړي چې خوله يې خلاصه پاته نه سي. نو يوه ورځ چې خلګو يې پر خوله تهوكر ور اچولى دى دى بيداره سو يعني له بندګي بېهوشى څخه پر هوش سو. نو سكري بابا خپل دوستان او قريبان راوبلل او ورته وه يې ويل چې زه مايني ته طلاق وركوم او اولادونه هم پرېږدم هرڅه چې په كېږي. نو خلګو علت وپوښتى چې ولې داسې كوې سكري بابا ورته وويل چې زه په عالم ملكوت كې سره د نورو روحانو په مجلس كې د عليه الصلوة والسلام حاضروم او عليه الصلوة والسلام پر يوه زيبا كرسى ناست و، او ددې آيت تفصيل او تفضيل يې كاوه "والهكم اله واحد"

نو علیه الصلوة والسلام امر وکړی چي سکري بابا ته اجازه ورکړئ چي ماینه او اولاد به پسي ژاړي، نو له دې سببه زه له ماینې او اولادو څخه ځان بېغمه کوم چي بیا د داسي نوراني روحاني مجلسو په سبب د دوی را ونه وځم. وروسته یې ماینې او اولادو ډېري زاری، ورته وکړې چي بیا نه ژاړو.

**پوښته**: چي دا ولي الله ولي سکري بابا بولي؟ راوي وایي چي هر ځای چي په لږه ده څخه چا ګوړه یا قند یا بل خوږ شی غوښتي وای ده په هغه ځای کي ورکوله حتی چي دی په حمام کي و خلګو د امتحان لپاره ورېږغ کړه چي سکري باب قند راکړه ده د حمام هغه سپینه ډبره په پښه ووهله هغه قند سوه.

**درویش وایي**: چي حکایات د اوس لا مذهبه ملایان پوچ او دروغ او پسخند په وهي، ولي په دوی کي په سبب د سوء عقائدو داسي وای چي خدای پاک ولي نه دی پیدا کړی لان مبني الولایة صحة العقیدة، یو لامذهب ملا ته په یو مجلس کي د مناظره زموږ د اهل السنة او و دوی ته ما دا بیت د مثنوي ووایه.

اولیاء راهست قدرت از اله — تیر برجسته بگرداند زراه

له پخسنده یې ډېر وخندل.

وَلَا الْمَلٰٓئِكَةُ الْمُقَرَّبُوْنَ ؕ

**پوه سه**: چي دا عطف دی پر مسیح باندي، یعني نه استنکاف کوي ملائکه مقربون چي دوی دي عبید الله سي.

**درویش وایي**: چي دا عطف د ملائکة المقربون پر مسیح باندي تولو مفسرینو تر بحث لاندي نیولی دی لویه برخه چي په بیان کي ددې اخستې ده علامه بغداد مصنف د روح المعاني په ډېرو ورقو بحث پکښي کړی دی لکن په مختصر توګه حاصل ده بحث دادی چي په دغه آیت سره دلیل ویلی دی هغه کسانو چي ملائکه تر بشر افضل بولي دوی وایي چي ولا الملائکة المقربون لپاره د ترقي دي مسیح و ملائکه وو ته او د ترقي قانون دادی چي له ادنی څخه و اعلی ته وي، نو مسیح ادنی دی تر ملائکة المقربون نو دی ووایي چي پر مسیح باندي قیاس دي تو له

خواص البشر چي انبياء عليهم السلام دي، دوی وجه او دليل داوايي چي دا عطف د ترقي لپاره دی چي په عرف کي داسي ويل کيږي چي فلان لاستنکف من هذا ولا من هو اعلی منه، او داسي څوک نه وای لا يستنکف منه زيد ولا عبده.

**والجواب:** خدای پاک دا عطف د ترقي لپاره نه دی کړی من الادنی الی اعلی يعني لپاره د رفع د منزلت د ملائکة المقربون پر مسيح بلکي شايد دا به ځني وفهميږي چي معبود د نصاری وو چي عيسی عليه السلام و افضل دی. ولي دده پر عابدينو يې اول رد وکړی او پر عابدينو د ملائکه وو يې وروسته رد وکړی. او بل ځواب دادی چي ترقي د ملائکه وو په اعتبار د ډېر والي تر مسيح نه په اعتبار د رتبې عندالله لکه په دې محاوره کي اصبح الامير لايخالفه الوزراء ولا الرعية. محقق بيضاوي وايي چي که موږ ومنو چي عطف لپاره د ترقي او افضليت د ملکو دی پر عيسی عليه السلام باندي فغايته فضل المقربين من الملائکة وهم الکربيون الذين حول العرش او من هو اعلی منهم من الملائکة علی المسيح من الانبياء وذالک لايستلزم فضل احد الجنسين علی الاخر مطلقاً والنزاع فيه. او بعض افاضل وايي چي اظهره داده په دفع کي د دليل چي ترقي په نفي د استنکاف لانهم اولی بالاستنکاف لالفضلهم بمعنی کثرة الثواب لانهم لايرون فيما بينهم عباداً بخلاف البشر فان في نبي نوعهم کثرة العبودية وشيوع الرقية.

وَمَنْ يَسْتَنْكِفْ عَنْ عِبَادَتِهِ وَيَسْتَكْبِرْ فَسَيَحْشُرُهُمْ إِلَيْهِ جَمِيعًا ﴿۱۷۲﴾

او که څوک استنکاف وکړي له عبادت څخه د خدای جل جلاله او طلب د کبر وکړي نو ژر دی چي خدای جل جلاله به يې حشر کړي په ورځ د قيامت وځان ته يعني جزاء به ورکړي، استکبار تر استنکاف کم دی والله اعلم.

فَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ فَيُوَفِّيهِمْ أُجُورَهُمْ وَيَزِيدُهُمْ مِنْ فَضْلِهِ

او هر چه هغه کسان دي چي ايمان يې راوړی دی يعني پر خدای په توحيد سره د جميع ماينا سب وجوب وجوده تعالی او پر ټولو رسولانو د خدای جل جلاله بلا تفريط وافراط في حقهم کالمسيح عليه السلام والملائکة والمؤمنين، خدای پاک به حسب

الموعود پوره ورکوي ثوابونه ددوی په دار الابرار په جنت کې حسب تفاوت درجاتهم او زیاتوي به دوی ته فضله خپل من تضعیفات اعمالهم اضعافاً مضاعفة. والدرجات في مقام القرب الیه تعالی واعطاء رؤیته تعالی او داسې نعمتونه چې نه د چا سترګو لیدلي دي او نه د چا غوږو اورېدلي دي بالتفصیل اونه د چا پر زړه ورګرځېدلي دي کما ثبت في الاحادیث النبویة ﷺ.

**وَأَمَّا الَّذِينَ اسْتَنكَفُوا وَاسْتَكْبَرُوا فَيُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا ۙ**

او هرچه هغه کسان دي چې استنکاف او استکبار یې کړی دی له حق او ایمانه څخه لکه کفار د مکې او یهودان د مدینې وغیره من الکفرة الطاغین. هغه به خدای ﷻ په عذابوي په دردناکه عذاب سره په دار البوار جهنم کې.

**وَلَا يَجِدُونَ لَهُم مِّن دُونِ اللَّهِ وَلِيًّا وَلَا نَصِيرًا ﴿١٧٣﴾**

او دوی نه سي پیدا کولای ماسوی له خدایه دوست او کومک کونکی کما زعمت قریش مکة من ان الاصنام یشفعوننا او الیهود ان ابائنا واجدادنا من الانبیاء یخلصوننا علی ای عمل عملناه من الکفر والمعاصي.

**پوه سه**: چې د ولي او د نصیر تر منځ عموم وخصوص من وجه ګاهې د سړي قریب وي او کومک وسره وکړي او ګاهې د سړي دوست او قریب وي مګر کومک یې له طاقته نه وي پوره او ګاهې اجنبي سړی وي او د سړي سره په یو مصیبت کې کومک وکړي. خدای پاک دا ټولې ذرائع پر مستنکرینو بندې کړې.

**حکایت عن حال الاستکبار**: راوي وایي چې یو قاضي یوه ورځ وایې یزید بسطامي قدس سره ته راغلی او ورته وه یې ویل چې زه هغه عمل لکه ته چې یې کوې او هغه علم لرم لکه ته چې یې لرې لکن په تاثیر یې نه پوهېږم. بایزید بسطامي رحمه الله ورته وویل چې ته یوه اندازه جوز واخله په یوه کڅوړه کې یې په غاړه وځړوه او بیا په بازار کې ناره وهه چې هر چا چې زه پر مخ ووهلم یوه دانه جوز ورکوم تر هغو چې جوز خلاصېږي فاذا فعلت ذالک تجد التاثیر. قاضي وویل استغفر الله. ابو یزید ورته وویل قد اذنبت ذنباً آخر لانني اذکرلک مایخلصک

من کبر نفسک وانت تستغفر منه. قال السعدي شیرازي رحمه الله

کسی را که پندار درسر بود مپندار هرگز کی حق بشنود
ز علمش ملال آید از وعظ تنگ شقائق بباران نروید ز سنگ

**درویش وایي:** چي چونکه نصاری پر ډېرو ملکو د مسلمانانو قابض دي او انجیل یې هم هغه ملکو کي چي دوی پر قابض دي ترجمه کړی دی. ددې مطلب دادی چي مسلمانان و مسیحت ته دعوت کړي ومع هذا د ډالرو دعوت هم ورسره ملگری دی، نو زه غواړم چي ددوی اصل مذهب بیان کړم تاچي هر عاقل مسلمان په وپوهېږي نو دا بیان په طور دجمله معترضي درویش راوړی دی. علامه آلوسي بغدادي غفرله الباري ډېر محققانه مفصل جوابونه ددوی و اوصول ته ورکړي چي دوی په هغه سره و عیسی علیه السلام ته ابن الله ثابتوي او یا عین خدای جل جلاله یې بولي د آلوسي رحمه الله د تفصیل نقل خو ډېر طویل دی چي په دې مختصر تفسیر کي یې د راوړلو امکانات ډېر کم دي لکن دا محاوره مالا یدرک کله لا یترک کله. او په پارسي ژبه کي متل دی مشت نمونه خروار لهذا یو ډېر مختصر بیان چي علامه بغدادي په روح المعاني کي کړی دی درویش به یې ونقل ته وسپاري دی د خپل تفسیر په جزء السادس کي وایي چي د فقیر تفسیر اوس هم سادس دی په صفحه (۲۷) کي چي تاریخ پوهان او اصحاب النقل وایي چي اریوس چي یو ستر عالم له نصاری وو څخه و دده او د تابعینو عقیده داوه چي خدای یو دی شریک نه لري. او د مسیح عیسی علیه السلام هغه عقیده نه وه لکه د نورو نصاری و چي وه چي مسیح ابن الله دی بلکې دده عقیده دا وه چي دی رسول د خدای و او دا یې عقیده وه چي عیسی مخلوق دی هم په جسم او هم په روح سره، نو دا دده عقیده او مقاله چي نورو نصاری وو ته ورسیده نو علماؤ د نصاری وو ته یې خطونه نوشته کړه چي راسئ د اریوس سره خبري او مناظره وکړئ چي ده د نصاری وو د مذهب تخریب کړی دی، نو اریوس او نور ملایان سخت دریځه په ښار کي د بنقیه سره جمع سوه په نېز د هغه ملک د سلطان چي نوم یې قسطنطین و. نو مناظره شروع سوه په حضور کي د سلطان، نو اریوس د خپل مذهب په باره کي د مسیح پوره تشریح

وکړه، نو پر هغه باندې یو بل ملا رد وکړی د نصاری وو چې نوم یې اکصیدروس وچې د اسکندریه د ملایانو مشر و. او ده د اریوس عقیده ډېره غلطه وګڼل د سلطان مذکور په وړاندې، خیر د مناظرې او بحث اوږدې لمبې پورته کړې بادشاه په تعجب کې ورته پاته سو له انتشار څخه د سوال او جواب او اختلاف ددوی. نو بادشاه امر وکړی و بطریق ته د اسکندریه چې تاسې پر یوه قول مرضی اتفاق سره وکړئ، نو ټولو ملایانو طوعاً وکرهاً پر دې اتفاق سره وکړی نو هغه یې نوشته کړی او د امانت نوم یې پر کښېښو چې نن اکثره نصاری د هغه امانت په نامه عقیده باندې دي. او توري و عبارت د امانت داوه. نؤمن بالله الواحد الاب صانع کل شئ ومالک کل شئ صانع مایری ومالا یری. وبالرب الواحد المسیح ابن الله تعالی الواحد بکر الخلائق کلها الذي ولد من ابیه قبل العوالم کلها ولیس بمصنوع اله حق من اله حق من جوهر ابیه الذي بیده اتقنت العوالم کلها وخلق کل شئ الذي من اجلنا معاشر الناس ومن خلاصنا نزل من السماء وتجسد من روح القدس ومریم وصار انساناً وحبل به وولد من مریم البتول وصلب ایام فیلاطیس ودفن وقام في الیوم الثالث کما هو وصد الی السماء وحبس علی یمین ابیه وهو مستعد للمجئ تارة اخری للقضاء بین الاحیاء والاموات ونؤمن بروح القدس الواحد روح الحق الذي خرج من ابیه انتهی الفاظ الامانة.

**درویش وایي:** چې ادنی عاقل چې په عربي پوهېږي ددې امانت عبارات ملاحظه کړئ دومره تناقضونه به پکښې ووینې تر اندازه تېر او خدای ﷻ دې پر خاتمة المحققین مرجع اهل العراق و مفتي بغداد العلامة ابي الفضل شهاب الدین السید محمود الالوسي چې په سنه ۱۲۷۰ هـ ق وفات سوی دی ډېر تر حد تېر رحم وکړی چې ده پخپل تفسیر په اوراقو ددې امانت نامه کړی دی او نور هم د نصاری وو د مذهب د نصاری وو لپاره یې تحقیق کړی دی فجزاه الله تعالی عنا وعن سائر المؤمنین خیر الجزاء وطیب الله ثراه.

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ قَدۡ جَآءَكُم بُرۡهَٰنٞ مِّن رَّبِّكُمۡ وَأَنزَلۡنَآ إِلَيۡكُمۡ نُورٗا مُّبِينٗا﴾ ۱۷۴

اې خلګو په تحقیق تاسې ته راغلی دی حجت او دلیل له جانبه څخه د

خدای ﷻ ستاسي چي هغه معجزات دلته دي پر صدق د نبي ﷺ په دعوه کي د نبوت، او يا مراد له برهان څخه خود ذات انور د عليه الصلوة والسلام دی چي د خدای ﷻ له خوا پر تاسي دليل او شاهد دی پر تصديق او تکذيب ستاسي. او مووږ پر تاسي ښکاره کړی دی نور ښکاره چي مراد څني قرآن کريم دی چي د ټولو امورو دينيه وو او د امور دنيويه د هدايت او لار ښود دی.

**پوه سه**: چي اطلاق د نور پر قرآن تشبيهاً دی يعني لکه په نور چي اشياو محسوسه تميز کېږي دغه رنګه په قرآن کريم د حق او د باطل تمييز کېږي.

**فَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَاعْتَصَمُوا بِهِ فَسَيُدْخِلُهُمْ فِي رَحْمَةٍ مِّنْهُ وَفَضْلٍ**

**پوه سه**: چي "فا" لپاره د تفصيل د احوالو د خلګو او د جزاګانو ددوی ده هرچه هغه کسان دي ايمان يې راوړی دی پر خدای يعني پر وجود او وحدانيت د خدای او ځان يې ساتلی دی په خدای سره له متابعت څخه د نفس اماره او له خطا ايستلو د شيطان، نو ژر دی چي خدای به يې داخل کړي په رحمت د خدای له خوا چي مراد څني جنت دی چي ځای د رحمت دی.

**پوه سه**: چي تعبير له جنت څخه يې په رحمت وکړی اشاره ودې ته ده چي دخول د جنت په فضل او رحم د خدای دی لا استحقاقاً ووجوباً عليه تعالى خلافاً للمعتزله دوی وايي چي ثواب د مطيع او عقاب د عاصي پر خدای واجب دی "وفضل" او احسان زائد پر هغه څه چي خدای ﷻ ددوی سره وعده کړې ده چي رؤيت او درجات د قرب دي.

**وَيَهْدِيهِمْ إِلَيْهِ صِرَاطًا مُّسْتَقِيمًا ﴿١٧٥﴾ يَسْتَفْتُونَكَ قُلِ اللَّهُ يُفْتِيكُمْ فِي الْكَلَالَةِ**

او دوی ته به خدای ﷻ لار ووښيي ووصل ته خپل لار سمه. دوی يعني صحابه کرام طلب د فتوی کوي په ميراث کي د کلاله. ته ورته ووايې چي خدای ﷻ فتوی درکوي تاسي ته په حق کي د کلاله.

**پوه سه**: چي "صراطا" مفعول ثاني دی د "يهديهم" او "اليه" حال مقدم دی له "صراطاً" څخه.

**پوه سه:** چې کلاله مصدر دی په معنی د کلال وهو الضعف او چې له ستړیا څخه قوت ولاړ سي بیا نو کلاله استعاره سوه د هغه قرابت لپاره چې د والد او ولد نه وي ولې چې هغه قرابت نظر د قرابت د والد او ولد ضعیف دی وتطلق علی من لم یخلف ولداً ولا والداً والمراد هٰ المعنی الثاني. یعني هغه سړی چې مړ سي او میراث وړونکي یې یو له والدینو څخه نه وي او نه یې څوک له اولاد څخه میراث خوره وي. ددې آیت په شان نزول کې وایي چې جابر بن عبد الله ﷺ ناجوړی ونو علیه الصلوة والسلام پوښتني ته ورغلی، نو جابر ﷺ ورته وویل انی کلالة ای لا یخلفني ولد ولا والدة فنزلت هذه الآیة.

**إِنِ امْرُؤٌا هَلَكَ لَيْسَ لَهُ وَلَدٌ وَلَهُ أُخْتٌ**

که چېرې څوک مړ سي هغه ولد نه درلودی او ده خور درلوده د مور او پلار دواړو څخه، او لاب فقط مطلب دا چې یوازې لام به نه وي، ولې د هغې میراث خو سدس دی فقط.

**پوه سه:** چې "امرء" مرفوع دی په فعل محذوف سره چې تفسیر د وروسته "هلک" دی او "لیس له ولد" صفت دی د "امرء" او ولد عام دی که نر وي او که ښځه.

**فَلَهَا نِصْفُ مَا تَرَكَ**

نو خور لره نیمی د ماترک المیت او باقي نیمی که مړي عصبه درلوده لکه اکا، د اکا زوی وغیره له عصبه وو څخه، او که یې عصبه نه درلوده نو هغه نیمی هم د خور دی بالرد کما تقرر في علم المیراث.

**وَهُوَ يَرِثُهَا إِنْ لَمْ يَكُنْ لَهَا وَلَدٌ**

او نر او یعني ورور د خور میراث وړي چې دا مړه سي لکن تو له مال که یې ورو سکنی له مور او پلاره وو یا یې فقط له پلاره وو که چېرې خور لره نر یا ښځه ولد نه و.

**پوه سه:** چې اشتراط د عدم ولد خور لره ددې لپاره دی چې خور تو له میراث د ورور نه وړي.

**فائده:** علماؤ اجماع پر دې کړې ده چې دا آیت په باره کې د میراث د اخوة

والاخوات لاب وام او پر دغو اعیاني ورونو په اجماع سره قیاس دی. علاتي ورونه یعني یو ازي په پلار شریکان یعني که اعیاني ورونه نه و. ولې چې اعیاني ورونه وي بیا علاتي ته شی د میراث نه رسیږي.

## فَإِنْ كَانَتَا اثْنَتَيْنِ فَلَهُمَا الثُّلُثَانِ مِمَّا تَرَكَ

او که وي دا میراث خوري په خور ګلوي دوې، نو دوی دواړو ته دوه ثلثه د میراث د ورور دي.

**یوه سه**: چې د امت اجماع پر دې ده چې بالا تر دوو خوندو هر څو چې وي په دغه دوه ثلثه سره شریکاني دي.

## وَإِنْ كَانُوا إِخْوَةً رِجَالًا وَنِسَاءً

که وه دوی ای من یرثون بالاخوة "اخوة" ای جماعة. یعني نر او ښځي چې ورونه او خویندي وي وادنی الاختلاط بینهم اخ واخت. د دوو حکم د جماعت حکم دی بالاجماع.

**یوه سه**: چې نرو ته یې غلبه ورکړه پر ښځو باندي، نو یې ځکه "کانوا" مذکر لفظ ووایه والا فحق العبارة ان یقال وان کانوا اخوة واخوات رجالاً ونساءً.

## فَلِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْأُنْثَيَيْنِ

ای فالواجب الذکر منهم مثل د دوو ښځو من المیراث مثلاً که چېري یو ورور و او یوه خور وه. نو ترکه یې درې ځایه کېږي، دوې حصې د نر او یوه د خور، او که چېري د دوو خوندو سره یا بالا تر دوو خوندو یو ورور بالا یا بالا تر یوه ورور. نو یوه ورور ته دي حصه د دوو خویندو ورکوي. او که یو نر و یعني ورور یا بالا تر یوه او خور یوه وه، نو خور ته دي نیمی د برخي د ورور ورکوي له میراث څخه د میت وعلی هذا القیاس في صورة تعدد کل منها.

**درویش وایي**: چې په کتابو کي د علم المیراث لکه سراجي وغیره وایي لکه عدم ولد المیت شرط دی په دې کي چې برخه د یوې خور نصف الترکة ده او دوو خویندو لره یا بالا تر دوو له میراث څخه دوه ثلث دی. دغه رنګه دا هم شرط ده

چې ولد الابن به هم نه وي وان سفل يعني ولد ابن الابن. او نر عيال د ميت وي او يا د ابن الميت نر عيال وي يا اخوت او اخواتو ته د ميت هيڅ شي نسته بالاجماع. او که چېرې د ميت لوڼې يوه يا دوې يا بالا تر هغو، او دغه رنګه که ابن الميت ښځينه عيال وي که يوه او که ډېرې وي. نو په دې صورت کې يوه د ميت وه او يا يوه لور د ابن الميت وه هغې لور ته به نصف التركة ورکول کېږي. او که د ميت دوې لوڼې وې يا بالا تر دوو. او يا د ابن الميت دوې لوڼې يا بالا وي هغو ته به دوه ثلثه ورکول کېږي. او مابقي چې يو نصف دی په اول صورت کې يا يو ثلث دی. په دوهم صورت کې د هغه د ورونو او د خويندو دی که يوه او که ډېرې وي هم هغه باقي دی او که ورور ورسره و فللذكر مثل حظ الانثيين كمامر.

**مسئله**: که د ميت يوه لور وه يا ډېرې او خويندې که يوه وه او که ډېرې. نو د ميت مال ددوی تر منځ وېشل کېږي، يعني د بنت واحدة تر حصې وروسته چې نصف او يا د دوو لوڼو يا بالا تر دوو چې دوه ثلثه يې حق و پاته د خويندو دی لقوله عليه الصلوة والسلام "اجعلوا الاخوات مع البنات عصبة"

**يوه سه**: چې علماء ټول په اتفاق سره وايي چې الف لام په لفظ کې د "الاخوات" او "البنات" لپاره د جنس دی. فالاخت الواحدة مع البنت الواحدة عصبة.

**يوه سه**: چې په حديث کې هذيل له شرجيل څخه داسې روايت کړی دی چې يو سړی ابو موسی اشعري او سليمان بن ربيعه ﷺ ته ورغلی چې يو سړی مړ سو يوه يې خپله لور پاته سوه او يوه يې د زوی لور او يوه خور يې لاب وام پاته سوه. نو ميراث يې څرنګه وېشل کېږي. نو دوی دواړو ورته وويل چې نيمی مال يې د لور دی او نيمی مال يې د خور يعني بنت الابن له ميراثه محرومه ده، او دوی سائل ته وويل چې ته ابن مسعود ﷺ ته هم ورسه که چېرې هغه هم زموږ متابعت وکړی، او هغه سائل چې ابن مسعود ﷺ ته ورغلی او د هغو دوو صحابه وو ټوله بيان يې ورته وکړی، نو ابن مسعود ﷺ ورته وويل چې زه به ګمراه يم که زه ددوی متابعت وکړم بلکې زما قضاء هغه ده چې رسول الله ﷺ کړېده چې هغه داده "للبنت النصف ولابنة الابن السدس تكملة للثلثين" يعني چې حصه د بناتو ده

والباقي للأخت رواه البخاري.

**پوه سه:** چي مظهري رحمه الله په منهیه کي د خپل تفسیر داسي لیکلي دي چي د ابن عباس رضي الله عنه مذهب دا و چي د میت لور وي خور لره هیڅ شی نسته. او باقي مال د عصباتو دی، او ده به ویل لاتجدونه في کتاب الله ولافي قضاء رسول الله ﷺ او خدای پاک هم داسي ویلي دي "ان امرء هلک لیس له ولد وله اخت فلها نصف ماترک" دده مطلب دا و چي لفظ د ولد خو لور ته هم شامل دی، نو په میراث کي د خور عدم د لور هم شرط دی او زموږ دلیل هغه دمخه حدیث دی یعني "اجعلوا الاخواة مع البنات عصبة" وقد انعقد على هذا اجماع الامة.

يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمْ أَن تَضِلُّوا ۗ وَاللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿١٧٦﴾

**پوه سه:** چي په ټوله قرآن کي چي داسي لفظ راسي "ان تضلوا" مفسرین یې داسي ترجمه کوي چي یبین الله لکم الحق والصواب کراهة ان تضلوا کما في روح البیان وروح المعاني، نو هغه ترجمه چي مظهري او اوله ترجمه هم بللی ده ای یبین الله لکم ضلالکم الذي من شانکم اذا ضلیتم وطباعکم لتحرضوا عنه وتتخیروا خلافه آه" روح المعاني په اجمال سره اشاره ورته کړي ده، او خدای پاک په هر شي سره خبر دی، نو په ټولو مصالحو او مضارو د عبادو خبر هم خبر دی فعلی العباد ان یقتدوا بالقرآن العظیم الذي هو کلام اله المتین.

سُوۡرَةُ الۡمَآئِدَةِ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ مِائَةٌ وَّعِشۡرُوۡنَ اٰيَةً وَّسِتَّةَ عَشَرَ رُكُوۡعًا

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡۤا اَوۡفُوۡا بِالۡعُقُوۡدِ ؕ

اې هغه کسانو چي ايمان يې راوړی دی تاسي وفا کوئ په عهد سره خپل.

**پوه سه**: چي "وفا" پر ځای کول دي د وعدې او مقابل د وفا غدر دی. او د ايفاء هم معنی ده. نو نقل و باب ته د افعال صرف لپاره د مبالغې دی. او "عقود" جمع د عقد ده چي په پښتو يې غوټه بولي او په عربي ژبې کي کلکي وعدې ته وايي تشبيهاً بعقد الحبل. او مراد له عقود څخه په دې آيت کي عام دی چي شامل تولو هغو اوامرو او منهياتو ته دی چي خدای ﷻ پر خپلو بندګانو لازم کړي دي له تکاليف شرعيه و څخه او له احکام دينيه و څخه.

**پوښتنه**: بندګانو کله دا وعدې له خدای ﷻ سره کړي دي؟

**ځواب**: لا اله الا الله متضمن ټولو وعدو لره ده د بندګانو له خوا. ولي بندګانو چي اقرار په الوهيت د خدای ﷻ وکړی. نو دا ددوی له خوا وعده ده چي موږ به ستا ټولو احکام پر ځای کوو، او عقود و هغه وعدو ته هم شامل دی چي د بندګانو تر منځ وي من عقود الامانات والديون وغيرها ممايجب الوفابه او يا يې واجب نه وي لکن ښه کار وي. که امر د "اوفوا" عام سي واجب او مندوب دواړو ته شامل سي.

**مسئله**: امام اعظم رحمه الله په دغه آيت سره دليل وايي که چا پر ځان باندي روژه نذر کړه د اختر د ورځي او يا يې پر ځان نذر کړی د زوی د ذبح. نو چونکه ده د صوم عقد د خدای ﷻ سره وکړی عقد خو يې صحيح دی لکن چونکه د اختر د ورځي روژه حرامه ده. نو دی به بله ورځ روژه ونسي، او دغه رنګه عقد د ولد د ذبح خو يې صحيح لازم دی لکن چونکه زموږ په دين کي ذبح د ولد که نر وي او که ښځه حرام دی، نو په دا سي شي سره دې تقرب وخدای ﷻ ته وکړي چي د هغه ذبح روا وي لکه

اوبښ، غوییی یا پسه لانه عهد و الزم علی نفسه شیئ چې صوم یوم العید یا ذبح د زوی ده فوجب علیه الوفاء بما صح الوفاء به وهو صوم یوم آخر او ذبح البقر مثلاً، وفي الحدیث الصحیح ماظهر الغلول في قوم ای الخیانة الا القی الله في قلوبهم الرعب. یعني من العدو وغیره و لافشا الزنی في قوم الاکثر فیهم الموت ای من الوباء وغیره ولانقص قوم المکیال والمیزان الاقطع الله عنهم الرزق ای بالقحط وغیره ولاحکم قوم بغیر حق الافشافیهم الدم ای القتل ولاخطر قوم بالعهد ای نقض العهد الاسلط الله علیهم العدو. او په دغه حدیث شریف سره حنیفیانو دلیل ویلی دی چې بیع چې تامه سي په ایجاب او قبول سره نسته یوه ته د بائع او مشتري خیار د فسخ مګر نه په خیار شرط او یا خیار عیب او یا خیار رؤیة سره یعني خیار مجلس نسته. وبه قال مالک وقال الشافعي رحمهما الله تعالی المتبایعان بالخیار مالم یتفرقا او یکون البیع خیاراً. موږ له دي تفرق څخه چې په حدیث کې د بخاري راغلی دی تفرق بالاقوال مراد اخلو یعني الایجاب والقبول، او شافعي رحمه الله وایي چې مراد په حدیث کې تفرق بالابدان دی. والتفصیل في کتب الفقه:

**درویش وایي:** چې د مظهري رحمه الله له عبارت څخه صراحةً معلومېږي چې ترجیح یې و مذهب ته د شافعي رحمه الله ورکړې ده.

**یوه سه:** چې مظهري له حضرت عایشې رضي الله عنها څخه حدیث رواړی دی چې نسائي او احمد یې مخرج بللي دي. حضرت عائشه وایي چې سورت مائده اخیر د قرآن دی نزلاً فما وجدتم فیها من حلال فاستحلوه یعني معامله د حلال ورسره کوئ وماوجدتم من حرام فحرموه انتهی "له دې حدیث څخه دا معلومېږي چې په سورة مائده کي منسوخ نسته، وروسته مظهري ضد ونقیض حدیثونه راوړي دي فارجع الی تفسیره، او داغه رنګه په عقود واجب الوفاء کې داخل دي هغه عهود چې خدای پاک له اهل کتابو سره خصوصاً یهود چې تاسې به ایمان راوړئ پر محمد ﷺ او هغه نعوت چې په باره کې د نبي اخیر الزمان په تورات کې راغلي دي نه به یې پټوئ او نه به یې بدلوئ.

## أُحِلَّتْ لَكُم بَهِيمَةُ الْأَنْعَامِ

روا کړه سوې ده یعني له جانبه څخه د خدای جَلَّ جَلَالُهُ.

**پوه سه:** چي "بهيمة" په قول د روح البيان هر هغه حيوان ته وايي چي پر څلورو پښو ځي، او "انعام" اوښ، غويي، پسه او بوزه که نر وي او که ښځه نو هر يو ددوی څلورو نوع څخه چي د خپل نوع د خپل انثی سره چي يې ضم کړي زوج ځني جوړيږي، نو جميع اته کيږي كما ورد من الضان اثنين ومن المعز اثنين ومن الابل اثنين ومن البقر اثنين كماذكر في سورة الانعام، نو چونکه "بهيمة" په معنا مذکوره سره سباع درندګانو ته هم شامله وه لکه زمری، لېوه، خنزير وغيرها او د هغو غوښي خو مرداري دي، نو ځکه يې "بهيمة" و انعام ته مضاف کړه ومعنى الآية حلال کړه سوی دی تاسي ته خوراک د غوښو د انعامو.

**فائده:** مورد داسي وويل چي خوراک د غوښو لان الحرمة والحل انما يتعلق بافعال العباد لا بالاعيان الا بالعرض كماهو المقرر في كتب الفقه واصوله.

**پوه سه:** چي اضافت د بهيمة و انعام ته اضافت دی د عام بالعموم المطلق و خاص ته، نو روح البيان صراحةً وايي چي دا اضافت بيانيه دی په معنی د "منْ"، او بيضاوي او کشاف هم وايي چي دا اضافت په معنی د "منْ" دی، او روح المعاني هم وايي وقال غير واحد چي اضافت د عام وخاص ته په معنی د لام ده او حواله يې ونحويوں ته کړې ده، او دی وايي چي اضافت په معنی د من هلته جوړيږي چي په منځ کي د مضاف او مضاف اليه عموم وخصوص من وجه وي كخاتم فضة.

**درويش وايي:** چي اشتراط د عموم او خصوص من وجه په اضافت بياني کي اکثري قاعده ده لاكلية كما يشعر به عبارة هؤلاء الاعلام، او هم دا قول د مظهري چي اضافت د عام مطلق وخاص مطلق ته په معنی د لام ده عند النحويين ممنوع. ولي چي دغه صاحب کشاف چي د علم نحو لوی امام دی ولي په بهيمة الانعام چي د عام وخاص ته هم ده ولي بيانيه په معنی د من بولي او دغه رنګه صاحب د روح المعاني ولي وايي وقال غير واحد الخ، او دغه رنګه بيضاوي چي په علم نحو کي مهارت لري، ولي وايي چي دا اضافت په معنا د من بيانيه دی. آيا دغو علامه وو

دومره معلومات په نحو کي نه درلودي لکه مظهري چي درلودي. او د درويش په نېز داده چي اضافت دعام وخاص ته لاميه بلل په نحو کي هم قانون اکثري دی لاکلي.

**فائده:** د "بهيمة الانعام" په حکم کي بقر الوحش والظباء هم داخل دي.

إِلَّا مَا يُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ غَيْرَ مُحِلِّي الصَّيْدِ وَأَنتُمْ حُرُمٌ

مگر نه هغه شیان چي تلاوت به يې وکړه سي پر تاسي يعني په وروسته آيت.

**بوه سه:** چي دا استثناء ده له "بهيمة الانعام" څخه په تقدير د مضاف اى الامحرم مايتلى عليكم في قوله تعالى بعد هذه الآية حرمت عليكم الميتة الآية.

**بوه سه:** چي لفظ د "غير" منصوب دی على الحالية من ضميرلكم. والصيد مصدر دی په معنا د ښکاره کولو او معنى عدم احلال الاصياد لهم حرمت د اصطياد دی عملاً واعتقاداً.

**بوه سه:** چي "حرم" جمع د حرام ده په معنى د محرم وقوله "وانتم حرم" حال دی له ضمير څخه في محلي حاصل دا چي په وخت کي د احرام به ښکار نه کوئ.

إِنَّ اللَّهَ يَحْكُمُ مَا يُرِيدُ ۝

او خدای ﷻ حکم کوي د هغه چي اراده يې ورته وسي من تحليل شئ وتحريمه.

**پوښتنه:** له "مايتلى عليكم" څخه خو مراد هغه آيت دی حرمت عليكم الميتة الآية. نو اسناد د تلاوت "عليكم" څرنگه و "حرمت عليكم" ته صحيح دی؟

**ځواب:** اسناد د تلاوت وهغه آيت ته مجاز دی. ولي چي تلاوت خو د تالي فعل دی د آيت فعل خو نه دی. او يا مضاف مقدر دی اى يتلى عليكم في آية تحريم المذكوراة فيها. او دا احتمال هم سته چي د ما موصوله څخه دي مراد آيت التحريم وي او مضاف به مقدر وي اى الا محرم مايتلى عليكم هكذا قال المظهري.

**درویش وايي:** چي په مذکور آيت کي ډېر لوی تخفيفات سته چي د هغو لويه حصه يې علامه بغداد په تفسير روح المعاني کي بيان کړې ده مع النقض والابرام چونکه هغه تحقيقات د مطالعه کونکو ددې ډېر لوړ وه، نو ځکه درويش صرف

نظر کړه او مظهري يو مشت نمونه خروار رانقل کړي لکن لافائدة في ايرادها للمتعلمين لهذا اصرفنا النظر عنها ايضاً لماورد کلم الناس على قدر عقولهم او زما خبري عموماً د مبتديانو سره دي.

## يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُحِلُّوا شَعَائِرَ اللَّهِ

**پوه سه:** چي شعائر جمع د شعير ده او معنا يې علامه ده او مراد له "تحليل" څخه د شعائر سپکاوی د هغو دی او يحال بينها وبين المتناسكين بها.

**پوه سه:** چي ابن عباس او مجاهد وايي چي مراد له شعائر څخه مناسک د حج دي او ځايونه د حج د افعالو من المطاف ځای د طواف حول الكعبة والسعي ځای د سعي بين الصفا والمروة. والموقف بعرفة او ځای د درېدلو پر عرفات والمزدلفة. والرمي الجمار والافعال التي تعرف بها الحاج من الاحرام والطواف والحلق والنحر غيرها. والحاصل چي شعائر د ځايو ته هم ويل کېږي او افعالو ته د حج هم ويل کېږي کما في الامثلة المذكورة ايضاً.

**درويش وايي:** چي دا آيت په باره کي د حطم يا حطيم چي نوم يې شريح بن ضبيعه و او د بني بكر د قبيلې و نازل سوی دی. چي دغه حطم البكري د يمامي له لاري مدينې ته راغلی او خپل فوج يې خارج المدينة پرې ايښی و او دی يوازې عليه الصلوة والسلام ته راغلی او عليه الصلوة والسلام ته يې وويل چي ته خلګ وخه شي ته رابولې عليه الصلوة والسلام ورته وويل الى شهادة "ان لا اله الا الله وان محمداً رسول الله. واقام الصلوة وايتاء الزكوة" نو حطم ورته وويل چي دا خو ښې خبري دي لکن په فوج کي اميران لرم چي د هغو بې مشورې زه يو کار نه سم کولای زه به د هغو سره مشوره وکړم شايد چي زه اسلام راوړم او ملګري به هم درته راولم د اسلام لپاره. او عليه الصلوة والسلام دمخه تر راتلو د حطم اصحابو ته ويلي وه "يدخلكم عليكم رجل من ربيعة يتكلم بلسان شيطان ثم خرج شريح" نو عليه الصلوة والسلام و اصحابو ﷺ ته وويل "القد دخل بوجه كافر وخرج بقفا غادر والمرء لس بمسلم" نو شريح چي چي خپلو ملګرو ته ورسېدی خارج المدينة د مسلمانانو او اوښانو او نور مواشي ګرځېده هغه يې تولوله ورسره بوتله. جارچي

مدینې ته راورسېدی او علیه الصلوة والسلام اصحاب پسې واستول پیدا یې نه کړی یعنې ځان یې خپل ربیعه ته رسولی و. نو راتلونکی د شریح په حاجیانو د بکر بن وائل له ایمان څخه حج ته راغلی و. او ډېر غټ تجارتي اموال ورسره وه او هدیه د مکې هم ورسره وه چې په غاړه یې غاړګی د هدیه وه. نو مسلمانان و علیه الصلوة والسلام ته وویل چې دادی حطم حج ته راغلی دی او ډېر تجارتي مالونه ورسره دي نو موږ او دی سره پرېږده چې سر یې ورغوځ کړو او مالونه یې غنیمت کړو، نو علیه الصلوة والسلام و مسلمانانو ته وویل انه قد قلد الهدی مسلمانانو ورته وویل یارسول الله چې دا تقلید الهدی خو موږ په جاهلیت کې هم کوله نو موږ ته به اجازه راکوې علیه الصلوة والسلام منعه وکړه فانزل الله ذه الآیة.

**فائده**: پوه سه! چې د شعائر معنا خو ذکر سوله د هغه مناسب یو لفظ چې اشعار یې بولي. اشعار خاص په اوښانو سره دی معنی یې داده چې ودي وهي اوښ یا اوښه د بوک په یو بغل کې په چاړه ترڅو چې څه وینې راووزي. نو په هغو وینو د بوک دي هغه ظرف ورو کړي چې علامه پر دې ده چې هدي د مکې مکرمې ده نو بیا څوک کار نه په لري.

**پوه سه**: چې اشعار سنت دی د امام شافعي، امام مالک، امام احمد، امام ابو یوسف او د امام محمد رحمهم الله په نېز. او امام ابو حنیفه رحمه الله وایي چې اشعار مکروه دی. د جمهورو دلیل دادی چې په بخاري او مسلم کې حدیث مروی دی له عائشې رضي الله عنها څخه دا وایي "فتلت بدن النبي ﷺ بیدي ثم قلدها" ماولبدلې غاړګی د وښانو د علیه الصلوة والسلام په خپلو لاسو او بیا یې ورپه غاړه کړې "واشعرها واهدیها الی اخیر الحدیث.

**درویش وایي**: چې دېښمنان د ابوحنیفه رحمه الله یعنې لامذهبه کسان پر امام اعظم رحمه الله یې خولې د طعن خلاصې کړي دي چې وفعل ته د رسول الله ﷺ مکروه وایي، او دا فکر نه کوي چې دومره لوی امام او په احادیثو تر ټولو ښه خبر څرنګه داسې خبره کوي فقیه ابو جعفر الطحاوي رحمه الله چې اعلم الناس بمذهب ابي حنیفه علماوو منلی دی هغه وایي چې ابو حنیفه رحمه الله پر وجه مشروع في

زمانه ﷺ وفي ازمنة الصحابة ﷺ كمامر كيفيته مكروه نه بولي لكن په
تېرېدلو د زمانې جاهلانو خلګو به اشعار داسي كاوه چي يو خنجر وغيره به يې
راواخستې او تر بېخه پوري به يې د اوښ په بغل چخ كړې نو تولـه بغـل د اوښ به
په وينو ګكنې سو اخير به يې چنجيان رګرړه او داځاى به بدبوى سو. نو داسي
اشعار ته نه امام ابو حنيفه رحمه الله مكروه وايي په قرينه د دليل د امام محترم چي دا
تعذيب ممتد د حيوان بلا فائده دى او شك نسته چي اشعار پر وجه مشروع صرف
يو ګړى به اوښ ته تكليف وي بيا يې ژر تپ جوړېږي. مطلب د اشعار خو صرف
هغه دى چي د اوښ د بوک پر وېښتانو باقي پاتېږي او علامه ددې ده چي هديه د
مكې ده ......

چشم بد انديش كه بركنده باد عيب نمايش هنرش در نظر

لامذهبه خلګ دي دا ګمان نه كوي چي امام اعظم رحمه الله بې يار و مددګار دى.

**سوال**: امام ابو يوسف او امام محمد خو به له جاهلانو څخه نه وه، نو دوى ولي د
اشعار په سنيت كي د امام اعظم رحمه الله مخالفت وكړى؟

**ځواب**: ممكنه ده چي د هغو اجتهاد به داوي چي جهل د جاهل په ترک كي د
سنت عذر نه سي كېداى.

## وَلَا الشَّهْرَ الْحَرَامَ

او تاسي به قتل او غارت وځان ته روا ګنئ په شهر حرام كي وهو شهر الحج.

**درویش وايي**: چي اشهر الحرم الاربعة د مياني مياشت. د لوى اختر. محرم او
د رجب مياشت ده چي په پښتو يې د خداى تعالى مياشت بولي چي ابتداء د قتال
د كفارو سره په ابتداء كي د اسلام روا نه وه.

## وَلَا الْهَدْيَ وَلَا الْقَلَائِدَ

او نه به تعرض كوي و هدي ته بالغضب او بنوعه الى محله وهو الحرم.

**يوه سه**: چي هدي هغه اوښ يا غويي يا پسه دى چي مكي مكرمي ته تقرباً الى
الله خلګ استوي جمع د هديه ده.

**يوه سه**: چي قلائد جمع د قلاده ده چي غاړګې، ته وايي او د اوښانو وغيرها په

غاړه کي يې دراچوي چي څوک يې مکي مکرمې ته استوي. لکن عبارت په حذف د مضاف دی ای ذوات القلائد يعني ذوات القلائد ته به هم تعرض نه کوي.

**سوال:** ذوات القلائد خو هم هدي ته وايي، نو عطف يې پر هدي عطف د شي پر ځان نه دی؟

**ځواب:** هوا مصداق خو يې يو دی لکن ذوات القلائد اشرف دی تر مطلق هدي نو دا عطف د خاص پر عام دی لمزيد الشرف.

**پوه سه:** چي قلادة پوازې متعارف غاړگی ته نه وايي کمامر في حديث امنا عائشة ﷺ کنت فتلت قلائد آه. بلکي که څوتې په غاړې د هدي وځړوي يا بل شی صرف مقصد دادی چي خلگو ته دا معلومه سي چي دا هدي د مکي ده بيا څوک تعرض نه ورته کوي بالسرقة والغصب والمنع في الجاهلية والاسلام.

**وَلَآ آٰمِّيْنَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ يَبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنْ رَّبِّهِمْ وَرِضْوَانًا**

او نه به هغه کسان چي قاصدين د بيت الحرام چي کعبه مبارکه ده هغو د منع روا والی به وځان ته وايااست بای وجه کان المنع.

**پوه سه:** چي "يبتغون فضلاً من ربهم ورضوانا" حال دی له ضمير مستکن څخه په "آمين" کي والمعنى قاصدين زيارة البيت الحرام لپاره د طلب د رزق بالتجارة او د رضا د خدای ﷻ يعني ددوی پر زعم باطل. ولي چي کافر لره هيڅ برخه نسته په رضا الهي کي تر هغو چي مسلمانان نه سي. په ارشاد کي وايي چي مشرکانو دا گمان فاسد درلودی چي موږ پر حقه لاره يو په خپل دين شرک کي او ددوی دا گمان هم و چي حج د بيت الله شريفې موږ و خدای ته نژدې کوي نو خدای ﷻ ددوی پر زعم دوی په طالبانو سره د رضی الهي ذکر کړه. لکن دغه ظن فاسد ددوی که څه هم نتيجه د رضی الهي خو نه ورکوي لکن بعض مقاصد دنيويه ددوی لکه تجارت او منع د مسلمانانو ددوی له ضرر څخه فائده کوي.

**درويش وايي:** چي په روح البيان کي وايي چي دا آيت الى ههنا منسوخ دی په دې آيت مبارک سره "فاقتلوا المشرکين حيث وجدتموهم" او بل په دې آيت کريمه "ولاتقربوا المسجد الحرام بعد عامهم هذا" فلا يجوز ان يحج المشرک ولا يامن الکافر بالهدي.

وَإِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوا ؕ

چي تاسي خلاص سئ له احرام څخه نو ښکار کوئ. دا اذن دی په ښکار کي پس له تحريمه څخه چي په دې قول کي د خدای سوی و "لاتحلوا شعائر الله فان الصيد في الاحرام تحليل الشعائر.

**پوه سه:** چي دا امر د اصطياد لپاره د اباحت دی بالاجماع كما في قوله تعالى في صلوة الجمة فاذا قضيت الصلوة فانتشروا، او څوک چي دا دليل وايي چي امر وروسته تر نهي وي لپاره د اباحت دی نه دی صحيح مطلقاً فان الامر المطلق عن القرائن ای الخال عن القرائن هو الايجاب كما برهن عليه في الاصول. روايت کړی دی ابن ابي حاتم له زيد بن اسلم څخه چي مسلمانان د عليه الصلوة والسلام سره وه په حديبيه کي هغه وخت چي د مکې مشرکانو دوی له عمرې څخه د بيت الله شريفي منع کړي وه والقصة مشهورة نو د بلې خوا بعض خلگ له مشرکانو څخه د اهل مشرق پر حديبيه تيرېدله، نو اصحابو د رسول الله ﷺ ورده ته وويل چي دا مشرکان په موږ منع کړو له مکې څخه کماصدوا اصحابنا فانزل الله هذه الآية.

وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَآنُ قَوْمٍ أَنْ صَدُّوكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ

تاسي دی باعث نه کړي بغض او شدت عداوت د يو قوم چي اهل مکه وه چي تاسي يې عمرې ته نه پرې ښولاست. چي تاسي يې منع کړلاست يعني په کال د حديبيه چي تاسي د عمرې لپاره راغلي واست.

**پوه سه:** چي "شنآن" مصدر دی مضاف و مفعول ته دی. د "ان صدكم" سره لام مقدر دی ای لان صدكم.

**فائده:** شنآن" مصدر دی وزن يې فعلان دی او پر دې وزن مصادر نورهم راغلي دي لکه ضربان والسيلان والنسلان. او په سکون د عين په صفاتو کي دا وزن ډېر دی مثل السكران والندمان والرحمن.

أَنْ تَعْتَدُوا ۘ وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَىٰ

چي تاسي به تجاوز کوئ پر دوئ بالقتال واخذ الاموال كما قال اصحاب رسول

الله ﷻ کمانر. او تاسي کومک سره کوئ پر هغو ښو کارو چي امتثال د امر الله دی او پر تقوی چي ځانونه منع کړئ له هغو کارو څخه چي خدای ﷻ ځني منع کړي یاست چي په دې سره به تاسي ځانونه له عذابه څخه د خدای وساتئ.

وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ

او کومک مه سره کوئ پر ګناه باندې یعني په ارتکاب کي د منهیاتو او نه پر ظلم باندي د انتقام او د زړو د سړېدو. د نواس بن سمعان انصاري ﷺ روایت دی چي د علیه الصلوة والسلام څخه چا پوښتنه وکړه د بِر او د اثم نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل "البر حسن الخلق والاثم ماحاک في صدرک وکرهت ان یطلع علیه الناس" یعني بِر ښو اخلاقو ته وایي او اثم هغه کار دی چي ستا په زړه کي تردد پیدا کړي او تاته مکروه معلومېده چي خلګ را خبرسي رواه مسلم في صحیحه والبخاري في الادب والترمذي.

وَاتَّقُوا اللَّهَ ۖ إِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ ﴿٢﴾

او له خدایه وبېرېږئ او د خدای ﷻ عذابونه سخت دي، نو انتقام د خدای اشد او اخوف دی. خواجه عبدالله انصاري هروي قدس سره چه خوش گفته است

حبذا قومی که داد بندگی را داده اند
ترک دنیا گفته اند وزهمه ازاده اند
روزها باروزها درگوشها بنشسته اند
نفس خود راقهر کرده روح کرده پرفتوح
زاد تقوی برگرفته بهر مرگ آماده اند
طرفة العین نبوده فاغل نبوده از حضرت ولي
سیلها با این همه ازدیدها بکشاده اند
یکزمان از نوحه همچنون نوح فارغ نیستند
همچو یحی گوئیا از بهر زاری زاده اند
زآب تاب تب الی الله غسل کرده آن کسان

روی خود بر خاکپای اسجدوا بنهاده اند
ربنا گویند از آن لبیک عهدی بشنوند
جمله سرمست الست از جرعه این باده اند
راحتی دیدند وذوقی یافتند از انس وجان
روز وشب در کنج خلوت بر سر سجاده اند
تا بدنیا آمدند از کلبه کتم عدم
سوی حضرت جز نیاز وناله نفرستاده اند
پیر انصاری تو میدانی که ایشان کیستند
فرقه بی کرد پروز مرد دل ساده اند

## حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ

حرامه کړه سوې یعني له جانبه څخه د خدای ﷻ مرداره.

**پوه سه:** چې میتة هغه حیوان بولي چې روح یې څني جلا سي بيله ذبح.

**فائده:** بیان دی د مایتلی علیکم چې په دمخه آیت کې تېره سوه والمعنی اکل لحم المیتة. ولي چې دمخه موږ وویل چې حل او حرمت له صفاتو څخه د افعالو د مکلف دي او صفت د اعیانو بالعرض دی.

**پوه سه:** چې مظهري په نقل سره د کتاب لباب النقول في اسباب النزول یو حدیث راوړی دی چې سند یې هم ورسره ذکر کړی دی له ابن ابجر ﷺ څخه چې هغه وایي چې موږ د رسول الله ﷺ سره و او ما تر دېګ لاندې اور بلاوه چې په هغه کې غوښې د میته وې. فانزل الله هذه الآیة فاکفئت القدر. وروسته پر پښېمانه سوی دی او دا عذر یې کړی دی چې دا حدیث ماتبعاً للکتاب الفلاني روارړی دی والصحیح هکذا.

**درویش وایي:** چې په دې کې شک نسته چې دغه حدیث چې د سند ذکر یې هم کړی دی موضوعي دی، نو موضوعي حدیث چې سړی یې په وضعه خبر هم ؤي روایت یې نه دی روا بیا په دومره غټ میدان کې د تفسیر الا مقروناً ببیان وضعه. او ولي په موضوعي حدیث کې سړی د چا متابعت وکړي والی الله المشتکی.

## وَالدَّمُ وَلَحْمُ الْخِنْزِيرِ

او وينه او غوښي د سرکوزي.

**پوه سه**: چي مراد له وينو څخه هغه ډېر گو بهانده وينه ده چي په وخت کي د ذبح له حيوانه راوځي چي اهل جاهليت به دې وينې ته يو لوښي نيوی او بيا به يې پخوله او خوړل به يې او هغه وينه چي د مثلاً د پسه په غوښه کي وي او يا جامده وينه وي لکه کبد او طحال يعني اينه او پېړی هغه پاکي دي كما جاء في الحديث الصحيح احل لنا ميتتان السمك والجراد والدملن الكبد والطحال او كما قال ؏.

**پوښتنه**: سرکوزی خو نجس دی بجميع اجزائه په نص قرآني سره، نو تخصيص د لحم يې ولي وکړی؟

**ځواب**: له دې کبله يې وکړی چي لوی مقصد په حيوان کي غوښه ده.

**پوښتنه**: لحم الكلب يا لحم الاسد وغيرهما نه سو ذکر او سره ددې چي د هغو غوښي هم حرامي دي وجه يې څه ده؟

**ځواب**: وجه يې داده چي ډېر کافران د خنزير د غوښو سره ډېر الفت لري او خوري يې بخلاف الكلب وسائر السباع فانها لم يالفوا لاكل لحمها احد من الكفار. او فرق د خنزير او د نورو سباعو تر منځ دادی چي نور حيوانات چي د غوښو خوړل يې حرام دی اذا ذبحت كان لحمها طاهر لا يفسد الماء اذا وقع فيها وان لم يحل اكله بخلاف الخنزير. ولي خنزير که څوک ذبح هم کړي غوښي يې نجسي دي که په اوبو کي ولوېږي اوبه په مردارېږي.

**فائده**: بعض علماء وايي چي سپی هم نجس العين دی. لکن په تنوير کي چي د فقهي يو معتبر کتاب دی وايي چي كلب نجس العين نه دی.

**پوه سه**: چي علماء وايي چي هره غذاء چي انسان خوري هغه دده جزء گرځي نو هغه احوال او اوصاف چي په غذاء کي وي په خوړونکي کي يې هم پيدا کېږي، د سرکوزي خاصيت دادی چي عظيم حرص لري او رغبت شديد لري په مشتهياتو کړي فحرم اكله على الانسان لئلا يتكيف قلبه بتلك الكيفيات. او له جملې څخه خبيث ترينو د خنيز دا ده چي ډېر بې غيرته دی حتی چي د يو خنزير سره چي خپله

انشي ورسره وي که بل خنزیر پر هغه انشي خېژي هغه نر يې بد نه په وړي لهذا هغه کافران چي د سرکوزي غوښي خوري که دده ماينه د بل چا سره په وطي راضي وي مېړه يې بد نه په وړي، ځکه دغه کافران خنزیر خواره يو د بل د مايني سره په وطي کي بد نه وړي چي ماينه يې راضي وي، نو ځکه د خنزیر د غوښو خوراک خدای ﷻ حرام وګرځاوه تاچه دغه خبيث طبعيت پکښي پيدا نه سي.

**شکایت**: په بعضو مسلمانانو کي هم دغه د دوسي طبعيت پيدا سوی دی چي خپلي مايني په مقابل کي د ډالرو امریکايانو ته وړولي. تاسي فکر وکړئ چي دا سر مسته شرابخوره امریکايان چي پر بعضي بلادو د مسلمانانو يې غلبه کړې ده او د اکثرو دغو امریکايانو سره خپلي مايني هم نه وي ورسره، نو دا مستي د شرابو د شهوت دوی چېري استعمالوي، دغه دوسان مسلمانان دي چي خپلي مايني وړولي او امریکايان خپله شهوت پرستي پر کوي او مېړه دوس ته يې ډالر ورکوي، حمدالله غزنوي وايي

چو بینم دین احمد درغریبی دلم سوزان زچشم خون جاری

او بعض مسلمانان د امریکايانو په تسلط د مسلمانانو پر مملکت خوشاله وي تاچه د شريعت په چوکاټ کي کومه پابندي پر دوی وه هغه پورته سي او حسب الخواهش ازادي ددوی ته پيدا سي. اللهم نصراً وفتحاً ودماراً على هؤلاء الامريكين.

## وَمَآ أُهِلَّ لِغَيْرِ ٱللَّهِ بِهِۦ

**پوه سه**: چي "اهلال" رفع د صوت ده، رؤية الهلال نو معنا د آيت داده چي د هغه حيوان غوښي هم حرامي دي چي په وخت کي د ذبح د غير الله نوم پر واخستل سي، لکه اهل جاهليت چي به اوښ يا پسه وغيره حلالوی نو داسي اواز به يې پورته کړی باسم اللات او باسم العزى وغيرهما من اصنامهم.

**درویش وايي**: چي په دې آيت لامذهبه معلوم الحال طوائف وايي که چا په دې نيت د ثواب د رسېدلو د فلاني پير حتى د عليه الصلوة والسلام د ثواب رسېدلو په نيت شی حلال کړی هغه سری مشرک دی ذبيحه يې مرداره ده، وهذه جهالت عظيمة على الاطلاق، په روح المعاني کي وايي قال الفقها. که چا داسي وويل چي

ذبح یې کوله بسم الله ومحمد حرمت الذبحة لانه احل لغیر الله به. وفي الحدیث لعن الله من لعن والدیه ولعن الله من ذبح لغیر الله. قال النووي رحمه الله المراد الذبح باسم غیر الله کمن ذبح للصنم بذکر اسمه عند الذبح او لموسی او لغیرهما یعني ذکر اسم موسی عند الذبح و امرار السکین سواء ذکر معه اسم الله او لم یذکر.

**درویش وایي:** مسلمانان چې د علیه الصلوة والسلام لپاره یا د یو شیخ مړي یا ژوندي په نامه یو حیوان ذبح کوي هغه قبلاً دا نیت یا دا قول کوي لکن عند الذبح وامرار السکین فقط دا وایي بسم الله الله اکبر ولایذکر اسم احد غیر الله معه. نو لامذهبان ولي دی مشرک بولي او ذبیحه یې مرداره بولي. او مظهري وایي یکره ان یذکر مع اسم الله عند الذبح شیئاً غیره موصولاً مثل یقول عند الذبح بسم الله اللهم وتقبل من فلان لکن لا یحرم الذبیحه.

**درویش وایي:** مسلمانان چې د چا په نامه حیوان ذبح کوي داغسې هم نه وایي بلکې دمخه تر غوڅارولو د پسه مثلاً داسې وایي چې ددې پسه د حلالېدو ثوابونه دې فلاني ته ورسېږي وروسته پسه غوڅار کړي، او چې وخت د ذبح یې راسي فقط وایي بسم الله الله اکبر فلاکراهة في مثل ذالک ایضاً. البته که یې متصل پر وجه د عطف او شرکت وویل بسم الله و اسم فلان او یا یې داسې وویل باسم الله ومحمدٍ رسول الله په جر د محمد د لفظ یحرم الذبیحة لانه اهل لغیر الله به.

**درویش وایي:** چې داسې هم د هیڅ مسلمان څخه اورېدل سوې نه ده. قال المظهري ولاباس بان یقول قبل التسمیة قبل ان یضجع الذبیحة.

**درویش وایي:** چې مسلمانان د علیه الصلوة والسلام پر نامه او یا د یو شیخ پر نامه خیرات کوي طرز عمل یې دغسې دی فلاباس به. او که یې په وخت کې د ذبح خو یې بسم الله الله اکبر ووایه. چې پسه ذبح سو بیا یې د بل چا نوم ورسره واخستی فلاباس به ایضاً لان النبي ﷺ قال بعد الذبح اللهم تقبل هذا من امة محمد ﷺ لمن شهد لک بالوحدانیة ولي بالبلاغ انتهی.

## وَالْمُنْخَنِقَةُ

او داغه رنګه حرام دي پر تاسي خوراک د غوښو د حیوان چې په خپه مړ سي که د لاس خپه وي او که د مراندي.

## وَالْمَوْقُوْذَةُ

او داغه رنګه حرام دي خوراک د غوښو د هغه حیوان چي ضرب شدید یا د ډبري یا د لرګي لکه په جاهلیت کي چي دا قانون و چي پسه وغیره به یې نه ذبح کاوه بلکي په ډبره یا په یو لرګي به یې وواهه مړ به یې کړي.

## وَالْمُتَرَدِّيَةُ

او داغه رنګه حرامي دي غوښي د هغه حیوان چي یا له بامه را شوه سي، او یا څاه ته ولوېږي او ذبح ته نه ورسېږي او مړ سي.

**پوښتنه**: که دا مذکوره حیوانات په داسي حال کي وه چي که یې سړی یو ګړی پرېږدي په پخله مړي لکن سړي چالاکي پر وکړه ذبح یې کړي نو هغه حلال دی که څرنګه؟

**ځواب**: هو! حلال دی ولي چي د ذبح لپاره جوړوالی د حیوان نه دی شرط.

## وَالنَّطِيحَةُ

چي یو حیوان بل په ښکر ووهي او مړ یې کړي ددې غوښي هم حرامي دي.

**سوال**: نطیح خو فعیل دی په معنی د مفعول او په فعیل کي په معنی د مفعول مذکر او مؤنث برابر دي نو د تاء التانیث د کلمې څه ضرورت و؟

**ځواب**: دا تاء التانیث نه ده بلکي لپاره د نقل ده له وصفیت څخه و اسمیت ته کما في الذبیحة.

## وَمَا أَكَلَ السَّبُعُ

او یا د درنده په خوړلو مړ سي یعني درنده چي بعض د حیوان وخوري او هغه حیوان مړ سو ذبح ته نه ورسېدی ددې حیوان غوښي هم حرامي دي.

**مسئله**: له دې آیته دا هم وفهمېده که معلم ښکاري سپی و یا باز ښکاري یا ښکاري پړ یا څرخک مرغه ده مرغه ښکار کړی خو څه غوښي یې خوړلي وې هغه هم مرداري دي خوراک یې حرام دی.

## إِلَّا مَا ذَكَّيْتُمْ

استثناء راجع ده و ټولو دغو مذکوره شیانو ته ومعنی "ذکیتم ادرکتم ر کوته"

**پوه سه**: چي اصل تزکيه اتمام ته وايي نحو ذکيت النار اذا تمت اشتعالها او مراد دلته ذبح ده. ولي چي ذبح هم اتمام د حيوة دی، او په صحاح کي وايي ذکيت الشاة اي ذبحتها.

**پوه سه**: چي ذبح د پسه حلالول دي او حلق او نحر د اوښ حلالول دي په گروي کي والتزکية يعمهما.

**مسئله**: که يو درنده له حيوان څخه څه غوښه خوړلي وه او تر ورسېدلو پوري هغه حيوان ژوندی و، نو ذبح دې کړی خوراک يې حلال دی. او که دا حيوان په جرح د سبع داسي حالت ته رسېدلی و لکه مذبوح يعني لکه مذبوح صرف يې لغتي وهلې نو هغه په حکم کي د ميتة دی يعني غوښي يې مرداري دي که څه هم ته يې ذبح کړې وقس على هذا المتردية والنطيحة والموقوذة.

**پوه سه**: چي استثناء چي وروسته تر امور متعاطفه وو راسي راجع و اخير ته وي هغه نور ته قياسېږي لکن قياس د ټولو نه پر کېږي يعني د منخنقه قياس نه پر کېږي، ولي منخنقه خو هغه دی چي په خفه مړ سي، نو څرنگه به ماذکيتم ودوی ته شامل سي.

**پوه سه**: چي د ذبح شيان څلور دي يو حلقوم دی چي ساه پکښي ځي او راځي، او بل مری ده چي وابنه او اوبه پکښي ځي، او دوه رگونه ودجان بولي چي وينه پکښي ځي. د امام مالک رحمه الله په نېز په ذبح او په نحر کي د څلورو سرو قطع غواړي، امام شافعي او امام احمد وايي چي په حلالېدلو کي قطع د حلقوم او مری کافي ده. امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله وايي هر درې چي پرې سي کافي دي يعني قطع د اکثر ضروري ده.

**دروېش وايي**: چي مسائل خلافيه يا اتفاقيه د فقهي شريفي په کتابو کي او يا په تفسير مظهري کي چي هغه هم پوه تو ته فقه ده وگورئ. لکن دروېش يقدر ضرورت احکام د فقهي بيان او استيعاب نه کوي چي زما تفسير د عامه طالبانو او يا خوانده عوامو ورونو او خويندو لپاره دی، نو استيعاب پر دوی بوج کېږي.

وَمَا ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ

**پوه سه**: چي بعض مفسران وايي چي "نصب" جمع دی او مفرد يې نصاب دی لکه

کتب او کتاب. او بعض وايي نصب مفرد دی جمع يې انصاب دی لکه عنق او اعناق.

**درويش وايي:** چي اول قول و حق ته نږدې دی، ولي چي مجاهد او قتاده وايي چي د بيت الله شريفي پر شا وخوا درې سوه شپېته ډبرې کفارو درولي وې چي اهل جاهليت به يې تعظيم کاوه او پوسنه وغيره به يې پر ذبح کول. او دا ډبرې له اصنامو څخه غير وې يعني ساده ډبرې وې. او اصنام خو صور منقوشه وه. امام رازي رحمه الله په تفسير کبير کي وايي چي بعض علماء وايي چي نصب هي الاوثان وهذا بعيد لان هذا معطوف على قوله وما اهل لغير الله به وذالک هو الذبح على اسم الاوثان ومن حق المعطوف ان يغاير المعطوف عليه. او ابن جريج رحمه الله وايي چي نصب اوثان نه دي فان الاصنام مصورة منقوشة وهذه الاحجار نصبوها حول البيت وكانوا يذبحون حولها وعندها او دوی به دغه ډبرې په هغه وينو سره ککنولې او غوښي به يې پر هغو ډبرو کېښېنولې هر محتاج چي به ورلای.

**درويش وايي:** چي قطرب چي لوی لغوي سړی دی وايي چي "على" په معنا د لام دی والمعنى ماذبح لاجل النصب ای الاصنام. ويرد عليه ان العطف يقتضي التغاير بين المعطوفين يعني په منځ کي د ما اهل لغير الله به چي معطوف عليه دی او د ما ذبح على النصب چي معطوف دی پر توجيه د قطرب يې څه فرق دی.

وَأَنْ تَسْتَقْسِمُوا بِالْأَزْلَامِ

او داغه رنګه حرام دی چي تاسي طلب د خپل قسمت او کار کوئ په ذريعه د غشو، بعض مفسرين وايي چي کفارو د يو کار د کولو اراده وکړه نو دوی درې غشي درلوده پر يوه غشي به نوشته وه امرني ربي، او پر بل باندي نوشته وه نهاني ربي. او پر دريم به نوشته وه غفل. ای خال عن الکتابة. نو که به امرني ربي غشی راووتی هغه کار به يې کاوه او که به د نهي غشی را ووتی هغه به يې نه کاوه او که به هغه غشی راووتی چي غفل به پر نوشته وه بيا به يې غشي په کڅوړه کي واچول او دا کار به سادن الکعبة کاوه، او بعض مفسران وايي چي ازلام جمع د زلم ده په زور د زاء يا په پېښ د زاء معنا يې غشی دی، او عربو د جاهليت په وخت کي اووه غشي سره برابر وه يو دبله سره او د شوحط له درختي څخه جوړ وه: او دا

غشي به د خادم الكعبة سره وه يعني متولي د كعبې شريفې چې خلاصېدل او بندېدل د كعبې شريفې د خونې دده په تصرف كې وه او په عربۍ يې ودغه سړي ته سادن الكعبة وايه. نو پر يوه غشي به نوشته وه "نعم" او پر بل به نوشته وه "لا" او پر بل به نوشته وه "منكم" او "من غيركم" او "ملصق" او "العقل يعني الدية" او يو يې "غفل" بالـه چې هيڅ نـه وه پر نوشته. نو جاهليت والو چې به اراده د يو كار وكړه لكه سفر يا نكاح يا سنتې يا نور ورته كارونه او يا به يې د چا په نسب كې اختلاف وو او يا په تحمل كې د ديت. نو دوى به ورغله هبل بت ته او حبل ددوى يو ډېر معتبر بت و. نو دوى به سل درهمه و سادن الكعبة ته وركړه چې ته دا غشي را وګرځوه په توبره يعني په نامه د كڅوڼې او هبل بت ته به مخاطب وه يا الٰهنا مونږ اراده د فلاني كار لرو لكه سفر يا نكاح يا تجارت الى غير ذالك. نو كه به هغه غشى را ووتى چې "نعم" به پر نوشته و هغه كار يې كاوه او كه به "لا" والا غشى را ووتى هغه كار يې نه كاوه تر يوه كاله پورې وروسته تر كال به يې قداح بيا سره وښورول كه به نعم راووتى هغه كار به يې كاوه او كه به لا و بيا تر كاله پورې به يې هغه كار نه كاوه ثم وثم، او كه به يې د چا په نسب كې اختلاف و نو كه هغه غشى راوتلى واى چې "منكم" به پر ليكلى و نو ددوى قبيلوې سړى ګڼل كېدى او كه به هغه غشى راوتلى واى "من غيركم" نو ددې معنا دا وه چې ستاسې له نسبه نه دى حليف مو دى. او كه به هغه غشى راوتلى واى چې "ملصق" پر نوشته واى. نو ددې مطلب دا و چې سړې صرف په تاسې پورې ځان تړلى دى نه حليف دى او نه د قبيلې دى. او كه به يې د چا په ديت كې اختلاف واى نو كه هغه غشى را وتلى واى چې "عقل" به پر ليكلى و. هغه ته يې ديت وركاوه. او كه هغه غشى واى چې "عقل" به و بيا به يې غشي سره وښورول حتى يخرج المكتوب، نو خداى ﷻ له دې كاره خلګ نهي كړه، وقال الله ﷻ.

**ذٰلِكُمْ فِسْقٌ**

دا خروج دى له امر الٰهي څخه.

**درويش وايي:** چې په هر شي سره چې علم الغيب غوښتل كېږي هغه تر دې

ایت لاندي دی حتی چي مظهري فالنامه هم له دې جملې څخه ګڼلې ده. او هر شی چي قمار پر کېږي هغه تر دغه آیت لاندی دی بدلالة النص انتهی.

**درویش وایي:** چي د قمار په حرمت کي خو نص صریح موجود دی انما الخمر والمیسر الآیة نو اثبات د حرمت یې دلالة النص څه ضرورت دی. بغوي رحمه الله له ابي درداء رضي الله عنه څخه روایت کړی دی قال قال رسول الله ﷺ (من تکهن) که چا غیب ګویي وکړه.

**درویش وایي:** چي لکه بعض جاهل ملایان او کوډګران چي د یو سړي مثلاً د اعصابو ضعف لري یا یې سر همېشه درد کوي یا نور ورته مرضونه لري. نو کوډګر ملا ورته ووایي چي په تا چا کوډي کړي دي او فلاني ځای کي ښخي کړي دي زه به پېرانان پټي واستوم را او به یې کاږي ته سبا راسم. او د سائل نوم او د پلار نوم یې هم زده کړي سبا چي هغه سړی راسي ملا صاحب د مخه لا پر یو ژاړه کاغذ نوشته کړي وي بیا د هغه سړي نوم او د پلار نوم یې په یو خام خط نوشته کړي. سبا چي هغه سړی راسي کوډګر هغه تعویذ په زړو زړستو لځاځو کي پېچلی په لاس ورکړي وایي دغه دي هغه کوډي چي په تا سوي دي پېرانانو مانبام راوړي. نو جوړي روپۍ څني واخلي. نو دې کوډګر هم خپل ځان ته علم غیب ثابت کړی او هم یې پېرانانو ته. نو ګویا ده د دنیا لپاره په دې آیت کي فکر نه وهی "قل لا یعلم الغیب الا الله" (او استقسم) یعني بالازلام کما مر (او تطیر طیرة ترده من سفره) او یا بد فالي په یو شي سره وکړي چي له سفره یې منع کړي لم ینظر الی الدرجات العلی من الجنة یوم القیامة" نه ګوري هغه لوړو درجو ته د جنت په ورځ د قیامت.

**اَلۡیَوۡمَ یَىِٕسَ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا مِنۡ دِیۡنِکُمۡ فَلَا تَخۡشَوۡهُمۡ وَ اخۡشَوۡنِ**

نن ورځ یعني په ورځ د نزول ددې آیت وفیما بعده. او بعض وایي چي مراد له یوم څخه معینه ورځ نه ده بلکې مراد زمان حاضر او چي په زمان حاضر پوري متصل ازمنه آتیه وي. نا امیده سوي هغه کسان چي کافران دي ستاسي له دین څخه یعني چي ستاسي دین باطل او یا تغیر او تبدیل پکښې وکړي لکه یهودانو چي پخپل دین یهودیت کي وکړی. او یا دي پر اهل ددې دین غالبه سي عموماً، او یا دي د دین علم برداران د یهودیت او نصرانیت ته جلب کړي لکه په اوسنی

زمانه کي یعني سنه ۱۴۲۷ هـ ق وماقبله چي امریکایان په دې کوشش کې دي چي د اسلام د دین په عوض کي نصرانیت په دوی کي رواج کړي. یعني بعض افراد ناحسابه دي عموماً نه سي کولای چي امریکایان دي پر عمومي مسلمانانو د نصرانیت پرده وغوړوي. نو تاسي مسلمانان له دوی څخه مه بېرېږئ چي پر تاسي دي غالبه سي او ستاسي دین اسلام درباطل کړي. بلکې له ما څخه وبېرېږئ یعني په امتثال کي د اوامرو زما او په پرهېز کي د منهیاتو.

**یوه سه**: چي دا راتلونکی آیت د ماز دیگر وروسته د جمعې په ورځ د عرفات پر میدان په حجة الوداع کي نازل سوی دی چي علیه الصلوة والسلام پر خپل اوښه عضباء باندي سپور و پر عرفات ولاړ و. د عضبا پښې په رپېدو سوې له ثقل څخه د وحي ددې آیت اخیر چوکه سوه.

اعراب: "الیوم" منصوب دی په یئس الذین سره.

## اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ

نن ورځ ما کامل کړی دی تاسي ته دین ستاسي. یعني عقائد حقه مي درته بیان کړه، او په اصول د شرائع او احکامو مي خبر کړلاست من الفرائض والواجبات والسنن والاداب بالوحي الجلي او الخفي والحلال والحرام والمکروه التحریمي والتنزیهي بالوحي الجلي او الخفي. او مفسدات د هغو کارو چي وجود شرعي لکه لمونځ، روژه، بیع او شراء. او دا هم یو احتمال بعیده دی له عبارت څخه د قرآن، مظهري راوړی دی "یعني که څه هم مقصود خو یې صحیح دی لکن له عبارت څخه د دینکم لیري دی" چي مراد دي له اکمال څخه د دین بلوغ النبي ﷺ في مدارج القرب الی الله الی مرتبة یغبط بها الاولون والآخرون حتی غفرله لکمال محبوبیته له تعالی جمیع ذنوب امته حتی الدماء والمظالم. یعني په ورځ د عرفات او په شپه کي د مزدلفې، وتفصیله في الاحادیث النبویة.

**یوه سه**: چي بخاري او مسلم روایت کړی دی له عمر بن الخطاب ؓ څخه چي یو یهودي ورده ته وویل چي یو آیت ستاسي په کتاب کي چي تاسي یې وایاست که پر موږ یهودانو نازل سوی وای، نو موږ به هغه ورځ اختر گرځولې وای. عمر ؓ ورته

وويل کوم آيت دی؟ يهودي ورته وويل "اليوم اكملت لكم دينكم" عمر ﷺ ورته وويل زمونږ هغه ورځ هم پياده ده او هغه ځای مو هم پياده دی چې دا آيت پر نبي ﷺ نازل سو چې عليه الصلوة والسلام پر عرفات ولاړ و او ورځ د جمعې وه. عمر ﷺ اشاره ودې ته وکړه چې هغه ورځ زمونږ دوه اختره وه يوم الجمعة ويوم الوقوف على العرفة. له ابن عباس ﷺ څخه روايت دی چې ددې آيت د نزول په ورځ يوه داسې اتفاقيه واقعه پېښه سوه چې نه په دمخه تواريخو کې پېښه سوې ده او نه به وروسته پېښه سي چې په دغه ورځ پنځه اختره وه يوم الجمعة ويوم العرفة وعيد اليهود وعيد النصارى وعيد المجوس. قاله صاحب روح البيان.

**فائده**: بغوي ﷺ يو حديث راوړی دی چې دا آيت چې نازل سو عمر ﷺ وژړل عليه الصلوة والسلام ورته وويل پر څه شي ژاړې؟ عمر ﷺ ورته وويل ماذا ژړوي چې موږ تر اوسه په زيادت کې د دين و، اوس چې خدای پاک وايي چې دين مو کامل سو، نو هر شی چې کامل سي وروسته نقصان په پسې وي، د عمر ﷺ غرض دا و چې له دې څخه زما دا خيال پيدا سو چې تاسي لکه چې زمونږ له منځه ځئ؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل صدقت ياعمر دا زما د مرگ پيش خيمه ده. نو تاريخ اسلامي وايي چې ددې آيت تر نزول وروسته عليه الصلوة والسلام يو اتيا (۸۱) ورځې ژوندی و، او د دوشنبې په ورځ وروسته تر زوال د لمر پر دوولس تاريخ د ربيع الاول على الرواية المشهورة په کال يوولس (۱۱) هجري وفات سو. انا لله وانا اليه راجعون.

**يوه سه**: چې په تفسير عزيزي کې وايي چې عليه الصلوة والسلام د دوشنبې په ورځ زو کړی دی او د دوشنبې په ورځ نبي سوی دی، او د دوشنبې په ورځ يې له مکې څخه هجرت کړی دی، او د دوشنبې په ورځ مدينې منورې ته داخل سوی دی، او د دشنبې په ورځ يې له دار الفناء څخه و دار البقاء ته رحلت کړی دی. شاه عبد العزيز ﷺ په دې کې اشاره ودې ته کړې ده.

بعد از خدا بزرگ توئی قصه مختصر

فصلوات الله تعالى وتسليماته وتكريماته عليه وعلى آله وصحبه اجمعين.

انا لله وانا اليه راجعون.

## وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي

يعني ما خپل هغه نعمت موعوده پر ځای کړی چي ما ويلي وه "واتم نعمتي عليكم" چي د هغو هدايت دی وصراط مستقيم ته، او بل توفيق مي تاسي ته درکړی د ټولو عباداتو او ترک د منهياتو، او بل اکمال د دين دی، او بل فتح د مکې ده، او منارې د جاهليت مي له تاسي محوه کړې، او مشرکين مي له حجه منع کړه وغير ذالک من الفتوحات علی اراضي اليهود حتی چي اوس مو سفرونه په اراضي وکي د عربو بې خوف او بې خطره دي.

## وَرَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا

او ما مختاره کړی دی تاسي لره اسلام، الذي هو الدين الصحيح عند الله لاغيره من الاديان، نو خدايه موږ تالره حمد وايو پر دې نعمت عظمی د دين اسلام، او له تاڅخه توفيق غواړو د ټولو حسنه عملو، او له تا څخه ساتنه غواړو د منهياتو فانه لاحول ای عن المعاصي ولاقوة الابک ای بعصمتک عن المعاصي وتوفيقک علی الطاعات برحمتک يا ارحم الراحمين، آمين آمين آمين.

موعظت: سعدي شيرازي قدس سره ميګويد

جها ن ای برادر نماند بکس — دل اندر جهان افرين بندوبس
جهان ای پسر ملک جاويد نيست — ز دنيا وفاداری اميد نيست
منه دل برين سال خورده مکان — که ګنبد نبايد برو ګردګان

## فَمَنِ اضْطُرَّ

که څوک مجبور سي وخوراک ته د شي له محرماتو مذکوره وو.

**يوه سه:** چي دا آيت متصل دی په ذکر سره د محرماتو، او درمياني جملې ټولې معترضه دي، د جمله معترضه وو فائده داده چي سړی بايد تجنب له محرماتو څخه وکړي من تعظيم الدين وذکر المنة علی المؤمنين باکمال الدين المبين، ولي چي حرمت د هغو له جملې څخه د دين کامل دی او د نعمت تامه او د اسلام مرضی ده.

فِيْ مَخْمَصَةٍ غَيْرَ مُتَجَانِفٍ لِّاِثْمٍ

په غايت لوږه کي وخلود البطن من الغذاء چي سړی بېرېږي پر مرگ او يا پر اسبابو د مرگ من الامراض الهالکة "غير متجانف لاثم" ای مائل به نه وي و گناه ته چي يا يې تلذذاً خوري دغه محرمات او يا يې بالا تر حد د رخصت خوري. او يا يې د بل مضطر له لاسه حمله کړي. لقوله تعالى في موضع آخر غير باغ ولاعاد. نو د باغي معنا داده چي له بل مضطره يې حمله کړي، او د "عادٍ" معنا داده چي تجاوز وکړي تر حد د رخصت.

**پوه سه**: چي "غير متجانف" حال دی له فاعل څخه د ځواب محذوف ای فلياکل مماحرم الله حال کونه غير متجانف.

فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝

نو په تحقيق خدای ﷻ غفور او رحيم دی.

**پوه سه**: چي دا جمله تعليل ده د جواب مقدر کمامر.

**مسئله**: که چاله خوراک څخه د محرم په حال کي د مخمصې ډډه وکړه او يا يې فرضي روژه وه او دومره نهايت وږی سو لکن روژه يې نه کړه ماته، نو مخمصه والا او صائم له لوږي مړه سوه گناه کاره دي.

**مسئله**: که چا په حال کي د ناجوړی چي روژه يې وه منع وکړه له دوا څخه نه دی گناه کاره، ولي چي دا خو يقين نه دی چي په دغه دوا به زه جوړېږم ولي چي ښايي بې علاجه دی جوړ سي.

**پوه سه**: چي بعض مفسران وايي چي خدای ﷻ غفور رحيم ووايه، پوه فائده خو يې داده چي خدای پاک عفوه د خوړلو د محرم ورته کوي. او بله فائده يې داده چي هغه سړی چي د مخمصې په لوږه مبتلاء وي ښايي چي تجاوز په ځني وسي تر حده د رخصت بلا اختيار. نو خدای ﷻ هغه هم بخښي.

**مسئله**: خوراک د محرماتو هلته روا دی په حال کي د مخمصې چي دفعه د غايت لوږي په نباتاتو د ځمکي يعني نباتات ماکوله لکه سبزي چي پالک يې هم

بولي، يا بشكي يا جانبو وغيرها پر مخكه نه وه موجود لكه د ژمي په وخت كي.
او كه هغه وه او د لوږي دفع په هغه سره كېداى سواى. بيا نو د محرماتو خوراك
روا نه دى فافهم هذه الدقيقة هداك الله تعالى.

**تائيد**: په صحيح حديث كي راغلي دي چي بعض صحابه كرام رضي الله عنهم وايي چي
موږ د عليه الصلوة والسلام سره په بعضي سفرو كي ملګري وو. وما لنا طعام الا
ورق الحبلة چي د يوې درختي نوم دى حتى ليضع احدنا كما يضع الشاة حتى تر
دې اندازې پورې چي يوه زموږ يعني هر يوه چي به چكر وواهه له نسه به يې
داسي چكر راوتى لكه د پسه يعني پوچي مالها خلط هيڅ خلط به نه و ورسره
يعني فقط پوچي وارو چكرو.

**درويش وايي**: چي ددې حديث په رڼا كي دا معلومه سوه چي په نباتاتو او د
درختو په بلګو هم ژوند كېږي. نو دا د هغې مسئلې تائيد سو چي كه چېري دا
نباتات يا بلګونه د درختو پيدا كړي، نو د محرماتو خوراك نه دى روا. ولي چي
مقصود له رخصت څخه د اكل المحرمات خو بقاء د حيوٰة ده وقد حصل بقاء
الحيوٰة بغير المحرمات.

**يوه سه**: چي په حديث كي د ابي رافع چي روايت يې بيهقي او طبراني او حاكم
كړى دى چي يو وخت جبرائيل عليه السلام اجازه د دخول له عليه الصلوة والسلام څخه
وغوښتل، نو عليه الصلوة والسلام اجازه وركړه لكن جبرائيل عليه السلام داخل نه سو
او ځنډ يې وكړى، عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي ما خو اجازه دركړه ته ولي
نه راغلې؟ جبرائيل عليه السلام ورته وويل هو! ته خو اجازه راكړه لكن موږ نه ورځو
هغه خوني ته چي په هغې كي يا صورت وي يعني بت وي او يا سپى وي. عليه
الصلوة والسلام چي وكتل د سر مبارك سره يې د سپي كوچنى كوترى پروت و
هغه يې وه ايستى، نو جبرائيل عليه السلام ور داخل سو. نو عليه الصلوة والسلام ابو
رافع امر كړى چي په مدينه منوره كي هيڅ سپى مه پرېږده مګ قتل كړه يې. نو
عليه الصلوة والسلام ته بعض خلګ راغله فقالوا يا رسول الله ﷺ ماذا يحل من
هذه الامة يعني سپى التي امرت بقتلها منزلت.

يَسْـَٔلُونَكَ مَاذَآ أُحِلَّ لَهُمْ ۖ قُلْ أُحِلَّ لَكُمُ ٱلطَّيِّبَٰتُ ۙ

دوی سوال کوي له تا څخه چي موږ ته څه شی حلال کړه سوی دی؟ ته ورته ووایه چي تاسي ته حلال کړه سوي دي طيبات.

**پوه سه:** چي مراد له طيباتو څخه هغه دي چي طباع سليمه يې خوښ لري او نفرت نه ځني کوي. والطيب في اللغة المستلذ المشتهي قال الامام الرازي والعبرة في الاستلذاذ باهل المروة والاخلاق الحميدة الجليلة فان اهل البادية يستطبون اكل جميع الحيوانات انتهى.

**پوه سه:** چي لفظ د "طيبات" چي ضد دی د خبائثو مجمل دی. احاديث نبويه وو بيان د طيباتو او د خبائثو کړی دی. بيا علماؤ د مذاهبو پر هغو نور قياس کړي دي چي د مواردو سره د مشابه وي.

**قانون کلي:** هغه حيوان يا بل شی چي نص پکښي راغلی وي چي حلال دی هغه طيب دی. او چي نص پکښي راغلی وي چي دا حرام دی هغه خبيث دی. او هغه حيوانات چي په هغو کي نص راغلی وي او خبيث فاسق يې بللی وي فهو خبيث حرام مثلاً. روی البخاري ومسلم عن ابن عمر ﷺ عن النبي ﷺ پنځه شيان يعني له حيواناتو څخه گناه نسته پر هغه چاچي په حرم کي يې مړه کړي او په احرام کي وي (۱) موږک (۲) کارگه "کاغی" (۳) تپوس (۴) لړم (۵) خروړی سپی.

وعن عائشة ﷺ عن النبي ﷺ قال خمس فواسق يقتلن في الحل والحرم الحية (مار) والغراب (کارگه) والفارة (موږک) والکلب العقور (خروړی سپی) وفي رواية الحدياة بدل الغراب. او له ابن مسعود ﷺ څخه روايت دی "اقتلوا الحيات کلهن فمن خاف تارهن" وژنئ تاسي ماران ټول له اقسام، که څوک وبيرېږي له کسات څخه ددوی يعني چي دا به بيا ما مر کړي "فليس مني" هغه زما له ډلي څخه نه دی رواه ابو داؤد والنسائي. او هغه شيان چي نص نه وي پکښي راغلی هغه پر نورو قياسوي. يا پر طيباتو باستطابة الطبائع السلمية من العرب. واما علي الخبائث بسبب استقذاره الطبائع السليمة من العرب.

**تفریع**: اصحاب کرامو ﷺ د هغه حیوان خوراک د پر بد گڼي چي مرداري خوري کما اخرجه ابن شیبة من طریق الحسن، نو ددې حدیث په رڼا کي جمهور علماء وايي لایؤکل من الدواب والطیور مایاکل الجیف" نه دی روا خوراک د هغو حیواناتو او مرغانو چي مرداري خوري، نو نه دي حرامي د ملاچرګک او د طاؤس غوښي په نیز د ائمه ثلاثه خلافاً للشافعي رحمه الله.

**فائده**: هر حیوان له درندګانو چي ذاناب وي یعني په داړو حیوان ښیري لکه زمری، لېوه، پړانګ، یږ، سپی، پشي او یا ذی مخلب وي له مرغانو څخه یعني په نوکانو ښی ښیري لکه څرخک، باز ټپوس او یا مثل ددوی، نو خوراک يې حرام دی په نیز د ائمه ثلاثه وو. امام مالک رحمه الله وايي چي خوراک يې مکروه دی حرام نه دی.

**پوه سه**: چي حرمت د غیر مذکوره شیانو چي په قرآن مجید کي نه دی ثابت سوی، نو د هغو حرمت په احادیثو شریفه وو سره ثابت دی چي امت دا احادیث قبول کړي دي، عن ابن عباس ﷺ قال نهی رسول الله ﷺ عن کل ذی ناب من السبع وذی مخلب من الطیر، رواه مسلم. وعن جابر ﷺ عن النبي ﷺ نهی عن اکل الهرة واکل ثمنها" رواه ابو داؤد والترمذي.

**مسئله**: د کاره، ګیدړي او چغال غوښي حرامي دي په نیز د ابي حنیفه رحمه الله، او امام مالک رحمه الله وايي چي دا حرامي نه دي خلافاً للشافعي واحمد. صاحب هدایه وايي هما ای الضبع والثعلب وفي الکفایة لهما ناپان یقاتلان بانیابها. دوی داړي لري او په داړو جنګ کوي. فلا یؤکل کالذئب نو ددوی غوښي نه خوړل کېږي لکه د لېوه.

**پوه سه**: چي احادیث په باره کي د خوراک د کاره د غوښو متعارض راغلي دي لکن په قانون د اصول الفقه چي ترجیح محرم لره ده پر مبیح احتیاطاً.

**مسئله**: د حشرات الارض لکه موږک، کربوړی وغیرهما حرام دی په نیز د ائمه ثلاثه وو، او امام وايي مکروه دی حرام نه دی.

**مسئله**: د شکاڼه غوښي حلالي دي په نیز د امام مالک او شافعي، او امام اعظم رحمه الله يې حرامي بولي. له بو هریره ﷺ څخه روایت دی چي د شکاڼه ذکر وسو په نیز د علیه الصلوة والسلام فقال خبیثة من الخبائث.

**مسئله**: د سمساري او كربوري غوښې حرامې دي په نيز د ابو حنيفه رحمه الله وعند مالك والشافعي هما حلالان.

**درويش وايي**: چې په باره كې د اكل لحم الضب چې امام شافعي او امام مالك حلال بولي، مظهري هغه حديث د ابن عمر رضي الله عنه راوړى قال قال رسول الله ﷺ الضب لست اكله ولا احرمه، د ضب غوښې نه زه خورم او نه يې حرامې بولم، متفق عليه، وعن ابن عباس رضي الله عنه ان خالداً بن وليد اخبره چې زه داخل سوم سره د رسول الله ﷺ على ميمونة رضي الله عنها، او دا زما خاله ده او د ابن عباس رضي الله عنه هم خاله ده، فوجدها ضباً محنوذاً، نو نه ؤ ليدلى عليه الصلوة والسلام ضب چې پوخ كړى يې و، نو ميمونې رضي الله عنها ضب و عليه الصلوة والسلام ته پېش كړى، نو عليه الصلوة والسلام چې لاس ور وغځاوه ده چې ويل غوښې دي، نو يو چا وويل چې عليه الصلوة والسلام خبر كړئ چې دا څه شى دى، فقيل هي ضب فرفع رسول الله ﷺ يده عن الضب، نو عليه الصلوة والسلام بيرته له ضبه څخه لاس پورته كړى، نو خالد رضي الله عنه وويل "احرام الضب؟" آيا حرام دى د ضب د غوښو خوراك؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل "لا ولكن لم يكن بارض قومي فاجدني اعافه" يا حرام خو نه دى لكن زما د قوم په مځكه كې نه و، نو له دې كبله زما بد ځني كيږي، خالد رضي الله عنه وايي چې ما ضب راكش كړى او خوړى مې عليه الصلوة والسلام راته كتل، نقل المظهري هذا الحديث ناقصاً يا مظهري ويلي دي وقال ابو حنيفة رحمه الله هو من الحشرات يعني حرام دى، مظهري وايي وهذا استدلال بمقابلة النص الصريح الصحيح يعني لا اعتبار لقول ابي حنيفة رحمه الله، وروسته مظهري ويلي دي وذكر في الهداية ان النبي ﷺ نهى عائشة رضي الله عنها حين سالته عن اكل الضب، مظهري وايي چې دا حديث زه نه پېژنم اشارة الى ضعفه.

**درويش وايي**: چې وروسته يو چا د مظهري رحمه الله چې رد د قول د هدايې بلكې د مذهب د امام اعظم سراج الامة ابو حنيفه رحمه الله يې كړى دى او حديث د عائشې رضي الله عنها يې هم ضعيف ګڼلى و، داسې ليكلي دي حديث عائشة رضي الله عنها اورده صاحب المشكوة في باب يحل اكله وما لا يحل اكله من حديث عبد الرحمن بن

شبل ﷺ نهی رسول الله ﷺ عن اکل لحوم الضب رواه ابو داؤد. وروسته هغه سرې د مظهري د کامی له کبله داسي لیکلي دي هکذا وجدت في اصل النسخة.

ع... لن یصلح العطار ماافسده الدهر" والله اعلم بحقیقة الحال.

**مسئله**: د ملخ خوراک روا دی که پخپله مړ سي او که یې څوک مړ کړي، او مالک رحمه الله وایي که په خپله مړ سو خوراک یې نه دی روا. والدلیل علی قولنا قوله علیه الصلوة والسلام "احل لنا میتتان" یعني دوه شیان چي پخپله مړه سي "ودمان" او دوه قسمه وینې "اما المیتتان فالجراد والحوت" ملخ او ماهي.

**پوه سه**: چي مراد له ماهي څخه خلاف الطافي دی یعني په اوبو کي مړ وي او اوبو پر سر را اخستی وي "واما الدمان فالکبد والطحالي" رواه الشافعي واحمد وابن ماجه.

**مسئله**: د اهلي خره د غوښو خوراک حرام دی، په دې سره احتراز دی له گوره خره څخه چي پر شکل د خره دی او غرنی پسه دی، او حرام دی خوراک د غاتري د غوښو عند الائمة الثلاثة. امام مالک رحمه الله وایي چي خوراک یې مکروه دی حرام نه دی، زموږ دلیل دادی چي په حدیث کي د ثعلبه رضی الله عنه راغلي دي "حرم رسول الله ﷺ یوم خیبر لحوم الحمر الانسیة ولحوم البغال وکل ذی ناب من السباع وکل ذی مخلب من الطیور" رواه الترمذي. وعن جابر رضی الله عنه انه ﷺ نهی عن لحوم الاهلیة واذن في الخیل، متفق علیه. وعن جابر رضی الله عنه اطعمنا رسول الله ﷺ لحوم الخیل ونهانا عن لحوم الحمر" رواه الترمذي والنسائي.

**مسئله**: د آسانو د غوښو خوراک حلال دی په نیز د جمهورو، وبه قال ابو یوسف ومحمد. وقال ابو حنیفة ومالک رحمهم الله چي د آسانو د غوښو خوراک مکروه دی، او د امام اعظم رحمه الله په مذهب کي اختلاف دی، بعض وایي خوراک یې مکروه تحریمي دی، او بعض وایي مکروه تنزیهي دی، صاحب الهدایة وایي چي اول یعني کراهة التحریم اصح دی، د جمهورو دلیل خو هغه دی چي تېر سو من حدیث جابر رضی الله عنه انه علیه الصلوة والسلام اذن في لحوم الخیل، او بل په حدیث کي د اسماء رضی الله عنها راغلي دي چي موږ ذبح کړی په وخت کي د رسول الله ﷺ آس "فاکلنا

منه ونحن بالمدینة" متفق علیه، امام اعظم رحمه الله وایي چي خدای جل جلاله په قرآن کریم کي وایي "والخیل والبغال والحمیر لترکبوها وزینة" امام اعظم رحمه الله وایي چي دا خو په ځای کي د امتنان پر مورږ خدای پاک ویلی، نو که یې غوښې حلالې وای، نو اکل د غوښو خو لوی امتنان دی تر رکوب او زینت، نو حکیم خدای خو داسې نه کوي چي امتنان بالاعلی یعني اکل دي پرېږدي او امتنان بالادنی دي وکړي.

**درویش وایي**: چي امام مظهري رحمه الله په دې ځای کي هم له مذهبه د امام اعظم رحمه الله یعني مختاره یې مذهب د جمهورو دی یعني حل اکل لحوم الخیل لکه چي یاران او شاګردان د امام اعظم رحمه الله یعني ابو یوسف او امام محمد هم دي دوی لحل الخیل د حل قائله دي.

**مسئله**: پوه سه! چي "جلالة" هغه چرګه یا چرګ یا اوښ یا غوا یا پسه که جنس نر وي او که ښځه چي وخپل سر ته ایله وي، او مرداري یعني خپل غول یا د بل غول خوري، نو په نېز د ابو حنیفه، امام شافعي او د امام مالک دد غو شیانو د هګیو او د شیدو خوړل مکروه تحریمي دی که یې بد بویي د غولو په شیدو یا په غوښو یا په هګیو کي محسوسه کېدل، او هغه دي بندي کړي په داسي ځای کي چي مردارېو ته یې خوله نه رسېږي وعلی هذا فقس جنس البقر والغنم والابل تر هغه وخته چي د نجاست بوی یې له شیدو یا د غوښو یا له هګیو څخه محوه کېږي، یعني ائمه وو د بند مده نه ده ورته ټاکلې، او د امام احمد په نېز د حبس مده که د مرغه له جنسه وي لکه چرګ درې ورځې ده، او که د اوښ له جنسه وڅلوېښت ورځې ده، او که د بقر له جنسه وي د دېرش ورځي ده، که د پسه له جنسه و اووه ورځي ده، او په یوه روایت کي د احمد رحمه الله ټول له اجناس دي درې ورځي بندي کړي.

والدلیل علی الحبس علی اختلاف المذاهب هغه حدیث دی چي مروي دی له ابن عباس رضي الله عنه څخه "نهی رسول الله عن لبن الشاة الجلالة" رواه احمد، وعن ابن عمر رضي الله عنه قال نهی رسول الله صلی الله علیه وسلم عن اکل الجلالة ای اکل لحمها والبانها" رواه ابو داؤد والترمذي وابن ماجه، وعن عبدالله بن عمرو رضي الله عنه قال نهی رسول الله صلی الله علیه وسلم عن الابل الجلالة ان یؤکل لحمها ولا یشرب لبنها ولا یرکبها الناس حتی یعلفها

اربعين" يعني د مرداريو له خوراک څخه دي يې په وښو سره څلوېښت ورځې منع کوي، رواه البيهقي والدار قطني لكن هذا الحديث ضعيف ضعفه ابن الجوزي لان في روايته اسماعيل وابوه وهما ضعيفان. لكن په ځاى كې د هغه حديث ضعيف حديث قوي سته، رواه احمد وابو داؤد والنسائي والحاكم عن عمر بن شعيب عن ابيه عن جده ولفظه نهى رسول الله ﷺ عن اكل الجلالة وعن ركوبها.

**مسئله**: له حيواناتو څخه د درياب ټول له حرام دي الا السمک په نيز د ابو حنيفه رحمه الله. او د امام مالک رحمه الله په نيز د ټولو خوراک حلال دی حتى چونګاښ او چونګوښه او د ابو سپي او چې حيوان بحري پر شکل د خنزير وي، امام مالک توقف کړی دی.

**درويش وايي**: چې په حيوانات البحر کې اختلاف ډېر دی لکن دا خبره د اورېدلو وړ ده چې په حديث شريف کې راغلې دي چې بخاري او مسلم يې روايت کړی دی له جابر بن عبد الله رضي الله عنه "غزوت جيش الخبط وامر علينا ابو عبيدة رضي الله عنه" نو موږ وږي سو "وجوعاً شديداً فالقى البحر حوتاً لم نر مثله يقال العنبر" نو موږ پنځلس ورځې د هغه عنبر غوښې ټوله لښکر خوړلې تر مړتيا پورې. نو امير الفوج ابو عبيدة رضي الله عنه يوه پوښتنې له پښتيو څخه د عنبر و ودروله پر اوښ سپور سړی لاندې تر تېر سو، موږ چې بېرته مدينې منورې ته راغلو عليه الصلوة والسلام ته مو دا قصه وکړه، نو عليه الصلوة والسلام راته وويل "خورئ دا يو رزق له درياب څخه خداى پاک درکړی دی، او که د هغه ماهي غوښې درسره وي موږ ته يې هم راكړئ چې وه يې خورو، نو زموږ سره څه غوښې وې هغه مو عليه الصلوة والسلام ته ورکړې او ده مبارک هم وخوړلې.

**سوال**: حنيفيان خو وايي چې د درياب له حيواناتو پرته له ماهي بل شی نه دی حلال؟

**ځواب**: دا خو هم ماهي و، كما يدل عليه لفظ الحديث حيث قال الروای فالقى البحر حوتا صرف دا قدر دی چې دومره غټ ماهي ته دوی عنبر ووايه ولا اعتبار للاسم بل المعتبر هو المسمى.

**پوښتنه**: د چونګوښې، چونګاښ، خوټکې او يا مثل د هغو چې طبع سليم نفرت

څني کوي د غوښو خوراک يې حلال دی که حرام. او که حرام وي دليل يې څه دی؟

**ځواب**: دليل يې دادی قوله تعالى "ويحرم عليهم الخبائث" او بل دليل د حرمت يې حديث د عبدالرحمن ﷺ دی چې يو طبيب له عليه الصلوة والسلام څخه پوښتنه وکړه د هغې دوا په باره کې چې يو جز، يې چونګوښه وي. عليه الصلوة والسلام نهي وکړه له قتل څخه د چونګوښي رواه احمد وابو داؤد والنسائي بيهقي رحمه الله وايي چې دا يو قوي دليل دی پر حرمت د چونګوښي د غوښو.

**مسئله**: د سوي غوښې چې په عربي يې ارنب بولي حلالې دي اجماعاً لحديث انس ﷺ دی وايي چې موږ ولاړ کړی له ځپله ځايه سوي په مر الظهران کې چې د يو ځای نوم دی، انس ﷺ وايي چې ما سوي ونيوی ابو طلحة ته مې راوړی هغه حلال کړی، او د هغه سوي يو ورون مو عليه الصلوة والسلام ته ورواستاوه. او عليه الصلوة والسلام هم قبول کړی متفق عليه. نو که حرام وای نو عليه الصلوة والسلام به نه قبولولای.

**درويش وايي**: چې موږ قبلاً وويل چې طافي يعني چې په اوبو کې د مخه مړ وي او اوبو پر سر را اخستی وي په نېز د امام ابو حنيفه رحمه الله مردار دی خوراک يې حرام دی، او جمهور علماء وايي چې طافي حلال دی، او دليل يې حديث د جابر ﷺ وايي چې دمخه تېر سو په عنبر کې. او بل په دې قول د عليه الصلوة والسلام د درياب په باره کې هو الحل ميته.

**والجواب**: ان معنى حديث جابر ﷺ ان البحر القت حوتاً ميتاً ان البحر القى حوتاً فماتت بالقائه وذالک حلال بالاتفاق، ومعنى الحديث المذکور هو الحل ميتة هغه ماهی حلال دی چې درياب يې راوغورځوي حتى موت يې و درياب ته مضاف سي وهو حلال اجماعاً لانه ليس من الطافي، دليل د امام اعظم رحمه الله په باره کې د طافي چې مردار دی هغه حديث دی د جابر ﷺ اذا طفا فلا تاکله که اوبو پر سر را اخستی و ماهی نو يې مه خوره، واذا جزر عنه المار فکله. يعني که ماهی په اوبو کې د درياب غاړې ته راغلی او بيا اوبه څني ولاړې او دی مړ سو هغه خوره، وماکان على حافية فکله او که د درياب پر غاړه ژوندی و او بيا مړ سي هغه

خوره، رواه الدار قطني.

**فائده:** علیه الصلوة والسلام د چرگ غوښې خوړلې دي متفق علیه عن ابي موسی رضي الله عنه.

**فائده:** سفینه رضي الله عنه چي د علیه الصلوة والسلام مریی و، وایي چي ما د علیه الصلوة والسلام د ځاري غوښي خوړلي دي چي یو مرغه دی او په عربي یې حباري بولي.

**مسئله:** د رغم د غوښو خوراک مکروه دی، دا یو مردار خور مرغه دی چي په فارسي کي هغه ته کرگس وایي او په پښتو یې شیین بولي، ولي چي دی مرداري خوري، او هغه کمر (ابلک) کارگه چي هغه هم مرداري خوري خوراک یې مکروه دی، او داغه رنگه تور کارگه او بانښه ولي چي دوی هم مرداري خوري وکذا کل مایؤکل الجیف، او د کښت د کارگه غوښي پاکي دي، ولي چي دوی خو د کښت داني خوري مردار شیان نه خوري او د درندگانو څخه د مرغانو هم نه دي، او د عقعق غوښي چي په پښتو یې گیړکه بولي حلالي دي، ولي چي دا هم داني خوري او هم مرداري نو په مثال د چرگ ده، او امام ابو یوسف رحمه الله یې مکروه بولي، ولي چي غالب خوراک ددوی مرداري ده.

**مسئله:** د بغات د غوښو خوراک هم مکروه دی، دا یو مرغه دی سپیره رنگ یې دی کذا في المنتخب، او مرداري خوري.

**تمهید:** درویش وایي چي قبلاً په شان نزول کي د هغه "ویسئلونک" تېره سوه چي جبرائیل علیه السلام د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اجازه وغوښتل او علیه الصلوة والسلام اجازه هم ورکړه، لکن جبرائیل علیه السلام کورته نه ورغلی، نو علیه الصلوة والسلام پسي راووتی چي ما اجازه درکړه ته ولي نه راځې؟ جبرائیل علیه السلام وویل چي موږ هغه کورته نه ورځو چي په هغه کي سپی یا صورت یعني بت وي الی اخیر المبحث المذکور، نو ددې په رڼا کي موږ غواړو چي مسائل د سپو د ساتني او د بتانو اېښوولو په کورو کي چي مانع له دخول څخه د ملکو گرځي وڅېړو.

**مسئله:** بعض خلگ خصوصاً پښتانه بعضې سپي ساتي او ښه لذیذ خوراک

ورکوي لپاره د جنګ د ورته سپي سره . يا د قمار پر شکل او يا د نامه لپاره، نو ددا سي سپو ساتنه خو په کورو کي قطعاً حرامه ده او مانع ده له دخول څخه د ملکو د رحمت، په حديث شريف کي روايت يې بخاي کړی دی چي عليه الصلوة والسلام چي د سپو د قتل امر وکړی صرف د درو قسمو سپو اجازه يې وکړه (۱) کلب الصيد" چي ښکار په کوي لکه تازيان يا نور ورته سپيان د ښکار کما سيجئ في القرآن الکريم (۲) هغه سپی چي د کښت د ساتني لپاره وي له غلو يا له نورو درندګانو څخه (۳) الکلب لماشية" يعني هغه سپی چي څوک مالداري پسونه بزي وغيره لري نو له لېوانو څخه يې په سپي ساتي، او علماؤ پر دې قياس کړی دی چي يو سړی غني وي سره او سپين زر ډېر لري او بې کسبه وي. نو له غلو څخه يې پرې سپی په کور کي ودروي.

**مسئله**: بعض خلګ په کور کي خوړی سپی ساتي د کور د ساتني لپاره نه بلکې د خلګو د ازارولو لپاره، نو د هغه سپي ساتنه هم حرامه ده چي په حديث کي تېره سوه والکلب العقور. او په بعضو کورو کي لوی لکي سپيان وي چي هيڅ فائده نه وي پکښي هغه مانع د د خول د ملائکه وو د رحمت دي. بايد دا سپي هم مسلمانان قتل کړي لانه قد مر قبل ذالک ان رسول الله ﷺ امر بقتل الکلاب.

**درويش وايي**: چي دا و يو لړ بيان په باره کي د سپو د ساتني اوس د بتانو پر لور، په اوسني دور کي خلګو له مسالو څخه مجسمه بتان جوړ کړي دي حتی چي مکمل بت سترګي، لاسونه، پښې او په بعضو يې کالي لاهم اغوستي وي. نو خلګ ورځي دا قسم قسم بتان رانيسي او په کورو کي يې پر يو لوړ ځای ايښي وي لپاره د زينت يا د کوچنيانو د ساتېري لپاره، نو داسي بتان هم مانع دي له دخول څخه د ملکو د رحمت ددا سي بتانو جوړول حرام دی او د داسي بتانو راتيول حرام دی. او ثمن يې حرام دی بالاجماع، او بعض په الان له ډېرو څخه د زمری يا بل حيوان مجسمه جوړه کړي او په کور يا په سرای چه کي يې د زينت او د تکبر لپاره ايښي وي وهذا حرام.

**درويش وايي**: چي زما غرض موعظت و ومسلمانانو ورونو ته که څوک عمل

په وکړي دده لپاره به خیر وي.

## وَمَا عَلَّمْتُم مِّنَ الْجَوَارِحِ

او هغه تاسي ته روا دی چي تاسي تعلیم د ښکار ورته کړی وي له ښکاري درندګانو څخه.

**پوه سه:** چي جمله د "احل لکم الطیبات" چي دمخه ذکر سوه زائده ده پر مسئول عنه، ولي اصل سوال خو له علیه الصلوة والسلام څخه په باره کي د سپو و، نو خدای ﷻ امتناناً علی العباد جمله د "احل لکم الطیبات" ذکر کړه او اصل مقصود دا اوسنی جمله ده.

**اعراب:** "ماعلمتم" عطف دی پر "طیبات" باندي. ولي چي ما موصوله وي والعائد محذوف، والتقدیر "احل لکم صید ما علمتموه" او من الجوارح" بیان دی د ما موصوله.

**پوه سه:** چي "جوارح" جمع د جارحة ده په معنی د کاسبة کما یقال فلان جارحة اهله ای کاسبهم. ولهذا ایضاً یقال لاعضاء الانسان جوارح لانها کاسبة وهذه السباع علی ماسنذکرها ایضاً کاسبة خپل مالکانو ته د ښکار.

**فائده:** مراد له جوارحو څخه سباع البهائم والطیر دي فمن السباع چي تعلیم د ښکار ورکولای سي سپی، پړ، پړانګ وغیرها. او له مرغانو څخه باز، څرخک، شیین وغیرها. او "جارحة" مشتق دی له جراحت څخه. ولي چي دغه ښکاري حیوانات ښکار ټپي کوي. او پر دې تاویل بناء ابو حنیفه، احمد او اکثره علماء مجتهدین رحمهم الله وایي چي په صید کي جرح او ټپي کول ضروري دی. نو که کلب وغیره ښکار ونیسي بیله جرح یعني یا یې ووهي مړ یې کړي او یا یې تر ستوني ونیسي مړ یې کړي نو خوراک یې نه دی روا. او امام شافعي رحمه الله وایي چي جرح یې نه ده شرط بیله جرح هم حلال دی. نظراً الی التاویل الاول ای التاویل بکاسبة. صاحب هدایه وایي چي ددې دوو تاویلاتو منافات نسته ووجه الجمع بینهما الاخذ بالیقین ده وهو الجرح. او په کفایه شرح هدایه کي وایي که په نهي کي اختلاف د معاني و، نو که یې منافات و، نو په یوه تاویل به اخستل کوي.

بدليل موجب لترجيحه. او كه يې منافات نه وي، يثبت ما هو متيقن كالجرح ته قاله فخر الاسلام د ابو حنيفه رحمه الله پر اشتراط د جرح دا دليل دى چې په حيوان كې چاره نسته لـه حلالېدلو څخه. وفي الصيد وان لم يمكن الزكوٰة الاختياري فالادنى وهو الزكوٰة الاضطراري لابد منه وهو يحصل بالجرح ليخرج الدم.

**مسئله**: كه ښكاري سپي ښكار وواهه او پوښته يې ور ماته كړه دننه مثلاً ، په يوه روايت كې د امام اعظم رحمه الله راغلي دي چې خوراک يې روا دى لانـه جراحة باطنة فكانت كالجراحة الظاهرة لكن صحيح مذهب د امام رحمه الله دادى چې دا مردار دى نه خوړل كېږي. ولې چې اعتبار هغه جرح لره دى چې سبب د وتلو د وينې وګرځي او په كسر العضو سره خو وينې نه راوځي. نو دا داسې دى لكه چې خفه يې كړي، قال رسول الله ﷺ "ماانهر الدم وذكر اسم الله فكل" هغه زخم د سپي مثلاً چې وينه وه بيوي او نوم د خداى جل جلاله يعني په وخت كې د ايله كېدلو د سپي پر ويل سوى وي هغه خوره.

**مسئله**: چې په غشي ښكار وولي جرح يې شرط ده اجماعاً لحديث عدي بن حاتم رضي الله عنه چې ما د عليه الصلوٰة والسلام څخه پوښتنه وكړه "انا نرمي بالمعراض" يعني چې سر يې تېره وي او نور پسور وي يعني تېره نه وي. نو عليـه الصلوٰة والسلام راته وويل "ماخرق" يعني ښكار يې څيري كړى، يعني د هغـه تېره سر پر ومښتى چې په نښوتى هغه خوره او كه په پساره په صيد كې ومښتـى او ښكار يې مړ كړى هغه مردار دى فلا تاكل متفق عليه.

**درويش وايي**: چې سبب د عدم اكل د شق ثاني چې ښكار يې په ثقل وژلى دى لكه سړى چې ښكار په ډبره وولي مړ يې كړي هغه مردار دى.

**مسئله**: ښكار كول په هر جارح د سباعو او د مرغانو روا دى او امام ابو يوسف زمرى او لېوه څني مستثنى كړي دي، ولې چې دوه سباع د بل لپاره كار نه كوي زمرى په سبب د لوړ همت د بل لپاره كار نه كوي، او لېوه د خساسة الطبع لـه سببه د بل لپاره كار نه كوي، والحق بهما بعض الفقهاء، تپوس لخساسة الطبع او سر كوزى مستثنى دى اجماعاً لانه نجس العين لايجوز الانتفاع به بوجه من الوجوه.

**فائده**: عن جابر ﷺ چي موږ خو اولاً عليه الصلوة والسلام امر کړو په قتل سره د سپو ثم نهي عن قتلها رواه مسلم. يعني که څه هم ملکي د رحمت خو هغه کور ته نه ورځي چي سپي پکښي وي کمامر.

## مُكَلِّبِينَ

"مكلبين" حال دی له ضمير مرفوع څخه في علمتم"

**پوښتنه**: د مکلبين معنی خو هم تعليم دی د سپي. نو وروسته تر علمتم و مکلبين ته څه ضرورت و؟

**ځواب**: مقصود له "مکلبين" څخه مبالغه ده په تعليم کي او په ښکارلو کي وښکار ته.

**پوهه**: چي مکلب هغه سړي ته وايي چي سپي ښکاري وښکار ته او تعليم او ادب ورکوي، دا مشتق دی له کلب څخه.

**سوال**: دمخه تېره سوه چي ښکار د صيد حصر په سپي نه دی بلکي يې وغيره هم په ښکار خلگ اموخته کوي، نو تخصيص د کلب يې ولي وکړی؟

**ځواب**: عموماً او اکثره تعليم د سپو دی پر ښکار باندي بخلاف سائر السبع ممامر او په سپي کي تاديب او تعليم ډېر دی تر نورو حيواناتو او آسان دی. او بل ځواب دادی چي مراد له کلبه يوازي سپی نه دی بلکي هر درنده ته کلب وايي. في القاموس الکلب، کل سبع عقور" نو کلب هغه نورو درندگانو ښکاريانو ته هم شامل دی. يؤيد ذالک ماورد في الحديث چي عتبه بن ابي لهب به هېشه و عليه الصلوة والسلام ته ښکنځل کول نو عليه الصلوة والسلام ښېرا ورته وکړه په دغو الفاظو "اللهم صلط عليه کلباً من کلابک" نو عتبه مذکوره په يوې قافلي کي د قريشو د شام پر خوا روان و، نو پر يو ځای يې وارول، نو عتبه خپلو ملگرو ته وويل چي زه ډېر ډېږم له ښېرا څخه د محمد. نو دده ملگرو به پر ده باندي شا وخوا د قافلي جولونه راگرځول او پر هغو جولو به دوی کښېنستل دده د حفاظت لپاره. نو په شپه کي يو زمري راغلی عتبه يې ددوی له منځه پورته کړی يو يې وړی. اخرج هذا الحديث الحاکم في المستدرک وقال صحيح الاسناد.

**درویش وايي:** چې تعجب دی د کفارو د قریشو وزرونو ته چې عتبه مذکور سره د دومرې ښېرې له ښېرا څخه د علیه الصلوة والسلام ایمان یې نه پر راوړی، او د عتبه ملګري هم د علیه الصلوة والسلام له ښېرا څخه دومره بېرېدل چې پر عتبه به یې پهیره کوله، او بیا یې هم علیه الصلوة والسلام په نبوت نه پېژندی، نو بیا چې زمری راغلی او عتبه یې ددوی له منځه پورته کړی، نو دې معجزې د علیه الصلوة والسلام پر دغو ملګرو د عتبه باید دا تاثیر کړی وای چې ایمان یې راوړی وای. فحقق القول من یضلل الله فلا هادي اللهم اهدني بهدایتک الی صراط مستقیم من المعتقدات والعملیات بحرمة صاحب المعجزات محمد المصطفی ﷺ آمین. في لیلة الخمیس قریب وقت الصبح ۱۲ شوال سنه ۱۴۲۷ هـ.

## تُعَلِّمُونَهُنَّ مِمَّا عَلَّمَكُمُ اللَّهُ

چې تاسي به تعلیم کوئ ودغو جوارحو ته یعني ښکاري حیواناتو ته له هغه علم څخه چې وتاسي ته خدای ﷻ درښوولی دی یعني علم تادیب الکلب للصید.

**پوه سه:** چې نسبت ددې تعلیم خدای پاک وځان ته وکړی لان الاجماع منعقد علی ان العلوم کلها تصوریة کانت او تصدیقیة، بدهیة او نظریة الهام او ښوونه یې د خدای له خوا ده او عقل وفکر صرف اسباب عادیه دي بلکې علم پر نتیجه وروسته ترتیب د مقدماتو د قیاس پر صحیح وجه هم له جانبه څخه د خدای ﷻ دی علی مقتضی جری عادته تعالی بذالک.

**علامات:** سپی یا بل سبع هلته تعلیم یافته ګڼل کېږي چې په خپله په ښکار پسي نه ځغلي بلکې په شکارلو سره د مالک ځغلي، او که یې مالک وروسته تر شکارلو را وبولي راګرځي. او بله علامه یې داده چې ښکار چې وکړي خوراک نه ځني کوي. البته که یې له ښکار څخه څښېدلې وینه څټلې وي پروانه لري، او سپی وغیره هلته معلم ګڼل کېږي چې درې واره دا موضوع پر تکرار سي.

**درویش وايي:** چې عجیبه خو داده چې حیوان فرمانبرداره ګرځي او کفار د مکې په مکررو تعلیماتو سره د علیه الصلوة والسلام تعلیم یافته نه سوه چې ایمان یې راوړی وای.

# فَكُلُوا مِمَّا أَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ

نو تاسي خوراک کوئ له هغو ښکارو څخه چې دې جوارحو ساتلې وي ستاسي لپاره یعنې خوراک یې نه وي څنې کړی. او ددې تفسیر دلیل حدیث د عدي بن حاتم رضي الله عنه دی چې دی وایي چې ماته علیه الصلوٰة والسلام وویل چې ته سپی په ښکار پسې ایله کوې نو د خدای ﷻ نوم ذکر کړه والمتعارف بسم الله الله اکبر. یعنې په وخت کې د ارسال. نو که سپي ښکار وهلی وي چې ته ورورسېدلې ښکار ژوندی و، نو یې ذبح کړه او که سپي وژلی و او خوراک یې نه وي څنې کړی نو هغه ښکار خوره. او که سپي خوراک څنې کړی و، نو یې مه خوره. ولې چې سپي د ځان لپاره دا ښکار کړی دی ستا لپاره یې نه دی کړی تر پایه د حدیث چې اوږد دی متفق علیه. او په یو روایت کې داسي راغلي دي ماعلمت من کلب او باز ثم ذکرت اسم الله علیه فکل الی اخیر الحدیث مثل مامر.

**فائده**: دا آیت په دغه تفسیر چې له حدیث څخه د عدي رضي الله عنه وفهمېدی دلیل دی د ابو حنیفه، احمد او شافعي رحمهم الله تعالی وهو ان الکلب اذا اکل من الصید لایباح اکله. بغوي رحمه الله وایي چې همدغه مذهب دی د ابن عباس رضي الله عنه وهو قول عطاء والثوري وابن المبارک رحمهم الله. او امام مالک رحمه الله وایي لاباس باکل الکلب من صید ویحل اکله" او یو ضیف قول د امام شافعي رحمه الله هم دی. بغوي وایي وهو المروي عن ابن عمر وسلمان الفارسي وسعد بن ابي وقاص رضي الله عنهم.

**مسئله**: شرط والی د عدم الاکل لکه په سباع کې چې دی په سباع الطیور کې هم عدم الاکل شرط دی. او امام اعظم رحمه الله وایي چې په سباع الطیور کې عدم الاکل شرط نه دی، ولې چې د طیور بدن برداشت نه سي کولای د ضرب پر اکل باندي بخلاف بدن الکلب لانه یحتمل الضرب علی الاکل.

**فائده**: د لفظ د "من" په مما کې چې اصل یې من ما و بیا نون په میم کې مدغم سو په قانون د زرادي وغیره، "من" تبعیضي دی، ولې تولَه اعضاء د ښکار خو نه خوړل کېږي لکه هډوکي، پوستوکي، ښکي او کلمې، او "ما" موصوله ده او عائد یې محذوف دی او کلمه د علی متعلق ده په "امسکن" پوري. فالتقدیر فکلوا

بعض ما امسكنه عليكم.

وَاذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهِ

او ذکر کوئ د خدای ﷻ.

**پوه سه:** چي ضمير د "عليه" راجع دی و "ماعلمتم" ته ای سموا عليه عند ارساله او يا ضمير و "ما امسكن" ته راجع دی ای سموا عليه اذا اذكرتم ذكوته.

فائده: په بعض حديثو کي ذکر د اسم الله داسي ښول سوی دی بسم الله والله اكبر، والمستحب ان يقول بسم الله الله اكبر بدون الواو لان ذكر الواو يقطع نور التسمية كما في شرح مختصر الوقاية.

**فائده:** په وخت کي د ذبح که د ښکار وي او که د پوسه وي ترک د توجه و قبلې ته يې مکروه دی لکن ذبيحه حلاله ده كذا في الذخيرة.

**مسئله:** متروک التسمية عمداً مردار دی بخلاف متروک التسمية نسياناً فانه حلال فان النسيان عذر من الاعذار كما في الصوم.

**مسئله:** في الاشباه والنظائر، الصيد مباح مگر نه د صرف ساتيري لپاره. كذا في البزازية.

وَاتَّقُوا اللّٰهَ ۚ إِنَّ اللّٰهَ سَرِيعُ الْحِسَابِ ④

او له خدای ﷻ څخه وبيرېږئ په تحقيق خدای پاک ژر دی حساب يې، تاسي ته حلال کړه سوي دي طيبات.

**پوه سه:** چي روح البيان او مظهري د "تقوى" معنا دلته په ترک د محرماتو کړې ده.

**درويش وايي:** چي دا تفسير په مقتضى د مقام دی لان الكلام في المحرمات والا فالتقوى يعم الاتيان بالفرائض والواجبات بل السنن والمستحبات وترک المنهيات ومعنى سريع الحساب انه تعالى سريع اتيان حسابه يعني في يوم القيامة لان ما يستقبل قريب وما مضى بعيد.

اَلْيَوْمَ اُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبٰتُ ؕ

**پوه سه:** چي د "طيبات" بيان او تفسير سره د تفصيله وړاندي تېر سو.

**پوښتنه:** طیبات" چي دمخه هم تېر سوه په قرآن کریم کي نو په بیا راګرځېدو کي یې څه حکمت دی؟

**ځواب:** ټوله مفسران وایي چي حکمت د د تکرار یې تاکید دی.

**پوه سه:** چي څه وخت چي آیت د کلب معلم نازل سو. نو علیه الصلوة والسلام اجازه وکړه د سپي د ساتني لکن هغه سپی چي فائده په اخستل کېږي. او نهي یې وکړه له ساتني څخه د داسي سپي چي فائده نه پر اخستل کېږي. او په حدیث شریف کي راغلي دي من اتخذ کلباً الا کلب ماشیة اوصید او زرع انتقص من اجره کل یوم قراط" په بل حدیث کي راغلي دي "لاتدخل الملائکة بیتاً فیه صورة ولاکلب"

**پوه سه:** چي مراد له ملکو څخه ملکي د رحمت او د استغفار دي چي مسلمانانو ته طلب د بخښني کوي او د برکت ملکي دي چي د مسلمانانو په کورو کي د زیارت او د ذکر او قرآن د اورېدلو لپاره د مسلمانانو کورو ته ورځي. او هرچه کرام کاتبین دي هغه خو له مکلف څخه نه جلاکېږي یو چشم زدن.

**درویش وایي:** چي پوره تفصیل د سپو په باره کي او د بتانو په باره کي چي په شکل د ذي روح وي دمخه موږ وکړی. نو هغه تفصیل ته دي رجوع وکړه سي.

## وَطَعَامُ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ حِلٌّ لَّكُمْ

او طعام د هغو کسانو چي دوی ته کتاب ورکړه سوی و. یعني الیهود والنصاری عام تر دي که ذبائح ددوی وي او که یې نور د کور خواړه وي حلال دي وتاسي ته.

له ابن عباس ﷺ څخه روایت دی چي د علیه الصلوة والسلام څخه سوال وسو د عربو د نصاری وو د ذبائح په باره کي فقال لاباس به وهو قول عامة التابعین وبه اخذ ابو حنیفه واصحابه وحکم الصائبین حکم د نصاری وو دی په نېز د امام اعظم او یاران وایي چي صائبین دوه قسمه دي یو قسم هغه دي چي کتاب یې زبور دی ویعبدون الملائکة. او بل قسم یې هیڅ کتاب نه وایي او عبادت د ستورو کوي نو دا دوهم قسم یې اهل کتاب نه دي. نو ذبیحه یې مرداره ده.

**مسئله:** مجوسیان یعني آتش پرستان ددوی طریقه د اهل کتابو په اخذ د جزیه دون اکل ذبائحهم ونکاح نسائهم لقوله علیه الصلوة والسلام "سنوابهم سنة اهل

الکتاب یعني في اخذ الجزیة منهم غیرناکحي نسائهم ولا آکلي ذبائحهم" مظهري رحمه الله وایي چي مراد له طعام څخه ددوی ذبائح دي.

**درویش وایي**: والتعمیم اولی کمامر ولعل المظهري خص بالذبائح لان الکلام في الذبائح دون سائر الاطعمة. والاول مختار صاحب روح البیان.

**یوه سه**: چي د ابن عباس رضي الله عنه قول روح البیان داسي نقل کړی دی چي ذبائح د نصاری وو د عربو "لاباس به" او مظهري د ابن جوزي چي د ابن عباس رضي الله عنه حدیث یې راوړی دی وایي چي علیه الصلوة والسلام نهي وکړې له ذبائحو څخه د نصاری وو د عربو.

**درویش وایي**: چي دواړه یعني حل د ذبیحه د نصاری وو د عربو لکه روح البیان چي وایي او د نهي او حرمت د ذبائحو د نصاری العرب لکه مظهري چي له ابن جوزي څخه نقل یې پر ابن عباس رضي الله عنه دی. نو والله واعلم بالصواب چي کوم یو به صحیح وي.

**مسئله**: صاحب الهدایة وایي "لایؤکل ذبیحة المرتد یعني من کان مسلماً ثم ارتد والعیاذ بالله فصار یهودیاً او نصرانیاً او مجوسیاً او وثنیاً لانه لاملة له لانه لایقر علی ما انتقل الیه یعني بل یقتل بخلاف الکتابي اذا انتقل الی غیر دینه لانه یقر علیه عندنا یعني لایقتل فیعتبر ماهو علیه عند الذبح یعني ان انتقل الیهودي الی النصرانیة او بالعکس اکل ذبیحته وصیده" او که یهودي یا نصراني مجوسي وګرځي نه ده روا یعني حلاله ده ذبیحه او صید دده. والحاصل انه یعتبر حاله عند الذبح والصید لاماقبله لانه یقر علی ما اعتقد عندنا یعني لایقتل، کذا في الکفایة شرح الهدایة.

**مسئله**: که یهودي پر نامه د عزیر علیه السلام شی ذبح کړی، او یا نصراني پر نامه د عیسی علیه السلام حیوان ذبح کړی زموږ په نیز مردار دی، په کفایه کې وایي چي ذبیحه د کتابي هلته حلاله ده چي په وخت کې د ذبیح نوم د غیر الله نه کړي ذکر مثل عزیر او عیسی. او که یې ذکر کړي بیا ذبیحه نه ده حلاله لکه مسلمانان چي په وخت کې د ذبح نوم د غیر الله ذکر کړي بنبیاً کان او ولیاً لقوله تعالی. وما اهل لغیر الله کمامر. نو د کتابي حال تر مسلمان بالا نه سي کېدای یعني که کتابي عزیر یا عیسی ذکر کړی ذبیحه دې حلاله وي او که مسلمان ذکر د غیر الله وکړی ذبیحه دې مرداره وي.

**درویش وایي:** چې په حلال والي د ذبیحه د یهودي او یا نصراني چې نوم د عزیر یا د عیسی په وخت کې د ذبح واخلي یا حرام والی د علماؤ د تابعینو خلاف دی، څوک یې حلاله بولي څوک یې مرداره بولي چې بغوي رحمه الله دا اختلاف ښودلی دی. والفتوی عند الحنیفیة پر دې ده چې که اهل کتاب یعنې یهودي یا نصراني حیوان ذبح کړي او په وخت کې د ذبح یې قصداً ذکر الله پرېښو او یا د عزیر یا د عیسی نوم یې واخستی هغه ذبیحه موږ ته نه ده حلاله. لکن هلته چې موږ ته یقیناً او یا په غالب الظن سره حال د کتابي معلوم وي چې ده تسمیه عمداً پرېښوله یا د عزیر یا د عیسی علیهما السلام نوم یې واخستی عند الذبح. او یا غالب حال ددوی دغسې وي.

**درویش وایي:** چې په اوسنی زمانه کې د یهودو او نصاری وو حال هیڅ نه دی معلوم چې دوی څرنګه ذبح کوي. او هر چا به اورېدلي وي چې په اوسنی زمانه کې یهود او نصاری بلکې د نړۍ ټوله کافران په ذریعه د مشین ډېر پسونه مثلاً یا چرګان په یوه وار ذبح کوي. نو ذکر د اسم الله چېرې دی. او بعض خلګ وای چې پر آله د ذبح د مشین اسم الله نوشته وي. نو په اسم الله حلال سول.

**درویش وایي:** چې ددې مثال داسې دی لکه یو مسلمان چې پر چاړه اسم الله نوشته کړی وي، او په وخت کې د ذبح په خوله بسم الله نه وایي. نو دا ذبیحه حلاله ده؟ کلا. حاصل د کلام دادی چې د درویش په عقیده په اوسنی زمانه کې له ذبائحو څخه د اهل کتابو احتراز کول اولی دی. البته که مسلمان ولاړ وي او یو یهودي یا نصراني په لاس یو حیوان ذبح کوي او په وخت کې د ذبح فقط الله اکبر ووایي د هغه خوراک و مسلمان ته حلال دی.

وَطَعَامُكُمْ حِلٌّ لَّهُمْ

او ستاسي طعام یعنې ذبیحه ودوی ته حلاله ده.

**پوښتنه:** ددې آیت څه مطلب دی چې ستاسي د مسلمانانو ذبائح ودوی ته حلالي دي؟

**ځواب:** زجاج رحمه الله په اجمالي عبارت او بیضاوي رحمه الله په مفصل عبارت ویلي دي چې ددې آیت معنا داده چې پر مسلمان ګناه نشته چې خپله ذبیحه په اهل

کتابو خوري او یا یې پر خرڅوي او که و اهل کتابو ته زموږ ذبیحه نه وای حلاله، نو خوړل یا خرڅول یې پر دوی باید نه وای روا، او بعض مفسران ددې آیت ترجمه داسي کوي چي که اهل کتاب ذبائح د مسلمانانو وخوري ودوی ته ددغه خوړلو عذاب نسته. البته د کفر عذاب ورته سته والله اعلم.

## وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ الْمُؤْمِنٰتِ

**پوه سه**: چي "والمحصنٰت" مبتداء ده خبر یې محذوف دی لدلالة ماتقدم علیه ای حل لکم ایضاً. او بعض مفسران وایي چي عطف دی پر "طیبات" باندي، والتقدیر "احل لکم المحصنٰت" د محصنات ترجمه بعض مفسران په حرائرو عفائفو سره کوي، یعني حره به وي زانیه به نه وي. لکن ددې دوو قیدو مطلب دادی چي مسلمانان باعثه وګرځي پر ماهو الاولی والاحری، او دا یې نه ده معنا چي ماسوا له دوی څخه نه دی روا. ولي چي د مینځیانو مسلمانانو نکاح خو هم روا ده بالاتفاق، او د زانیاتو نکاح هم روا ده. او مینځیاني چي کتابیاتي وي د هغو نکاح هم روا ده په نیز د ابي حنیفه خلافاً للشافعي، او بغوي رحمه الله وایي چي اکثره علماء پر دې دي چي مراد له "محصنٰت" څخه فقط حرائر دي، نو د آیت معنا دا ده چي نکاح د هري حُري ښځي که مسلمه وي او که کتابیه وي که فاجره وي او که عفیفه وي نکاح یې روا ده. وهذا قول مجاهد رحمه الله، اودغه کسان روا نه بولي نکاح د کتابیه مینځي. ولي خدای پاک داسي ویلي دي "من فتیاتکم المؤمنات" نو له دې آیت څخه دا معلومېږي چي نکاح د مینځي مقیده ده ددې په ایمان سره؟

الجواب من جانب الحنیفیة چي دوی روا بولي نکاح د کتابیه مینځي ان قول البغوي مبني علی اعتبار المفهوم المخالف. ولي چي مفهوم مخالف لقوله تعالی "من فتیاتکم المؤمنات" چي کتابیه به نه وي. والمفهوم المخالف غیر معتبر عند الحنیفیة.

**سوال**: حنیفیان په څه شي سره دلیل وایي پر جواز د نکاح د کتابیه مینځي حتی ولو کانت غیر عفیفه؟

**ځواب**: حنیفیه په هغه آیت سره دلیل وایي چي خدای پاک چي محرماتي ښځي ذکر کړي دي وروسته یې داسي ویلي دي "واحل لکم ما وراء ذالکم" نو دا آیت په

عموم سره امت کتابیه ته هم شامل دی حتی ولو کانت غیر عفیفة، او د آیت مذکوره عموم ددې تقاضا، کوي چي نکاح د کتابیه حربیه هم روا ده، وعلیه انعقد الاجماع کذ څه هم ابن عباس ﷺ وايي چي نکاح د حربۍ سره نه ده روا، والله اعلم بالصواب والیه المرجع والمآب.

## وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ

او روا دي وتاسي ته محصنات ښځي د هغه کسانو چي دوی ته ورکړه سوی دی کتاب دمخه تر تاسي یعني الیهود والنصاری.

**پوښتنه**: له محصناتو څخه د "الذين اوتوا الكتاب" څه شی مراد دی؟

**ځواب**: مراد ځني ددوی حرې ښځي دي چي عفائف هم وي.

**سوال**: نو ددې آیت دا معنا ده چي د مينځي کتابیه سره نکاح نه ده روا او چي غیر عفیفه وي د هغې سره نه ده روا. او سره ددې چي آنفاً تېره سوه چي د مينځي کتابیه سره نکاح روا ده او د غیر عفیفې سره هم نکاح روا ده که حره وي او که مینځه کمامر ایضاً؟

**ځواب**: ماذکرت یې معنی نه ده حتی یرد علیه السوال المذکور بلکې ذکر د محصنات په دې آیت کي لپاره د منت او احسان ښکاره کولو د خدای ﷻ دی پر مسلمانانو والمنة والاحسان في الحرائر العفائف اعظم واتم دی. حاصل د جواب دادی چي مراد له محصناتو څخه په دې آیت کي حرائر عفیفه د اهل کتابو دي، وتخصيصه بالذكر الامتنان لا لتقييد بهن لما عرفت من جواز نكاح الامة من اهل الكتاب وجواز نكاح غير العفيفة منهم فافهم.

**مسئله**: افضله خو داده چي سړی د مسلماني ښځي سره چي حُره وي نکاح وکړي، ولي موافقة في الدين خو لوی سبب دی د محبت بين الزوجين وفي نكاح المسلم الكتابية لوی لوی خطري سته كما لا يخفی، او چي سړی قدرت پر نکاح د مسلماتو حراتو نه لري، نو بیا ددې حرائرو کتابیاتو په نکاح کړي مع القدرة علیهن. ولي چي نکاح د مينځي مفضي ګرځي د رقیت ته د اولادو دده. ولي چي ولد تابع د مور دی په حریت او رق کي. نو لکه د سړي چي خپله مریتوب نه دی

خوښ، نو بايد پر اولاد باندي هم رقيت خوښ نه ولري، پښتانه وايي!
بنده راسه د خدای خپل سه.. لکه پر ځان داسي پر خپل سه
**درويش وايي:** چي ابن عمرؓ خلگ او مسلمانان منع کول له نکاح ځخه د کتابيه مطلقاً که حره وي او که مينځه، او که ذميه، او که حربيه وي، او ويلي يې دي چي کتابيات په مشرکاتو کي داخل دي، قال ابن عمرؓ قال الله تعالى "قالت اليهود عزير ابن الله وقالت النصارى المسيح ابن الله، واى شرک اعظم من ذالک، وقد قال الله تعالى "ولا تنکحوا المشرکات حتى يؤمن" نو ځکه ددوی نکاح مسلمان ته نه ده روا، او ابن عمرؓ تفسير د محصناتو په آيت کي په مسلماتو سره کړی دی. او مظهري په ډېره دلاوري داسي عبارت په شان کي د ابن عمرؓ استعمال کړی دی، وهذا التفسير ليس بصحيح فان تفسير المحصنات بالمسلمات ليس من اللغة. ددې معنا گويا داده چي مظهري ځان خبر بولي په لغت عربي تر ابن عمرؓ، ثم قال وقد انعقد الاجماع على حل نکاح الحرة الکتابية آه. يعني ابن عمرؓ له اجماع ځخه مخالف دی.
**پوه سه:** چي درويش له مراد ځخه د مظهري مخالف نه دی لکن صرف د سخت عبارت استعمالول په شان کي د صحابي بن الصحابي يعني عبدالله بن عمر رضي الله عنهما مخالف دی يعني ځه نرمي بايد مظهري استعمال کړې وای مراعاتاً للادب. ع... وللناس فيما يعشقون مذاهب.
**مسئله:** د مسلمان نکاح د کتابيه سره مطلقاً مکروه ده اجماعاً. ولي چي د مېړه او مايني تر منځ طبعاً محبت او عشق وي، نو په دې نکاح کي محبت دی د مسلمان په ذات کافر سره ولا ينبغي ذالک للمؤمن، او بل دليل د کراهت دادی چي اولاد تر پلار د مور سره ډېر محبت او الفت لري، نو په دې نکاح کي به غالباً اولاد د مور و دين ته مائل سي وهذا مجرب: ابن همام په فتح القدير کي وايي چي حذيفه، طلحة او کعب بن مالکؓ کتابيه ښځي په نکاح کړي وې فغضب امير المؤمنين عمرؓ. فقالوا آيا موږ طلاق ورکړو ودغو کتابياتو ته؟ قال نعم له دې قصي ځخه دا معلومېږي چي نکاح خو يې صحيح ده، ولي چي طلاق فرع د نکاح دی ويدل على کراهة ذالک النکاح جداً.

**تنبیه**: د امام اعظم رحمه الله او د صاحبینو په منځ کې اختلاف دی چې په نامه د صائبین یوه ډله د کافرانو ده، نو نکاح ددوی د ښځو د مسلمانانو سره روا ده که نه، ذبیحه یې حلاله ده او که مرداره وهکذا صیدهم، ابو حنیفه رحمه الله یې دا تولنه شیان حلال او روا بولي. ولې د امام اعظم خیال دادی چې دوی پر زبور د داؤد علیه السلام ایمان لري، نو دوی له اهل کتابو څخه دي وما وقع في بعض المواضع انهم مع ذالک یعبدون الملائکة فغلط لان عبادة الملائکة شرک لا یجتمع مع الایمان بالزبور، وکذا من آمن بصحف ابراهیم وشیث علیهما السلام من اهل الکتاب. او یاران ددوی د ښځو نکاح روا نه بولي ذبیحه او صید یې مردار بولي. ددوی دا خیال دی چې صائبین د ستورو عبادت کوي، نو مشرکان دي، ولهذا قال صاحب الهدایة چې دا اختلاف د امام اعظم رحمه الله او صاحبینو مبني دی پر اشتباه د مذهب ددوی فکل اجاب علی ما وقع عنده ولا خلاف في الحقیقة.

**درویش وایي**: چې د فقهي یو مشهور کتاب دی چې مستصفی یې بولي په هغه کې وایي چې روا والی د نکاح د نصرانیه ښځې هلته دی چې مسیح علیه السلام آله نه بولي. او که ددوی عقیده د الوهیت وه عیسی علیه السلام ته بیا ددوی د ښځو نکاح نه ده روا، او په مبسوط کې د شیخ الاسلام راغلي دي یجب ان یؤکل ذبائح اهل الکتاب اذا اعتقدوا ان المسیح آله او ان عزیر آله، ولا یتزوجوا نسائهم قیل علیه الفتوی. ولکن بالنظر الی الدلائل القرآنیة و الآیات الفرقانیة ان یحل الاکل والتزوج انتهی قال ابن الهمام وهو موافق لما في باب رضاع مبسوط شیخ الاسلام في ذبیحة النصراني انه حلال مطلقاً سواء قال بثالث ثلثه في حق عیسی اولا. لاطلاق الکتاب ه یعني قوله تعالی "وطعام الذین اوتوا الکتاب حل لکم" مظهري رحمه الله وایي چې ظاهره داده چې دا حکم ددوی په موحدینو سره مخصوص دی په دلیل ددې قول د خدای جل جلاله "ولا تنکحوا المشرکات حتی یؤمن" او چا چې ویلي دي چې حکم د حرمت د مشرکاتو د نکاح منسوخ دی په حق کې د اهل کتابو بهذه الآیة یعني "والمحصنات من الذین اوتوا الکتاب من قبلکم" دا قول بعید جداً لعدم الفرق بین شرک فرقة ومشرک فرقة اخری واما قوله تعالی قالت الیهود عزیر ابن الله وقالت النصاری المسیح ابن الله هغه قائلین په دوی کې اوس نشته

بلکې هغه دور اوس په دوی کې ختم دی، قال ابن همام رحمه الله چې زموږ د وطنو یهودان له قول څخه د بنوت د عزیر بېزاره دي او په توحید او تنزیه قائل دي، دی وایې هر څه چې نصارئ دي موږ هیڅ نه دي لیدلي ددوی په کتابو کې مګر تصریح په زوئ والي د عیسی علیه السلام کوي لعنهم الله.

**درویش وایي:** چې په بعضو کتابو کې ددوی چې په اردو ژبه ترجمه سوي دي داسې عبارت موجود دی "مسیح زنده خدا ہے" او په بعض کتابو کې بیا ددوی داسې عبارت سته "مسیح اپنی باپ کی ساتھ ہے" نو له دې عبارتو څخه دا معلومېږي چې نصارئ وه حکم ته د الوهیت د عیسی او یا حکم ته د نبوت د عیسی اوس هم په دغه ولاړ دي. دا و تحریر ددې مقام حسب طاقة العبد الضعیف والعلم عند الله العزیز العلام.

إِذَآ ءَاتَيۡتُمُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ

چې تاسې ورکړي وي ودوی ته مهرونه ددوی.

**پوه سه:** چې ورکړه د مهر د نکاح د صحت شرط نه دی بلکې دا شرط یې لپاره د تاکید د وجوب المهر ووایه او لپاره د باعثه کولو پر ورکړې د ولور. او بعض مفسران وایي چې مراد له ایتان څخه التزام د ولور دی، او التزام خو په نکاح سره دی.

مُحۡصِنِينَ غَيۡرَ مُسَٰفِحِينَ

چې تاسې ساتونکي د فرج یاست په نکاح سره له زنی څخه، چې ورکړه د اجور لپاره د زناء نه وي یعنې خپلې اوبه یعنې نطفه ضائع کوي له حلاله څخه په حرام کې چې مزنیه ده هر څوک چې وي.

**فائده:** اذا" ظرفیه ده، عامل یې "احل" دی چې محذوف دی او "محصنین" حال دی له فاعل څخه د "آتیتموهن" او د "مسافحین" معنا مجاهرین بالزنی فیصح مقابلته بمابعده.

وَلَا مُتَّخِذِيٓ أَخۡدَانٖۗ

**پوه سه:** چې "اخدان" جمع د خدن ده چې معنی یې یار او اشنای دی، نو معنا یې داده چې په پټه به هم زنی نه کوي، امام شعبي رحمه الله وایي چې زنی دوه قسمه ده، یو سفاح چې زنی بالاعلان ده او بل اتخاذ الخدن ده چې په پټه سره زنی ته وایي.

وَمَنۡ يَكۡفُرۡ بِٱلۡإِيمَٰنِ فَقَدۡ حَبِطَ عَمَلُهُۥ وَهُوَ فِي ٱلۡأٓخِرَةِ مِنَ ٱلۡخَٰسِرِينَ ۝٥

او چي څوک کفر وکړي په ایمان سره یعني په شرائعو سره د اسلام نو ټول له خیر دده لکه صدقه و صلة الرحم مثلاً لغوه دي یعني په ورځ د قیامت ثواب نه لري لان الایمان شرط لاعمال البر.

**مسئله**: امریکایان چي هرڅونه کومک د مسلمانانو سره کوي هغه هیڅ ثواب په اخرت کي نه لري لان کفرهم مانع من ذالکم وکذا المؤسسات الخيرية للكافرين لاخير لهم فيها يوم القيامة لعدم الشرط وهو الايمان. قال الشيرازي

برفتند وهرکس دردود انکه کشت — نماند بجز نام نیکو وزشت

**یوه سه**: چي کفر اقبح د قبائحو دی لکه ایمان چي احسن د محاسنو دی. کعب احبار وایي چي نوح عليه السلام چي وفات کېدی، نو خپل په زامنو کي یې سام را وغوښتی او ورته وه یې ویل چي زه تا په دوو شیانو سره امر کوم او له دوو شیانو څخه دي منع کوم. اول د مامور به شهادة ان لا اله الا الله. ولي چي دا هغه کلمه ده چي اووه اسمانونه یې حجاب نه سي کېدای بلکې دا سیده تر خدای پاک پوري رسېږي. او دا هغه کلمه ده چي اووه اسمانونه او ځمکي په یوه پله کي د ترازو د قیامت په ورځ کښېښول سي او دا کلمه په بله پله کي د مېزان کښېښول سي دا کلمه به درنه وي.

**سوال**: هر مسلمان چي پر توحید مړ سي. نو دا کلمه مبارکه خو ورسره ده. نو باید هیڅ مسلمان که هرڅو گناه کار وي او بې توبې مړ هم سي و دوزخ ته داخل نه کړل سي وهذا خلاف عقائد اهل السنة والجماعة؟

**ځواب**: د څلور سره مذهبو علما. وايي چي کلمه طيبه د هر مؤمن نه تلل کېږي الا من شاء مغفرته. ومن هذا قالوا "به بها نه می بخشند، وبیهانه می بخشند" او دوهم مامور به ویل دي د سبحان الله والحمدلله. فانها جامعة للمثوبات. او اول منهي عنه شرک دی. او دوهم تکیه کول پر غیر د خدای ﷻ. ولهذا ورد "ومن يتوكل على الله فهو حسبه" له دې سببه اولیاء الله الکرام وایي چي څوک چي "حسبنا الله ونعم الوکیل" روزانه پنځه سوه (۵۰۰) واره وایي په اول او اخیر کي یې لس (۱۰) واره

درود وایي خدای پاک به يې ورکړي ما يحتاج اليه ورکړي من حيث لا يحتسب.

**درويش وايي**: چي د مؤمن ایمان په بعضي قولي خبرو او په بعضي عملي کارو له منځه ځي. نو بايد مسلمان قول یا عمل ونه کړي چي ایمان يې له منځه ولاړ سي، د مثال په توګه په قولي شيانو کي سب (بنګنځل) دي و عليه الصلوة والسلام ته. او په عملي کارو کي قرآن پاک په قاذوراتو کي غورځول دي.

**یوه سه**: چي په نصاب الاحتساب کي وايي چي هغه قول یا عمل چي کفر وي بلا خلاف کالمثالين المذکورين، هغه ټول له اعمال د خير او عبادات چي سړي کړي وي ټول له لغوه او باطل ګرځي. او که يې حج کړی وي پس له توبي به بيا حج کوي او د مايني سره جماع حرامي دي او که په دغه دوران کي دده عيال پيدا سي هغه اولاد الزنی دی، او که دغه سړی د شهادت کلمه پر طريقه د عادت وايي او د هغه قول یا عمل څخه يې توبه نه وي کښلي په هغه شهادت نه مسلمانيږي لان الاتيان بکلمة الشهادة على طريق العادة لا يرفع الکفر المحقق بلا ريبة. او که چيري د هغه قول یا عمل په کفر کي د علماؤ اختلاف و، نو وېونکی دي امر سي په تجديد د نکاح او عمل و عبادت يې نه لغوه کيږي او په توبه سره دي امر سي. کل ذالک احتياطاً. او بل حج کول هم نه دي پر لازم الا لوجه الاحتياط. او که چيري هغه قول غلط قول و، او کفر يې نه اتفاقاً نه اختلافاً لازموی لکن البته ګناه وي، نو قائل يې پر خپل ایمان دی په تجديد د نکاح نه امر کيږي. او علماء دي دی امر کړي په توبه او استغفار سره. انتهى کلام نصاب الاحتساب مع زيادة والرجل والمرئة في ذالک سواء.

**درويش وايي**: چي ټول له الفاظ د کفر اتفاقاً او اختلافاً په پښتو او فارسي کي ښيخي ډير دي چي د ټولو راوړل به ډيري ورقي وغواړي، که څوک تفصيل د ټولو وغواړي جامع الفصولين دي مطالعه کړي چي د هغه کتاب مصنف ډير کوشش کړی دی په جمع کولو کي د هغو الفاظو شکر الله سعيه لکن په اوسني زمانه کي داسي ده چي خلګ په الفاظو کي د کفر پوښتنه د يو عالم پرجسته او تقوی داره څخه نه کوي او که يې ذکري بيا هم عمل نه په کوي، یا ورځي يو امام ته یا خدای نه ترسه ملا ته جاهل هغه ورته وايي چي په دې خبرو کي هيڅ ځای د کفر نسته.

**شان نزول**: بخاري له عائشې رضي الله عنها څخه په سند متصل روايت کړی دی، دا وايي

چي مور په یو سفر کي و. له هغې خوا ځخه چي به راستانه سوو که عذر نه وای مور مدینې منورې ته رسېدلای سوای اتفاقاً زما غاړگی د بیداء په مقام کي له غاړي ځخه لوېدلې وه. نو ما چي علیه الصلوة والسلام ته وویل ده مبارک لښکر مؤجل کړی، نو خلگ زما پلار ابوبکر ﷺ ته ورغله چي ستا لور وگوره علیه الصلوة والسلام یې سره د خلگو له تلو ځخه بند کړی. او حال دادی چي نه دلته اوبه سته او نه د خلگو سره سته. نو ابوبکر ﷺ راغلی او علیه الصلوة والسلام زما پر ورانه باندي سر اینبی دی بیده دی. نو زه ابوبکر ﷺ ټینگه لغته ووهلم لکن زه ونه ښورېدم ولي چي د علیه الصلوة والسلام سر زما پر ورانه و. ابوبکر ﷺ راته وویل خلگ دي له سفره بند کړه په یوه غاړگی. ولیسوا علی ماء. ولیس معهم ماء. وروسته علیه الصلوة والسلام راویښ سو او سپېدې سوې اوبه یې طلب کړې اوبه نه وې فنزلت هذه الآیة.

## یٰٓاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا قُمْتُمْ اِلَی الصَّلٰوةِ

یعني چي په پای کي ددغه آیت تیمم نازل سو. نو په سبب د آیة التیمم اسید بن حضیر ﷺ وویل لقد بارک الله للناس فیکم برکة یا آل ابي بکر والله چي خدای برکت اینبی دی په تاسي کي یا اولاد د عائشې ﷺ وروسته چي مور اوښ ولاړ کړی غاړگی تر اوښ لاندي وه. گویا په دغه وخت کي ددې غاړگی. ختلې وه چي له اوښه راکښته کېده. مظهري وایي چي له دې حدیثه د بخاري داسي صراحة وفهمېده چي په نازل قصه کي د غاړگی د عائشې ﷺ دا آیت دی چي په سورت مائده کي دی نه هغه آیت چي په سورة النساء کي دی. او له دې قصې ځخه دا هم معلومه سوه چي دا آیت دمخه دی په نزول تر آیت د سورة النساء. والا لما عاتب عائشة بقوله حبست الناس لا علی ماء ولا ماء معهم وما شکر اسید بن حضیر الی ابي بکر ﷺ. ولي چي په قصه کي د سورة النساء چي هم غاړگی د عائشې ﷺ ورکه ده او لغته د ابوبکر عائشې ﷺ ته. او شکر د اسید ﷺ نسته.

**درویش وایي:** چي نه روح المعاني او نه روح البیان هیڅ تعرض ودې شان نزول ته نه دی کړی صرف مظهري دا شان نزول راوړی دی والله اعلم.

**پوښتنه**: ددې آیت ظاهراً معنا خو داده چې داسې پر لمانځه ودرېږئ بیا اودس تازه کړئ، او سره ددې چې اودس خو تر قیام الصلوة دمخه دی؟

**ځواب**: ددې پوښتنې ځواب خو اکثره مفسرینو او شراح د هدایې داسې ورکړی دی اذا اردتم قیام الصلوة، نو د ارادې ځخه د فعل چې سبب دی په فعل سره یې تعبیر وکړی چې مسبب دی لپاره د ایجاز او تنبیه پر دې باندې چې څوک اراده د یو عبادت وکړي، نو تلوار دې کوي. ګویا دا عبادت په زمانه کې د ارادې پیدا سو، او زید بن اسلم ددې پوښتنې ځواب داسې ورکړی دی چې معنی د آیت داده "اذا قمتم الی الصلوة من النوم"

**درویش وایي**: چې دا ځواب بعید دی اذ لا دلیل علی قید النوم.

**پوښتنه**: له دې آیته خو داسې فهمېږي چې هر څوک اراده د لمانځه وکړي که څه هم اودس لري اودس به تازه کوي وهو خلاف الاجماع، عامه مفسرین تیوله شراح د هدایې دا قید ورځخه محذوف بولي وانتم محدثون، او په صحیح حدیث کې چې روایت یې ابو داؤد، ابن ماجه، ترمذي او نسائي کړی دی چې علیه الصلوة والسلام په کال کې د فتح مکې د پر لمونځونه په یوه اوداسه وکړه، او مسح یې پر موزو وکړه، او سره ددې چې د علیه الصلوة والسلام عادت دا و چې هر لمانځه ته به یې اودس تازه کاوه، نو ځکه عمر ﷺ پوښتنه ځنې وکړه چې تا نن یو داسې کار وکړی یعنې د پر لمونځونه په یوه اوداسه چې په خوا دې نه کاوه یعنې په خوا خو دې هر لمانځه ته اودس تازه کاوه، علیه الصلوة والسلام ورته وویل عمداً صنعته یا عمر، په قصد مې دا کار وکړی یعنې لپاره د بیان د جواز تاچې پر امت حرج رانه سي بظن ان الوضوء واجب لکل صلوة. نو ددې آیت په تاویل بعض علماء وایي چې امر د اوداسه د هر لمانځه لپاره ندب دی، او امت پر دې اجماع کړې ده چې اودس مندوب دی د هر لمانځه لپاره وان کان المصلی طاهراً ویدل علیه حدیث ابن عمر ﷺ ان النبي ﷺ من توضا، علی طهر کتب له عشر حسنات، رواه النسائي، وایضاً یدل علی کون الوضوء مسنوناً مندوباً، چې له حضرت انس ﷺ حدیث دی قال کان النبي ﷺ یتوضوء عند کل صلوة الی اخیر الحدیث.

**فائده**: د اوداسه فرضیت د لمانځه د فرضیت سره راغلی دی په وحي غیر متلو

سره، او په دې آیت کې فرضیت په وحي متلو سره د بیان د کیفیت ثابت سو، قاله اصحاب المذهب کلهم کما روی ابن عبدالبر عنهم. او مظهري رحمه الله وايي چي اودس اول الامر واجب و پر علیه الصلوة والسلام لپاره د هر لمانځه. نو چي پر ده مبارک دا کار سخت سو، بیا نو امر په مسواک سو د هر لمانځه لپاره، او مظهري دلیل په حدیث د حنظله بن عامر غسیل الملائکة ویلي دی چي هغه وايي ان النبي ﷺ امر بالوضوء عند کل صلوة طاهراً کان او غیر طاهر ثم نسخ الوضوء وامر بالسواک الی اخیر ماقال المظهري رحمه الله.

**دروېش وايي:** چي صحت د حدیث د حنظله رضي الله عنه مسلم دی لکن ددې آیت سره څه کار لري. ولي چي په آیت کي صیغه د جمعي راغلې ده "اذا قمتم" او خطاب و تولو مسلمانانو ته دی "یاایها الذین آمنوا" او داسي نه دي ویل سوي "یاایها النبي اذا قمت آه" نو وجوب د اوداسه پر علیه الصلوة والسلام په قرار د حدیث د حنظله رضي الله عنه لپاره د هر لمانځه طاهراً کان او غیر طاهر په وحي غیر متلو سره و، نو ددې وجوب ربط ددې آیت سره ورکول کما فعله مظهري رحمه الله بې ځایه دی.

## فَاغْسِلُوْا وُجُوْهَكُمْ

تاسي مينځئ خپل مخان.

**دروېش وايي:** چي مفسرین تول په اتفاق او کتابونه تول د فقهاؤ په یوه خوله وايي چي غَسل بهیول د ابو دي پر عضو باندي که دلک یعني مښوول ورسره وي که نه. او وجه نوم دی د عضو مخصوص من المواجهة. ولي چي مخ سره مخامخ کېده د انسانانو تر منځ کېږي. او اندازه د مخ په طول کي له شنه کېدو ځخه د وېښتانو د سر دی یعني حسب العادة په اکثرو خلګو کي فلا یرد الاصلع چي سر یې تر منځه پوري د وېښتانو ځخه خالي وي لکه د سپین ږیرو خلګو دا. او داغه رنګه سوال نه وارد ېږي په اغم سره چي وېښتان یې تر منځه پوري د تندي شنه وي "الی اسفل الذقن" تر زنه لاندي پوري، او اندازه د عرض د یوه غوږ له نرمی ځخه د بل غوږ تر نرمی پوري. نو ددې تول مخ یو وار پرېول فرض دی او درې واره پرېول یې سنت دی.

**مسئله:** که ورځي د پرې بېږي وي. او به رسول و ماتحت ته د هغو فرض دی داغه

رنګـه د باڼو ګـانو د سترګو او ماتحت تـه د برېتـو او د ږېرې بزګر چې عنفقه يې بولي که ګڼ وي.

**بوه سه**: چې عدم اشتراط د دلک مذهب دی د ائمة ثلاثه خلافاً لمالک هغه وايي چې دلک فرض دی.

**مسئله**: پرېول د هغه خالي ځای چې په منځ کې د ږېرې او د غوږ وي فرض دی.

**مسئله**: ږيره که سپکه وه چې په پښتو يې ځوکړ بولي چې لاندې تر وېښتانو يې معلومېدی نو پرېوله د پوست يې فرض دی، او که کثيف وه يعني ګڼه ږيره وه چې پوست يې نه معلومېدی، نو د پوست پرېوله يې فرض نه دی البته تخليل يې سنت دی چې او به پوست ته ورسېږي. کما يسقط مسح د پوستکي د سر بالشعر الثابت عليه، او دليل پر دې دی چې د ګنې ږيرې لپاره او به باطن ته د ږيرې رسېدل نه غواړي، اول خو اجماع د امت مرحومه ده. او دويم دليل په فعل د عليه الصلوة والسلام دی چې دده مبارک ږيره هم ګڼه وه چې بخاري له ابن عباس ﷺ څخه روايت کړی دی انه ﷺ کان يغسل وجهه بغرفة" چې عليه الصلوة والسلام پرېولی مخ مبارک په يوه غبرګه او بو سره. وفي مسلم من حديث جابر ﷺ کان رسول الله ﷺ کثير شعر اللحية. او دا بدهي او ښکاره خبره ده چې يوه غرفه او به وباطن ته د وېښتانو د کث اللحية نه سي رسېدای.

**مسئله**: واجب دی پرېوله د ظاهر د ږيرې ټوله عوضاً عن البشرة عند الجمهور وبه قال ابو حنيفة رحمه الله في رواية قال في الفتاوى الظهرية وعليه الفتوى وفي البدائع ان ماعدا هذه الرواية مرجوع عنه يعني امام اعظم رحمه الله رجوع ځنې کړې ده. وفي رواية يجب مسح ربع اللحية وفي رواية ثلث اللحية. وفي رواية لايجب مسح اللحية ولاغسلها.

**درويش وايي**: چې مراد په دې روايت کې هغه سترسل د ږيرې دی لا مايلاقي البشرة والله اعلم، مظهري درويش وغيرهما.

**فائده**: له فرضيت څخه د غسل الوجه دا وفهمېده چې مضمضه او استنشاق نه دي فرض په او داسه کې. لان اسم الوجه يتناول الظاهر دون الباطن. البته په خوله او په پزه او به لغړول سنت دی بفعله عليه الصلوة والسلام.

**درویش وایي:** چې امام مظهري رحمه الله داسې عبارت ویلی دی والحجة علی وجوب غسل ظاهر اللحیة کلها آه، له دې عبادت څخه به بعض کسان دا توهم وکړي چې مایطلق علیه اللحیة د ټولي پر ېوله فرض دی لکن د مظهري دا مراد نه دی، ولې چې لفظ د لحیه خو ایله ځړېدلو وېښتانو ته هم شامل دی، او د مسترسل وېښتانو پرېوله په اتفاق د علماء نه دی فرض بلکې مراد دده هغه وېښتان دي چې ملحق په بشره پورې وي. وکلامه في بیان الحجة علی ذالک یدل علی ماقلنا کما لایخفی علی من طالع کلامه في سوق الحجة علی تلک الفرضیة، ولقد احسن صاحب روح البیان حیث قال ففرض اللحیة غسل مایلاق الوجه دون مایسترسل من الذقن لان فرضیة الغسل ماتحت اللحیة لما سقطت انتقلت الی خلف و الخلف وهو الملصق بالبشرة دون المسترسل فافهم.

**وَأَيْدِيَكُمْ إِلَى الْمَرَافِقِ**

او داغه رنګه پرېولئ لاسونه خپل تر څنګلو پورې.

**یوه سه:** چې "ید" نوم دی د عضو معلوم عند الکل د ګوتو له سرو څخه تر ترخرګو پورې.

**یوه سه:** چې جماهیر د علماؤ او ائمه اربعه پر دې دي چې مرفق په وظیفه کې د غسل داخل دی یعنې غسل یې واجب دی لذالک قیل ان الی ههنا بمعنی ای مع المرافق کما في قوله تعالی "ولاتاکلوا اموالهم الی اموالکم" ای مع اموالکم چې حق د یتیمانو وارد دی. او شعبي او محمد بن جریر او زفر رحمهم الله تعالی وایي چې غسل د مرفق نه دی واجب، دوی دا دلیل وایي چې کلمه د "الی" خو لپاره د انتها. د غایت دی او غایت خو ګاهې له مغیا څخه خارج وي په حکم کې لکه اتم الصیام الی اللیل. او بل دلیل دا وایي چې کلمه د الی لپاره د مطلق غایت دی عند المحققین من علماء العربیة، واما دخول الغایة وخروجها فلا یفهم من کلمة الی بل یعلم من دلیل خارج ولا دلیل ههنا فلا یدخل بالشک واجاب عنه المظهري چې دلته دلیل سته پر دې چې غایة چې مرفق دی داخلېږي په حکم کې د مغیا چې غسل الید دی وهو الاجماع. ولې چې امام شافعي رحمه الله وایي چې زه نه یم خبر چې په یو چا

چي مخالف دوی په واجب والي د دخول د مرفقينو په حکم کې لاس چي غسل دی.

**سوال**: دمخه موږ وویل چي ددې سند څه شی دی. شعبي او محمد بن جریر او زفر په دې حکم کې مخالف دي فکیف الاجماع؟

**ځواب**: سند یې فعل د علیه الصلوة والسلام دی المبین لمجمل الکتاب، په حدیث کې د بزار او طبراني راغلي دي مرفوعاً وغسل یعني علیه الصلوة والسلام ذراعیه حتی جاوز المرفقین. حاصل دا چي نه نبي ﷺ او نه له یوه صحابي څخه دا ثابته سوې ده چي دوی غسل د مرفقینو پرې ایښی وي او یا د بجلکو د پښو په اوداسه کې، په مستخلص کې وایي که مغیا دمخه تر ذکر د غایت شامل و مابعد ته د غایت، نو هغه غایت لپاره د اسقاط د ماوراء الغایة دی له حکم څخه د مغیا او خودې غایت په حکم کې د مغیا داخل دی کالید فانه اسم للعضو، المخصوص الی الابط. فکلمة الی ههنا لاسقاط ماوراء المرفق عن حکم المغیا وهو الغسل والغایة اعني المرفق داخلة في الحکم. وان کان المغیا بحیث لم یدخل في حکمه ماوراء الغایة فالی هناک لمد الحکم الی الغایة فقط نحو قوله تعالی "ثم اتموا الصیام الی اللیل" فاللیل لمالم یکن محل الصوم شرعاً فکلمة في هذه الآیة لمدحکم الصوم الی اللیل فاللیل خارج عن الصوم.

**درویش وایي**: چي وقد اصاب في هذا القانون صاحب المستخلص رحمه الله.

وَامْسَحُوا بِرُءُوسِكُمْ

او مسح کوئ پر سرو ستاسي.

**یوه سه**: چي قدر واجب په مسح کې د سر ربع د سر ده په نیز د ابي حنیفه رحمه الله لانه علیه الصلوة والسلام کما روی في الحدیث الصحیح مسح علی ناصیة یعني پر نزله وهو قریب من الربع. ولي چي سر څلور حصې دی دمخ ربع ته ناصیه وایي او د څټ د خوا ربع ته قذال وایي او د غوږو پر برابر ربع قرنان بولي یعني تیکونه.

**درویش وایي**: چي په مقدار کې د ممسوح د سر اختلاف د مذاهبو دی امام مالک او امام احمد وایي چي د ټوله سر مسح فرض ده. ولي چي دوی وایي کلمه د باء زائده ده، نو تقدیر یې داسي دی وامسحوا رؤسکم او راس نوم دی د یو خاص اندام چي سر



Scanned by CamScanner

يې بولي، نو د ټوله سر مسح فرض ده لکه "فاغسلوا وجوهکم" چي د ټوله مخ استيعاب په غسل کي سره او يا لکه استيعاب د ټوله مخ چي په مسح د تيمم فرض دی. او بل دليل دادی چي فعل د عليه الصلوة والسلام هم پر استيعاب د سر دلالت کوي، لکه روايت چي کړی دی عبدالله بن زيد ﷺ چي عليه الصلوة والسلام د سر مسح داسي کوله چي دواړه لاسونه يې پر سر تېر کړه فاقبل بهما وادبر بدء بمقدم راسه ثم ذهب بهما الى تغاه ثم ردهما الى المکان الذي بدء منه.

**پوه سه:** چي د اقبل بهما و ادبر تفسير دا وروسته توري دي يعني بدء، آه، چي معنا يې داده چي شروع يې وکړه دمخ له خوا څخه او لاسونه يې ورسول تر څټ پوري، او بيا يې بېرته راوګرځول و هغه ځای ته چي شروع يې څني کړې وه، د حنيفانو په نېز دا استيعاب محمول پر استحباب دی په دليل د هغه حديث چي تېر سو چي روايت يې په سند متصل سره مسلم کړی دی له مغيره بن شعبه ﷺ څخه چي ان رسول الله ﷺ توضا. فمسح بناصية الى اخير الحديث. ومن العجب ان صاحب روح البيان اختار ان الباء زائدة ثم قال المفروض مسح ربع الراس.

**پوه سه:** چي ابن عمر ﷺ وايي چي په مسح کي د سر مسح د بعض سر مروي ده او چا له صحابه وو څخه انکار نه دی پر کړی کما قال الحافظ ابن حجر رحمه الله نو چي د ټوله سر مسح فرض نه سي او احاديث د استيعاب محمول پر استحباب سي، نو محمد بن ادريس الشافعي رحمه الله وايي چي معنی د آيت نو داده وامسحوا بعض رؤسکم، نو آيت مطلق دی فيکفی من الراس مسح شعره في رواية عنه وثلث شعرات في رواية اخری، او امام اعظم رحمه الله وايي چي آيت مطلق نه دی بلکي مجمل دی، ولي ټوله سر خو مراد نه دی بقرينة الباء او په قرينه د احاديثو د مسح د رسول الله ﷺ پر مقدم د سر فقط او مطلق بعض د سر خو هم نه دی يعني بلکي امام شافعي رحمه الله چي وايي چي د درو وېښتانو مسح هم کافي ده، ولي چي د درو وېښتانو بلکي بالا په پرېولو کي د مخ راځي، ولي چي استيعاب د غسل الوجه خو اتفاقي دی نو د آيت د وامسحوا بروسکم څه فائده ده بلکي آيت چي مجمل سو، نو حديث د مغيرة بن شعبه ﷺ وامثاله بيان دی د آيت ولهذا قلنا بوجوب مسح ربع الراس.

**فائده**: كلمه د باء خو امام احمد او امام مالک زائده بولي، او دليل ددوی دادی چې كلمه د باء خو لپاره د الصاق ده وهو المعنى الحقيقي للباء باجماع اهل العربية. او مونږ وايو چې زيادت د حرف هلته اوږدل کېږي چې بيله زيادته بله چاره نه وي نحو كفى بالله. لان حرف الجر لايدخل على الفاعل. دلته په بروسكم كي معنى حقيقي د باء چې الصاق دی امكان پذير ده. نو پوه سه چې باء الالصاق غالباً پر وسائطو داخلېږي نحو طينت الحائط باليد. نو د "يد" استيعاب خو نه غواړي، ولي يد خو تر اوږې او تخرگ پورې دی. نو كه دغه باء الالصاق يو وخت پر محل داخله سي كما في قوله تعالى "بروسكم" نو هم استيعاب د ټوله محل نه غواړي فتدبر.

## وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى الْكَعْبَيْنِ

او تاسي پښې مينځئ تر بجلكو پوري.

**پوه سه**: چې اكثره قاريان د قراء سبعه پر دې دي چې "ارجلكم" منصوب دی او په زور د لام يې وايي. چې عطف پر مغسول سي او وظيفه د پښو غسل سي. او ددې تائيد سنت شائعه د عليه الصلوة والسلام چې هغه په اوداسه كي پښې پرېولې دي. او عمل د صحابه كرامو هم غسل د پښو وو. او قول د اكثر الائمة هم دادی چې وظيفه د پښو غسل دی. او بل په قرينه د تحديد په الى الكعبين كي. ولي چې غايت په مغسولاتو كي راځي په مسح كي غايه نسته كالراس واعضاء التيمم. وقرء بعض القراء په جر د لام. روافضو قرئت د جر ټينگ كړی او وظيفه د پښو مسحه بولي. او په عين حال كي مسح د موزو روا نه بولي. نو دا ضرب المثل گرځېدلی دی چې يو شی د بر فراخه وي لكه سدری. مثلاً بل سړی ورته وايي چې څونده فراخه سدری دي ده لكه د رافضي موزه. ولي رافضيان چې په سفر ځي او موزو ته يې ضرورت وي. نو موزې دومره فراخه جوړوي چې لاس ور ننوځي چې دننه په موزه كي پر پښو مسح وكړي. ولي چې دوی مسح د موزې روا نه بولي. له امام اعظم رحمه الله روايت دی چې ما مسح د موزې روا نه ده بللې تر هغو چې ماته مثل ضوء الصبح احاديث قوليه او فعليه د عليه الصلوة والسلام نه دي رسېدلي. او دغه رنگه اثار قوليه او فعليه د صحابه كرامو رضي الله عنهم نه دي رارسېدلي.

او داغه رنګه د امام اعظم رحمه الله څخه روايت دی چې اخاف الکفر علی من لم یر المسح علی الخفین لان الاحادیث الواردة فیه شهیرة قریبة من حد التواتر. کما روی عن ابن المغیرة عن ابیه. مغیره رضی الله عنه وايي چې زه د علیه الصلوة والسلام سره ملګری وم په یو سفر کې ذات لیلة نو ده مبارک راته وویل "امعک ماء" ما ورته وویل هو اوبه زاسره دي. نو دی مبارک له اوښه راکښته سو او رهي سو "حتی تواري عني في ظلمة اللیل" یعني د چګر لپاره. وروسته راغلی او ما اوبه ورتویولې یعني استنجا. بیې په ډېرو سره وهلې وه. نو بیې مخ پرېولی او لاسونه یې پرېوله او بیا یې مسح پر سر وکړه مایه یې موزو ته قصد وکړی یعني چې له پښو یې څنې وکاږم. ده راته وویل دعهما فاني ادخلتهما طاهرتین فمسح علیها.

**درویش وايي:** چې په دې حدیث کې ما لږ اختصار وکړی او د حاجت ځای مې نقل کړی، او نور صحیح حدیثونه په غسل کې د پښو او په مسح کې د خفینو موجود دي چې د ټولو راوړل به ونهایت اطناب ته مفضي سي.

**پوښتنه:** قرائت د جر خو هم له قرآت متواتره وو څخه دی. نو چې مسح د پښو نه سي روا، نو د جر د قرائت به څه توجیه وي؟

**ځواب:** علماء د اهل سنت دا جر جوار بولي یعني چونکه پښې وروسته تر مجرور راغلی چې برؤسکم دی. نو ارجلکم ته یې هم جر ورکړی په سبب د همسایه والي. لکه په دې آیت کې "اني اخاف علیکم عذاب یوم الیم" په جر د الیم او سره ددې چې الیم صفت دی د عذاب او هغه منصوب دی لکه بعض قراؤ چې الیم په جر ویلی دی په سبب د جوار د یوم چې هغه مجرور دی مضاف الیه د عذاب دی وکما في قوله العرب "جحر ضب خرب" په جر د خرب او سره ددې چې خرب خو خبر دی د جحر باید مرفوع وايي لکن چونکه لفظ د خرب په جوار د ضب راغلی. نو یې خرب علی الجوار مجرور کړی وله امثلة کثیرة في لسان العرب.

**سوال:** اکثره نحات جر جوار نه مني او څوک چې یې روا بولي هلته یې روا بولي چې په منځ کې یې حرف عطف نه وي او په "ارجلکم" کې حرف عطف سته. او بل په دې شرط چې التباس د حکم نه راځي، یعني وظیفه د پښو غسل دی او که مسح؟

**ځواب:** امن د التباس خو مرفوع دی په غایت د الی الکعبین چې دمخه تېره

سوه چي ممسوح غايت نه لري بلكې مغسول ته غايت راوړه كېږي واغني بالغاية لفظ الى الكعبين، او انكار د اكثر النحاة ممنوع دى وانكاره مكابرة لوقوعه كثيراً في القرآن وكلام البلغاء. وذكر الامثلة لجر الجوار يفضي الى التطويل لايليق بحال التفسير والله اعلم.

**درويش وايي:** چي په بعضي كتابو كي د فقهي چي راغلي دي چي نصف د ارجلكم محمول دى پر حال د دې چي موزه يې نه وي په پښو، نو وظيفه د پښو غسل دى او حال د جر يې محمول پر حال د تخفف دى يعني موزه يې په پښو وي، نو وظيفه د پښو مسح ده پر خف باندي غلطه توجيه ده. ولي چي په آيت الوضوء كي خف له كومه ځايه فهمېږي.

مصرع .... نه هر كه سر بتراشد قلندرى داند.

تتمة لجر الجوار مع العطف. قال ابن مالك وخالد الازهري الواو يختص من بين سائر حروف العطف باحد وعشرين حكماً منها جواز جر الجوار مع العطف بها، والسر فيه ان العاطف موضوع لتوكيد الوصل دون القطع.

**معذرة:** امام مظهري رحمه الله د ډېرې مسئلې د فقهي شريفي چي محل د بيان يې كتابونه د فقهي دي سره د قيل وقال، او د جرح او تعديل په حديثو په تفسير مظهري كي جمع كړي دي او درويش له هغو مسائلو څخه په دومره كثرت لكه چي مظهري كړي دى ډډه وكړه. ددې سبب دادى چي مظهري رحمه الله چونكه په فقهي شريفي كي علحده كتاب نه و تصنيف كړى. نو يې ايراد د مسائلو فقهيه وو په تفسير كي نهايت ډېر ور ګډ كړى. لكن درويش چونكه په فقه شريفه كي په پښتو ژبه تصنيفات درلوده تر دې تفسير دمخه لكه شروط الصلوة پښتو. د نور الايضاح شرح درې جلده پښتو. د صلوة قدوري پښتو شرح، د نكاح قدوري دوه جلده پښتو. نو بيان د مسئلو د فقهي مي هغو كتابو ته وسپارى. دلته په تفسير كي په دې مبحث د اوداسه كي مي اكتفاء وكړه په ماقلنا سره او له جنجال څخه د اختلافاتو د مذهبو او د هغو دلائلو او جرح و تعديل څخه مي ځان بېغمه كړى.

وَإِن كُنتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا

او كه چېري واست تاسي په وخت كي د ارادة الصلوة جنبان. كه د ويښي په

حالت کې وي لکه د ماینې سره چې جماع وکړي او که د خوب په حالت کې وي، نو ځانونه ښه پاک کړئ.

**یوه سه:** چې صیغه د "فاطهروا" چې له باب څخه د تفعیل ده او دلته د مبالغې په طهارت کې د جنابت دی، قال علیه الصلوة والسلام تحت کل شعرة جنابة الی اخیر الحدیث، نو باید سړی د جنابت په غسل کې ډېر کوشش وکړي چې تول بدن سر ترنوکه پرېمنځي، ځکه فقهاء وایي چې مضمضه او استنشاق په غسل کې واجب دی لپاره د امتثال د مبالغې في التطهیر، ولې چې باطن د خولې یا د سږمو چې سړی خلاص ونیسي حکم د ظاهر البدن لري او چې پټه یې ونیسي حکم د باطن لري، نو د غسل په باب کې چونکه مبالغه راغلې ده، نو ځکه فقهاء حکم د ظاهر ورکوي او پرېولو یې واجب بولي، او په اوداسه کې چونکه صیغه د مبالغې نه ده راغلې، نو فقهاء حکم د باطن ورکوي، او پرېولو په اوداسه کې واجب نه ګڼي بلکې سنت یې بولي، دا خو مذهب و د امام ابو حنیفه او احمد، او امام شافعي وایي چې مضمضه او استنشاق لکه په اوداسه کې چې سنت دی په غسل کې هم سنت دی.

**فائده:** پر ښځه باندې غوړېده د کوڅیو نسته او نه یې لندېده سته که چېرې اوبه د وېښتانو وبېخ ته رسېدلې لان کون الشعر من البدن باعتبار اصوله فیکتفی غسل اصوله فیمافیه حرج، او که یې وېښتان کوڅې نه وې لکه په اوسنی زمانه کې د اکثرو ښځو، نو بیا د تولو وېښتانو پرېولو واجب دی لعدم الحرج، والرجل یعنی چې ځوني لري د اوبو رسول وېښتانو ته واجب دی، وجه الفرق د ښځې د سر خریل مثلة یعني بې آبي ده او د نر لپاره خو مثلت نه دی.

**یوه سه:** چې کمترینه اندازه د اوبو د غسل لپاره یوه صاع ده، او صاع اته رطله دی او ادنی اندازه د اوداسه د ابو یو مد دی او مد دوه رطله دی، لما روی في الحدیث الصحیح ان رسول اللهﷺ کان یغتسل بالصاع ویتوضاء بالمد.

**فائده:** په غسل کې دیني او بدني فائدې سته، بعض له فائدو څخه مخالفت دی د کافرانو چې هغه غسل الجنابة نه کوي، بله فائده یې له بدنه څخه خیرې زائلول دي چې له دې خیرو څخه بعض امراض پیدا کېږي، او بله فائده یې آرامول

دي د حرارت د شهواتو طبعیه وو.

**شهانه فائده**: امام ثعلبي رحمه الله په تفسیر کې ددې ایت وایي چې علي رضي الله عنه وایي چې لس کسه د ملا یانو د یهودانو و علیه الصلوة والسلام ته راغله فقالوا یا محمد لما ذا امر الله بالغسل من الجنابة ولم یامر في البول والغائط وهما اقذر من النطفة. فقال رسول الله ﷺ ان آدم لما اکل من الشجرة یعني المنهیة عنها تحول في عروقه وشعره فاذا جامع الرجل والمرئة نزل یعني المني من اصل کل شعرة فافترضه الله یعني الغسل علي وعلى امتي تطهیراً وتکفیراً یعني لما صدر عن ابینا آدم علیه السلام وشکراً لما انعم الله علیهم من اللذة التي یصیبونها یعني في الجماع. وقال صاحب البدائع في احکام الشرائع في بیان تشریع الغسل من الجماع ماحاصله، چې غسل چې واجبیږي په خروج د مني او په خروج د بولو او غائط فقط د اعضاء مخصوصه پرېوله او مسح د سر لازمیږي، د څو وجهو له کبله. یوه وجه داده چې قضاء د شهوت په وتلو د مني یو داسې نعمت دی چې اکثره یې په ټوله بدن کې پیدا کیږي چې هغه لذت او خوند دی. نو موږ خدای امر کړو په غسل سره شکراً لهذه النعمة العظیمة او په بولو او غائطو کې خو دا لذت نشته. نو ځکه یې غسل نه کړی راباندې واجب. او بله وجه یې داده چې جنابت د ټوله که ظاهر وي او که باطن یوه برخه اخلي ولې چې جماع چې سبب د جنابت ده نه کیږي مگر په سبب د تمام قوة بدني حتی چې څوک چې وطي ډېرې انسان ضعیفه کوي او که وطي ډېرې نه کوي انسان قوي وي ولا کذالک البول والغائط. نو وطي چې سبب د جنابت دي د ټوله بدن د قوی ظاهره او باطنه څخه برخه ودرلوده، نو ددې سببه موږ په کامل طهارت چې غسل دی مامور سوو. تاچې د طهارت کامل چې غسل دی اثر وظاهر او باطن ته ورسیږي انتهی کلام البدائع بحذف بعض الوجوه.

**درویش وایي**: چې دا غو غسل د ژوندي و. او هر چې غسل د مړي دي هغه شریعت قدیمه دی. په حدیث مبارک کې راغلي دي چې آدم علیه الصلوة والسلام چې وفات سو. نو جبرائیل علیه السلام سره د څو ملکو یعني په صورت بشري راغلې او آدم علیه السلام ته یې غسل ورکړی. او جبرائیل او ملکو اولاد ته د

ادم عليه السلام وويل هذا سنة موتاكم. او په صحيح حديث كي راغلي دي چي يو مسلمان پر بل مسلمان شپږ حقه لري ومن جملتها ان يغسله بعد موته.

**پوه سه**: چي غسل د ميت لكه لمونځ د جنازې واجب كفايي دى چي بعض كسانو پر ځاى كړى د ټولو غاړي خلاصي دي.

وَإِنْ كُنْتُمْ مَرْضَىٰ أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ أَوْ جَاءَ أَحَدٌ مِنْكُمْ مِنَ الْغَائِطِ أَوْ لَامَسْتُمُ النِّسَاءَ فَلَمْ تَجِدُوا مَاءً فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا فَامْسَحُوا بِوُجُوهِكُمْ وَأَيْدِيكُمْ مِنْهُ

او كه تاسي واست مريضان يعني په داسي مرض چي د اوبو په استعمال خوف د مرض و او يا د زياتوب د مرض. او يا پر سفر واست چي اوبه نه وي او يا راغلى يو ستاسي له چكره يعني اودس ماته. او يا مو جماع وكړه د ښځو سره يعني د ماينو سره او اوبه مو نه كړې پيدا. نو تيمم ووهئ پر مځكه پاكه باندي. نو مسح وكړئ پر مخانو ستاسو او پر لاسونو ستاسو له هغې پاكې خاورې څخه "مرضى" جمع د مريض ده.

**درويش وايي**: چي يو د مريض تيمم په نيستي پوري د اوبو اړه نه لري بلكي په وخت كي د وجدان د اوبو هم تيمم ورته روا دى بالشرط المذكور. او نور ټول اقسام مذكوره په فقدان سره د اوبو په جواز د تيمم مقيد دى.

**فائده**: كلمه د "على" په على سفر" كي متعلق ده په محذوف پوري اى مستقرين على سفر.

**فائده**: غائط" په اصل كي كښته ځاى ته وايي دلته كنايه ده له اودس ماته څخه. ولي هغه څوک چي اودس مات كوي په مكان منخفض كي لئلا يراه الناس مراعاةً للمروة.

**فائده**: د "لمستم النسآء" مراد جماع دي ومثل هذه الكناية من الآداب القرآنية لأ التصريح باسم الجماع مستحجن.

**فائده**: مراد د عدم وجدان د اوبو عدم قدرت پر استعمال د ابو دى مثلاً اوبه په څاه كي وي لكن سولاغه او مرانده نه وي تيمم ورته روا دى.

**فائده**: د تيمم اصلي معنا قصد دى اى فاقصدوا له دې څخه دا معلومه سوه چي په تيمم كي نيت شرط دى كه څه هم په اوداسه كي نيت نه دى شرط. والسر فيه ان الماء مطهراً ومزيل بنفسه بخلاف التراب.

**فائده:** له "صعيد" څخه د ځمکې مخ مراد دی که شی شين کوي او که نه. او له "طيب" څخه مراد طاهر دی. او د امام شافعي رحمه الله په نيز طيب په معنا د منبت دی. نو پر ترخه يا تروه ځمکه تيمم نه دی روا.

**مسئله:** که يې پر داسې ښويې ډبرې چې خاورې نه وې باندې تيمم وواهه تيمم يې روا دی په نيز د ابو حنيفه رحمه الله خلافاً لابي يوسف رحمه الله. او که له جنس څخه د ځمکې نه ولکه يو پاک کالی په هغه کې ادنی ګرز شرط دی.

**فائده:** په مسح کې د لاسو تر مرفقينو رسول شرط دی لانه بدل من الوضوء. فيشترط فيه مايشترط في الوضوء. ولانه ﷺ تيمم فمسح يديه الى المرفقين.

**فائده:** کلمه د "باء" په "بوجوهکم" کې زائده ده. ولې چې مسح متعدي بنفسه ده.

**درويش وايي:** چې امام بغوي رحمه الله له لفظ څخه د "منه" په آيت کې دا فهمولې ده چې په تيمم کې تراب يعنې خاورې شرط دي حيث قال فيه دليل انه يجب مسح الوجه واليدين بالصعيد وهو التراب انتهى، امام مظهري رحمه الله که څه هم لوی ناقل دی د تفسير بغوي کما يدل عليه التفسير المظهري لکن په دې ځای کې يې پر بغوي رد کړی دی، دی وايي چې کلام د بغوي مبني دی پر دې چې کلمه لپاره د تبعيض ده، نو له دې کبله امام ابو يوسف او نور امامان هم وايي چې انه لايجوز التيمم على شئ من جنس الارض بلا نقع يعنې بېله ګرزه يعنې د خاورو اجزاء. مظهري د بغوي د قول په رد کې وايي چې محققين د اهل عربيت پر دې دي چې اصل معنی د من ابتداء الغاية ده، او معنی د من په تبعيض سره کول يا من بيانيه ګرځول وقرينې ته احتياج لري، نو حاصل د رد د مظهري دادی چې ابتداء د تيمم دې له صعيد څخه وي که خاورې وي که نه وي. علامه تفتازاني په حاشيه کې د کشاف چې تفتازاني رحمه الله خپله هم شافعي المذهب دی داسې وايي ذهب بعض الفقهاء يعني من الشافعية ان کلمة من اصلها للتبعيض وهذا ليس بسديد لاطباق هل اللغة العربية على انها لاتبداء الغاية انتهى کلام التفتازاني، علاوه داده چې معنا د تبعيض په دې آيت کې نه صحيح کېږي. ولې چې د من تبعيضي قانون دادی چې د من په ځای کې په لفظ د بعض رواړل صحيح وي، او په دې آيت کې ددې تصور هم نه سي کېدای، ولې که په ځای کې د من لفظ د بعض

راسي او د مسح معنی خو امرار الید دی، نو معنی د آیت داسي ده امروا ایدیکم ملصقاً بوجوهکم وایدیکم دا خو بلا ریب کلام تام دی مفعول به نه غواړي چي سري ووايي بعض الارض، دا وه پښتو ژباړه د مظهري د کلام.

## مَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيَجْعَلَ عَلَيْكُم مِّنْ حَرَجٍ وَلَٰكِن يُرِيدُ لِيُطَهِّرَكُمْ

اراده نه لري خدای ﷻ چي تاسي په اوداسه امر کوي او ګاهي په غسل. چي وګرځوي پر تاسي تنګي یعني په باب کي د طهارت، بلکي اراده د فراخی لري وتاسي ته. لکن اراده ددې لري چي تاسي پاک کړي له احداث خفیفه او غلیظه څخه په مذکوره درې نوع د طهارت. او یا معنا د آیت داده چي تاسي پاک کړي له ګنهو څخه، چناچه بغوي د حضرت عثمان ﷺ په روایت متصل روایت کړی دی چي عثمان ﷺ اودس تازه کړی دی درې درې واره، او بیا ده وویل چي ما له رسول الله ﷺ څخه اورېدلي دي "من توضاء وضوئي هذا خرجت خطایاه وجهه ویدیه ورجلیه" او نور حدیثونه هم په دې باره کي ډېر سته. ومن ذالک الحدیث الصحیح المروي عن رسول الله ﷺ "ایما رجل قام الی وضوئه" هر یو له خلګو څخه چي ولاړ سي و اوداسه ته "یرید الصلوة" او اراده یې وي و لمانځه ته "ثم غسل کفیه" بیا پرېمینځي لاسونه یعني تر بندو پوري او بیا خوله پرېمینځي "نزلت خطیئة لسانه" ځني توی به سي ګناه د ژبې او د شونډانو "مع اول قطرة" سره د اول څاڅکي "واذا غسل وجهه ویدیه الی المرفقین ورجلیه الی الکعبین" بیا پرېمینځي مخ او لاسونه تر څنګنو پوري او پښې پرېولي تر بجلګو پوري "سلم من کل ذنب هو علیه وکان کیوم ولدته امه" سالم او خلاص به سي له هري ګناه څخه چي هغه پر ده وي وه به ګرځي په داسي شان لکه هغه ورځ چي مور دی ځېږاوه یعني په وخت کي د ځېږېدلو خو پر ده هیڅ ګناه نه وه، اوس به هم پر ده هیڅ ګناه نه سي پاته رواه اصحاب السنن والبخاري.

**درویش وایي:** چي ددې حدیث عمل ډېر آسانه دی او ثواب یې تر اندازه بالا دی د نر او ښځي دواړو لپاره. فلیعمل به الشائقون لمغفرة الذنوب عملاً سهلاً واجراً عظیماً.

## وَلِيُتِمَّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ⁶

او خدای ﷻ نه ددې اراده لري وتاسي مؤمنانو ته چي پوره کړي خپل نعمت پر

تاسي باندي چي په دې ځای کي اتمام د نعمت بيان دی د درو مطهراتو لکه اودس غسل او تيمم چي پاکونکي دي د ابدانو له حدث اصغر او اکبر څخه او مکفر د گنهو دي کمامر او مفتاح د لمانځه دي چي معراج المؤمنين دی، ددې لپاره چي تاسي شکر ددې نعمت د خدای ﷻ وواياست. له معاذ بن جبل رضي الله عنه څخه احمد او ترمذي په سند متصل سره روايت کړی دی، قال قال رسول الله ﷺ تمام النعمة دخول الجنة دی، او پناه له دوزخ څخه ده، بخاري په سند متصل سره له ابي هريره رضي الله عنه څخه روايت کړی دی "قال اني سمعت رسول الله ﷺ يقول ان امتي يدعون يوم القيامة" زما امت به بلل کېږي په ورځ د قيامت "غراً محجلين من اثار الوضوء" سپين مخان او سپين لاسونه او سپيني پښې له اثارو څخه د اوداسه الى اخير الحديث.

**پوه سه**: چي کلمه د لام په درې سرو ځايو کي زائده ده، او وروسته تر لام ان مصدري مقدر دی، ولي چي حرف جر خو پر فعل نه داخلېږي او دا مصدر مفعول به دی د "يريد" والتقدير ما يريد الله جعل الحرج عليكم ولكن يريد تطهيركم ويريد تمام النعمة عليكم، او بيضاوي دا تقدير ضعيف گڼلی دی او يو تاويل بعيد ته تللی دی وهذا التاويل المذكور هو الاظهر والاقرب الى الفهم من تاويل البيضاوي.

**پوه سه**: چي مقصود له طهارت الثوب څخه پاکول د قشر خارج بعيد دی ومن طهارة البدن بالوضوء والغسل والتيمم چي قشر خارج قريب دی طهارت د زړه دی، او زړه مغز د باطن دی وطهارة القلب من نجاسات الاعمال كالحسد والكبر والرياء اهم د ټولو طهاراتو دی، لکن د خدای ﷻ له عظيم کرمه بعيده نه ده چي طهارت د قشرينو البعيد والقريب دي په طهارت کي د قلب لوی رول لوبوي، نو بايد په طهارت کي د قشرينو دي هر مسلمان کوشش او سعي پر کار اچوي.

وَاذْكُرُوا نِعْمَةَ اللهِ عَلَيْكُمْ

او تاسي پياد کړئ نعمت د خدای ﷻ پر تاسي.

**پوه سه**: چي نعمتو د خدای پاک پر مسلمانانو بېخي ډېر دي خصوصاً د عصر نبوي پر مسلمانانو

(۱) رالستول دي د اشرف الانبیاء محمد المصطفی ﷺ چي دا د ټولو مسلمانانو د فخر لوی نعمت دی.

(۲) انزال یعني نازلول د قرآن عظیم الشان چي تر قیامته پوري معجزه باقیه ده او پر خیراتو د دنیا او آخرت مشتمل دی.

(۳) توفیق دی د اسلام چي خیر الادیان دی.

(۴) غلبه پر کافرانو ده د عصر نبوي من المشرکین یوم فتح مکه والیهود في المدینة واطرافها.

(۵) والغنائم من الکفار خصوصاً یوم بدر الی غیر ذالک من النعم التي لاتحصی.

**پوه سه:** چي مقصود له ذکر څخه د نعمتو شکر دی د منعم حقیقي ولئن شکرتم لازیدنکم ع، ... شکر نعمت نعمتت افزون کند.

## وَمِيثَاقَهُ الَّذِي وَاثَقَكُم بِهِ

او در پیاد کړئ هغه وعده چي له تاسي څخه خدای ﷻ واخستله.

**پوه سه:** چي ددې میثاق له پیادولو څخه مراد وفاء بالمیثاق المذکور ده، بعض مفسرین وایي چي له میثاق څخه مراد هغه وعده ده چي علیه الصلوة والسلام به په وخت کي د بیعت له مسلمانانو اخسته چي تاسي به زما خبري اورئ او د هغو به فرمانبرداري کوي په "عسر او یسر" او که خوشاله یاست او که خوابدي. رواه البخاري ومسلم من حدیث عبادة بن صامت ﷺ، او یا هغه میثاق دی چي علیه الصلوة والسلام په مکه مکرمه کي په لیلة العقبة کي له انصارو څخه اخستی و عند بعض المفسرین کما رواه البخاري وغیره، او په نیز د بعضو مفسرینو میثاق د بیعة الرضوان دی په حدیبیه کي لکه چي په قرآن مبارک کي راغلي دي، او مجاهد او مقاتل وایي چي هغه میثاق مراد دی چي انسانان ټول له صلب څخه د آدم علیه السلام خدای ﷻ راوه ایستل او خطاب یې ورته وکړی "الست بربکم قالوا بلی" وهذا الاحتمال بعید من مقام الامتنان علی المسلمین، اذ هذا المیثاق شامل للکفار ایضاً، او بل دا ده چي ددې توجیه سره منافي ده دا وروسته "اذ قلتم آه" ولي چي مخاطب په دې آیت کي هغه کسان دي چي بیعت یې د رسول الله ﷺ سره کړی و او آیة بیعة کانت کما لایخفی.

إِذْ قُلْتُمْ سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا ۖ وَاتَّقُوا اللَّهَ ۚ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ ۝٧

چي تاسي به په بیعت کي ویل ستا خبري مو واورېدلې او موږ ستا اطاعت کوو.

**پوه سه**: چي دا آیت بیان دی د میثاق الماخوذ علیهم.

او له خدای ﷻ څخه وېرېږئ چي رحمت عامه د خدای ﷻ مه هېروئ او نقض د میثاق مه کوئ. په تحقیق خدای پاک په هغه شیانو چي ستاسي په سینو کي دي علم لري یعني په زړو کي من ذکر المحل وارادة الحال چي هغه د زړه وسوسې دي فضلاً عن ظواهر اعمالکم من الخیر والشر. نو په دې آیت کي هم وعد او هم وعید دی فافهم.

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُونُوا قَوَّامِينَ لِلَّهِ شُهَدَاءَ بِالْقِسْطِ ۖ

ای هغه کسانو چي ایمان یې راوړی دی. اوسئ مقیمین ثابتین لاوامر الله او تمسک او تعظیم د اوامرو د خدای ﷻ او تعظیم یې کوئ او کسالت او سستي مه پکښي کوئ فضلاً عن الترک. او شاهدي اداء کوئ په عدالت سره پر خپلو ځانو بالاقرار بحقوق الناس علیکم او پر خپلو قریبانو حتی پر پلار که د چا پوري پر باندي وي.

وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَآنُ قَوْمٍ عَلَىٰ أَلَّا تَعْدِلُوا ۚ

او تاسي دي باعث نه کړي سخت عداوت او دښمني د یو قوم لکه مشرکین یا یهودان پر دې باندي چي تاسي په سبب د شدت بغض به ددوی سره عدالت نه کوئ. یعني داسي کار ددوی سره چي خدای پاک تاسي ته نه وي روا کړی لکه پېزه، غوږونه او مذاکیر پرېکول چي دې کار ته مثلث وایي. یا قتل د ښځو ددوی یا د صبیانو ددوی. او یا نقض العهد ورسره کوئ لپاره ددې چي خپل بغض او حرارت په سړوئ.

**پوه سه**: چي دا حال د کفارو دی نو د مسلمانانو سره ترک د عدالت به څونه ګناه وي.

اعْدِلُوا هُوَ أَقْرَبُ لِلتَّقْوَىٰ ۖ وَاتَّقُوا اللَّهَ ۚ إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ ۝٨

او عدل کوئ چي عدل ډېر نږدې دی و تقوی ته چي تاسي مسلمانان په امر سوي یاست. او له خدایه بیرېږئ چي تقوی زاد الآخرة ده. او په تحقیق خدای ﷻ په عملو ستاسي. که ما مصدریه سي او یا په هغه چي تاسي عمل کوئ د هغه که ما موصوله سي. والعائد محذوف یعني تول له عملونه ستاسي د خدای ﷻ په علم کامل کي دي

سواء كانت خيراً أو شراً ففيه ايضاً وعداً لاهل الخير ووعيد لاهل الشر.

**بوه سه:** چي خداى ﷻ اول نهي وكړه د عدل د ترک او بيا يې په عدل سره امر وكړى تاكيداً لدفع نائرة الجور الذي هو ضد العدل.

وَعَدَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ ۙ لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَأَجْرٌ عَظِيمٌ ⑨

وعده كړې ده د خداى ﷻ د هغو كسانو سره چي ايمان يې راوړى وي يعني پر خداى ﷻ بالتوحيد او پر رسول د خداى بانه مبعوث منه تعالى الى كافة الناس او په قرآن سره چي دا كتاب من عندالله دى، او برسېره پر ايمان صالح عملونه هم كوي من الفرائض والواجبات چي دوى لره مغفرت دى يعني د ګنهو چي له دوى څخه صادر سوي وي، او د اجر عظيم چي جنت ومافيها من النعيم المقيم دى.

**بوه سه:** چي د اعراب له لاري الذين امنوا مفعول اول د وعد والمفعول الثاني لوعد محذوف وهو الجنة كما صرح به في مواضع، او جمله د "لهم مغفرة آه" تفسير ده د محذوف مفعول تفسير السبب للمسبب فان الجنة مسببة عن المغفرة وحصول الاجر فلا محل لها من الاعراب، او مظهري رحمه الله وايي چي جمله د "لهم مغفرة" په ځاى كي د مفعول ثاني ده وعد ولاړه.

**سوال:** جمله چي مفعول واقع كېږي چي قول وي، دلته خو وعد راغلى دى، نو جمله يې څرنګه مفعول ثاني واقع كېږي؟

**ځواب:** هو! لكن وعده يو قسم دى د قول، فتدبر هذاک الله تعالى.

وَالَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ الْجَحِيمِ ⑩

او هغه كسان چي كفر يې كړى وي هر كفر چي وي، كه شرک وي او كه يهوديت او نصرانيت، او تكذيب يې زموږ د آيات قرآنيه ووكړى وي، نو دغه كسان اصحاب دي يعني ملابس او ملګري د دوزخ په ملابست ابدي سره.

**بوه سه:** چي په دې آيت كي چي د كفارو په شان كي دى مزيد وعد د مؤمنانو لپاره دى، ولي هغه عذاب چي د ښمنانو ته د مسلمانانو وركول كېږي د مسلمانانو زړونه په سړېږي، او هغه ازار چي كفارو په په دنيا كي ودوى ته وركاوه هغه ازار د مسلمانانو له زړو څخه باسي.

**پوه سه**: چې اسانه اعراب ددې آیت دادي چې والذین سره د خپلې صلې دې مبتدا، وي او جمله د: "الٰئک آه" دې خبر وي، او عین ممکنه ده پر تقدیر ددې چې لهم مغفرة آه په محل کې نصب سي پر مفعولیت چې په دې آیت کې دې عطف د معمولي د وعد دې پر معمولین سابقینو د وعد وي. یعني وعدالله المؤمنین بالقول السابق و وعد الکافرین بهذا القول، یو حدیث چې روایت یې بغوي رحمه الله کړی دی چې حدیث طویل دی له ځایه څخه د حاجت فقیر نقل کوي چې علیه الصلوة والسلام او ابو بکر او عمر او عثمان او علي او طلحه او عبد الرحمن بن عوف رضي الله تعالی اجمعین پر کعب بن الاشرف الیهودي او پر بني النضیر چې کومک غني وغوښتې په یو دیت کې د قتل د دوو کسانو د بني سلیم چې ددوی او د علیه الصلوة والسلام تر منځ موادعت و، او هغه دوه کسان چې عمر بن امیه الغمري په خطاء کې وژلي وه، او ددغه کعب بن الاشرف او د بني النضیر تر منځ او د علیه الصلوة والسلام تر منځ قرار داد سوی و پر ترک د قتال او پر دې باندې چې په دیاتو کې په یو د بل کومک سره کوو، نو کعب بن الاشرف او بني نضیر ورته وویل نعم یا ابا القاسم اجلس حتی نطعمک، کښېنه موږ به ډوډۍ در کړو او د دیت کومک به هم درسره وکړو، نو علیه الصلوة والسلام او اصحاب کښېنستل دوی یو و بل ته په پټه سره وویل انکم لم تجدوا محمداً اقرب منه الآن. یعني تاسي نه سئ پیدا کولای محمد ﷺ نژدې تر دې اوس حالت فمن یظهر البیت فیطرح علیه صخرة فیریحنا" نو څوک به وخېژي بام (د خوني سر) ته پر علیه الصلوة والسلام به یوه لویه ډبره را ایله کړي، باره به موږ په استراحت سو له ده څخه یعني مړ به سي، نو عمرو بن جحش ورته وویل چې زه به ډبره پر ایله کړم، نو د ژرندې یو پل یې په دوو درو وبام ته وړیو رته کړی چې دوی به را ایله کاوه لاسونه یې له حرکت څخه وچ سوه. او جبرائیل راغلی او علیه الصلوة والسلام یې له موضوع څخه خبر کړی علیه الصلوة والسلام د مدینې پر خوا ولاړی او علي یې را وغوښتی چې دلته ودرېږئ هر څوک د اصحابو چې راتله او زما پوښتنه یې کوله ورته وایاست چې هغه مدینې ته ولاړی خیر څو صحابه کرام رضي الله عنهم چې د علیه الصلوة والسلام ملګري وه ټوله را ووتل او دا آیت نازل سو.

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اذْكُرُوا نِعْمَتَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ

اې هغه کسانو چې ايمان يې راوړی دی په ياد کړئ نعمت د خدای ﷻ پر تاسي.

**پوه سه**: چي مظهري رحمه الله دا شان نزول په حواله د ابن اسحاق صاحب المغازي او په حواله د ابن سعد په طبقات کي بيان کړی دی. او روح البيان شان نزول د آيت داسي بيان کړی دی چي مشرکانو عليه الصلوة والسلام او اصحاب دده په غزاء کي د ذات الرقاع چي غزاء د بني الانمار يې هم بولي چي اوومه غزء د عليه الصلوة والسلام وه، نو عليه الصلوة والسلام سره د اصحابو کرامو رضي الله عنهم د ماپښين پر لمانځه په جماعت سره ودرېدل لمونځ چي يې اداء کړی کفار چي په مقابل کي ولاړ وه پښېمانه سول چي کاشکي مو د لمانځه په وخت کي حمله پر کړې وای. بيا دوی سره وويل چي پروا نه لري چي مسلمانان وروسته بل لمونځ لري چي هغه لمونځ ودوی ته محبوب دی تر ابناء او ابناء. يعني د ماز ديگر لمونځ. پر هغه لمانځه چي دوی ودرېږي حمله به پر وکړو. نو خدای پاک صلوة الخوف نازل کړی او د مشرکانو له کيد او حملې څخه خدای پاک دوی وساتل. نو دا آيت نازل سو.

**درويش وايي**: چي ددې آيت لپاره مختلف نور شان نزوله په روح المعاني روح البيان مظهري کي راغلي دي چي د تولو راوړل به ډېر اطناب ته مفضي سي، او د متعلمينو به سبب د ملال وګرځي، نو مذکوره شان نزول کافي دی والله اعلم بالصواب.

إِذْ هَمَّ قَوْمٌ أَنْ يَبْسُطُوا إِلَيْكُمْ أَيْدِيَهُمْ فَكَفَّ أَيْدِيَهُمْ عَنْكُمْ ۖ وَاتَّقُوا اللَّهَ ۚ وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ ﴿١١﴾

هغه وخت چي قصد وکړي يو قوم چي په شان نزول کي ذکر سول.

**پوه سه**: چي کلمه د اذ ظرف دی د "نعمة" لپاره او مفعول د "هم ان يبسطوا" دی چي دوئ خپل لاسونه وغځوي يعني بالقتل والاهلاک وتاسي ته.

**درويش وايي**: چي عربي محاوره د بسط اليه يده يعني للقتل وبسط اليه لسانه يعني شتمه. نو خدای پاک بند کړه لاسونه ددوی ستاسي څخه يعني ستاسي له ضرر رسولو څخه او د خدايه بېرېږئ او خاص پر خدای ﷻ توکل او

اعتماد کوي مؤمنان، ولې چې د خير رسول او د شر دفع کول د خدای ﷻ په قدرت کې دي وبس،

**يوه سه**: چې "واتقوا الله" عطف دی پر دمخه "اذکروا" باندي، او د نحو د قانون سره سم تقديم ماحقه التاخير د حصر فائده کوي، نو "على الله" چې پر خپل عامل فليتوکل دمخه سو. حصر یې فائده کړې يعني خاص پر خدای ﷻ دي توکل کوي مؤمنان، يعني نه پر غير د خدای ﷻ نه انفراداً او نه اشتراکاً دي تکيه کوي.

**فائده**: د توکل محل زړه دی يعني په زړه کې د بنده به داوي او دا به یې يقين وي چې هر خير يا شر چې ماته رسېږي په تقدير سره د خدای ﷻ دی. شاعر افغاني وايي

تول خير وشر بوله له خدای څخه کله،.. پېښېږي ښک وبد له خپلي رايي څخه

لکن کسب د ظاهر په طلب کې د رزق په تجارت سره يا د طلب د شفاء د مرض په ادويه طبيه سره منافي د توکل قلبي سره نه دی.

مصرع..... کسب کن پس تکيه برجبار کن

صوفيه کرام وايي چې اعلى مرتبه د توکل داده چې مؤمن به خپل ځان په حضور کې د قدرت د خدای داسي لکه مړی چې غاسل یې مينځي او پر يوه خوا او بله خوا یې اړوي، ابراهيم ﷺ چې نمرود عليه اللعنة و اورته ورغورځاوه په هوا، کې جبرائيل ﷺ ورته راغلی او ورته وه یې ويل هل لک من حاجة ابراهيم ورته وويل اما اليک فلا، جبرائيل ﷺ ورته وويل وخدای ﷻ ته عرض نه لرې، ابراهيم ﷺ ورته وويل حسبي من سوائي علمه بحالي. زما کافي له سوال څخه د خدای ﷻ علم دده زما په حال سره. نو هغه و غيرت الهي هم پر جوش راغلی، وقلنا يا نار کوني برداً وسلاماً على ابراهيم انا کذالک نجزي المحسنين اى المتوکلين على"

**حکايت**: يو حکيم يعني عالم د علم باطن پر يوه سرمايه داره سړي چې له هنر او علم څخه بې برخي و داخل سو، او دې سرمايه داره سړي يو نوی قصر جوړ کړی او مفروشات غالية القيمة یې پکښي اوار کړي وه، حکيم چې ورننوتی سرمايه دار يوازې پر چوکۍ ناست و، نو حکيم وتوخل او ناړي یې د سرمايه داره پر مخ توه کړې، نو سرمايه داره ورته وويل چې دادې څه بې عقلي وکړه ايها الحکيم،

حکیم ورته وویل چي دا عین حکمت دی، ولي چي ناړي خو خلګ پر یو بې کاره ځای توکي زه چي ستا کور ته راغلم ستا په کور کي مي بې کاره ځای نه ولیدی. نو ځکه مي ستا پر مخ در تو کړه لخلوک عن الفضائل العلمية والعملية، نو سرمایه داره پوه سو چي حکیم رشتیا وایي، زموږ د زماني حکیمان یعني د دروا غو پیران یا غوړه مال ملایان چي د سرمایه داره چي په پښنه تړلی خر هم وي نژدې ودې ته وي چي د سرمایه داره لاس دي ورمچ کړي. ولي چي دده طمع د دنیا وي. له ابي عثمان ﷺ څخه روایت دی چي عیسی عليه السلام پر یوه غره ناست و چي شیطان په لباس کي د سړي ورغلی او ورته وه یې ویل چي رشتیا تا ویلي دي چي هر کار په تقدیر د خدای ﷻ دی؟ عیسی عليه السلام ورته وویل هو! نو ابلیس ورته وویل چي ته له دې غره ځان وغورځوه، نو ته وایي چي مرګ او ژوند په تقدیر د خدای دی. نو یا به په تقدیر د خدای ﷻ مړ سې او یا به ژوندی پاته سې. عیسی په پوه سو چي شیطان دی. نو عیسی عليه السلام ورته وویل چي خدای عليه السلام له بندګانو څخه امتحان اخلي بندګان حق نه لري چي له خدایه امتحان واخلي.

**وَلَقَدْ اَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ۚ**

خدای ﷻ وعده محکمه واخستله له بني اسرائیلو څخه یعني په هغه وخت کي چي فرعون او جنود دده په دریاب کي غرق سوه او بني اسرائیل فارغ القلب سوه له فرعون څخه او تورات نازل سو.

**درویش وایي:** چي ددې اخذ المیثاق پوره بیان په دې تفسیر کي د سورة البقرة په تفسیر کي تېر سو عند قوله تعالی "واذ اخذنا میثاقکم ورفعنا فوقکم الطور" فارجع الیه ولانعیده لحال تطویل التفسیر بما لایحتاج الیه کما لایخفی.

**وَبَعَثْنَا مِنْهُمُ اثْنَيْ عَشَرَ نَقِيْبًا ۭ**

او موږ مقرر کړه دوی ته دوولس رئیسان او مشران چي دوی دوولس سبطه وه. پر سبط یو رئیس خدای ﷻ ودوی ته وټاکی چي هغه ددوی حالات ونبي ته رسوي او د امر او نهي به ودوی ته رسوي او هر نقیب به د خپل سبط ضامن وي چي دده سبط به وفا، په امر او نهي د خدای ﷻ کوي، او د نقیب به دوی ته یعني هر

نقیب و خپل سبط ته نصیحت هم کوي، او دا ټوله قصه په زمانه کي د موسی وه،
او په هم دې اساس په صحیح حدیث کي راغلي دي علیه الصلوة والسلام چي په
مکه مکرمه کي و او یو وفد د انصارو د مدینې ورته راغلي وه نو علیه الصلوة
والسلام ودوی ته دوولس نقیبه ور وټاکل.

## وَقَالَ اللّٰهُ اِنِّیْ مَعَكُمْ

او خدای ﷻ ودوی ته وویل چي زه ستاسي سره ملګری یم یعني په عون او
کومک سره یا په معیت بلا کیف سره یعني تر هغو چي تاسي پر میثاق ثابت او
محکم یاست چي په دې معیت سره به خدای ﷻ توفیق درکړي د پر ځای کولو د
او امرو د خدای ﷻ او منع له منهیاتو څخه او اطمنان د زړه هم.

## لَئِنْ اَقَمْتُمُ الصَّلٰوةَ وَاٰتَیْتُمُ الزَّكٰوةَ وَاٰمَنْتُمْ بِرُسُلِیْ

که تاسي اداء کوئ لمونځ او ورکاوه مو زکوة، یعني هغه لمونځ او زکوة چي په
دین کي د موسی علیه السلام فرض سوی و. او تاسي ایمان ولرئ پر رسولانو دده.

**درویش وایي**: چي جمع یې په دې سبب راوړه چي یوازي ایمان پر
موسی علیه السلام نه دی کافي بلکي پر ټولو رسولانو ایمان لازم دی که دمخه تر
موسی وه او که وروسته وه لکه عیسی علیه السلام په وروسته رسولانو کي علیه
الصلوة والسلام هم داخل دی، ولي چي ایمان پر موسی علیه السلام او دده پر کتاب
تورات قصباندي لازموي ایمان پر علیه الصلوة والسلام، نو پر دوی لازمه ده چي
وایي به "لانفرق بین رسله" لانه حکم التوراة.

## وَعَزَّرْتُمُوْهُمْ

او تاسي تعظیم د ټولو رسولانو وکړئ او کومک ورسره وکړئ یعني اذا ادرکتم زمانهم.
**بوه سه**: چي لام د "لئن" موطئه د قسم محذوف دی، په صحاح کي وایي چي د
جوهري د لغتو کتاب دی، چي تعزیر کومک دی سره د تعظیم.

## وَاَقْرَضْتُمُ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا

او تاسي به قرض ورکوئ وخدای ﷻ ته قرض حسن، ځوک وایي چي قرض د
خدای ﷻ دادی چي په لارو کي د خیر به انفاق کوئ کالزکوة والصدقات النفلیة، او

بعض وايي چي هر عمل حسن قرض دى و خداى ﷻ ته لانه باق عند الله كالقرض عند المستقرض او يا مضاف محذوف دى اى اقرضتم عباد الله.

**پوه سه**: چي "قرضاً حسناً" يا مفعول مطلق دى كه په اقرضتم كي معنى مصدري مراد وي. او يا مفعول به كه په معنى د مال مقروض وي.

**فائده**: قرض حسن د انسانانو په منځ كي دادى چي احسان پر مديون نه اچوي، او قرض حسن و خداى ﷻ ته دادى چي عجب او ريا نه وي پكښي.

لَأُكَفِّرَنَّ عَنكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ وَلَأُدْخِلَنَّكُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ

زه په هر آئينه وبخښم وتاسي ته ګنهونه ستاسي. او زه به خامخواه داخل كړم تاسي و باغو ته چي د جنت په نامه يادېږي، داسي جنتونه چي بهېږي لاندي تر هغو يعني لاندي تر درختو د هغو ځلور ولې شيدې، عسل، اوبه او شراب.

**پوه سه**: چي "لاكفرن آه" جواب ده له لئن او قائم مقام د جزاء هم ده.

فَمَن كَفَرَ بَعْدَ ذَٰلِكَ مِنكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَاءَ السَّبِيلِ ﴿١٢﴾

كه څوك كفر وكړي وروسته تر ميثاق مؤكد ستاسي څخه، نو وركه يې كړه سمه لار.

**پوه سه**: چي اضافت د "سواء السبيل" دى د صفت و موصوف ته اى السبيل المستوي الموصل الى رضاء الله والى النعيم المقيم في الجنة. والمراد "ضل" ضلالاً بعيداً عن الحق.

فَبِمَا نَقْضِهِم مِّيثَاقَهُمْ لَعَنَّاهُمْ

پس په سبب ددې چي دوى نقض وكړى يعني د وعدې خلاف ورزي يې وكړه، ولې چي نصارى وو د عليه الصلوة والسلام تكذيب وكړى او له ايمان راوړلو څخه يې ډډه وكړه. او يهودانو د عليه الصلوة والسلام او د عيسى عليه السلام له نبوت څخه انكار وكړې. او د نورو انبياؤ څخه يې هم انكار وكړى ونبذوا كتاب الله التوراة وراء ظهورهم.

**پوه سه**: "لعناهم" عطاء رحمه الله وايي موږ دوى لېري كړه له خپل رحمت عامه څخه. او حسن بصري او مقاتل وايي چي موږ دوى مسخه كړه. او يو قول ضعيف دا هم دى چي پر دوى مو جزيه واچول.

# وَجَعَلْنَا قُلُوبَهُمْ قَسِيَةً

او موږ وګرځول زړونه ددوی سخت جزاً لاستمرارهم على الكفر ونقض الميثاق.

**پوه سه:** چې د قاسیه معنی غلیظ او سخت دی چې په ذکر د خدای ﷻ نه لرم کېږي او په آیتو او معجزاتو سره قبول د حق نه کوي. او ابن عباس ﷺ د قاسیه تفسیر په وچ سره کړی دی ولعله مناسب لقول الصحاح حجر قاس. یعني وچه او کلکه ډبره.

**پوه سه:** چې حمزه او کسائي رحمهما الله دا لفظه "قسِيَّة" په تشدید د یا وایي، بغوي ﷺ وایي چې دا دوه لغته دي او معنا یې یوه ده لکه ذاکیة وذکیة. او قاضي بیضاوي وایي چې یا مبالغه د قاسیة ده او یا یې معنا ردیة ده.

# يُحَرِّفُونَ الْكَلِمَ عَنْ مَوَاضِعِهِ

دوی یعني د یهودانو ملایان تغییر ورکوي کلماتو ته د خدای ﷻ په تورات کي له خپلو ځایو څخه. یعني هغه څوک چې مراد دي په آیتو کي د تورات چې نعوت د علیه الصلوة والسلام پر حال د دجال ملعون یې برابروي او بعض علماء وایي چې مراد له تحریف څخه غلط تاویل دی د آیاتو د تورات.

**پوه سه:** چې "یحرفون" جمله مستانفه بیانیه د قسوة د زړو ددوی ده. ولي چې اعلی د قسوة مرتبه تغییر د آیاتو د کتاب الله دی لکه یوه فرقه معلومة الاسم والحال چې هغه آیات د قرآن عزیز چې په باره کي د مشرکانو د مکې راغلي وه پر تولو مسلمانانو د نړۍ سوی د خپلي منحوسي ډلي یې تطبیق کوي او دده ډله وباني ته ددوی ګروپ مجدد الدین وایي رښتیا ده چې دې شخص هغه دین چې علیه الصلوة والسلام پر هغه وه بدل یې کړی او نوی دین یې خلګو ته راوړی.

# وَنَسُوا حَظًّا مِمَّا ذُكِّرُوا بِهِ

**پوه سه:** چې مراد له هېرې څخه ترک دی ای ترکوا او تنکیر د "حظاً" لپاره د تعظیم دی یعني حظاً عظیماً له هغه څه څخه چې ودوی ته پند ورکړه سوی و یعني په تورات کي د تعلیم د انبیاء و.. د بني اسرائیلو چې یو له هغه څخه ایمان پر محمد ﷺ او آیة الرجم و.

**درویش وايي:** چي كه بعض علماء زموږ لپاره د خوشحالۍ د يو رئيس جمهور او لپاره د اخذ د نقودو له یو سرمایه داره څخه د قرآن مبارک د بعض آیتو تاویل او ترجمه غلطه وکړي هغه عالم هم په تحریف کونکي کي حساب دی، بیت
سخن عشق به بی خرد گفتن بر رگ مرده نشتر زدن است

وَلَا تَزَالُ تَطَّلِعُ عَلَىٰ خَآئِنَةٍ مِّنْهُمْ

او همېشه ستا علم راځي پر يو خيانت ددوی یعني یهودانو، نو پر دې ترجمه "خائنة" مصدر دی لکه كاذبة په معنا د كذب او لاعنة په معنا د لعنت ويولو، او يا خائنة پر خپله معنا د فاعلة دی په تقدیر د موصوف مؤنث یعني نفس خائنة او فرقه خائنة، او يا لفظ د خائنة صیغه د نسبت ده لکه لابن او تامر والتاء للمبالغة ای فعلة ذات خيانة عظيمة.

**پوه سه:** چي ضمير د "منهم" راجع دی وتولو بني اسرائیلو ته چي په عصر نبوي کي موجود وه او اطلاع د عليه الصلوة والسلام پر خيانت ددوی یا بالمشاهده دی او يا په وحي الهي سره، والحاصل ان خيانة اليهود كانت عادة لهم حفظوها من اسلافهم، ولي چي اسلافو ددوی د تېر سوو انبياؤ سره يې خيانت کاوه، او ستا د زماني یهودان بیا ستاسره خيانت او غدر کوي، حتى ستا د قتل پروګرام يې بسته کړی و کمام قصته، او تا ته يې د یوې ښځي په ذریعه زهر درکړه، او دوی ستا سره وعده کړې وه چي نه ستا كومک کوو په جنګ کي د مشرکانو د مکې او نه د هغو سره مرسته کوو، او سره د هغه به ددوی وفد مکې ته ولاړه او مشرکان د مکې يې هڅول پر جنګ ستا سره.

إِلَّا قَلِيلًا مِّنْهُمْ ۖ فَاعْفُ عَنْهُمْ وَاصْفَحْ

مګر نه يو لږ کسان د یهودانو چي صالحان کسان وه له امت څخه د موسی عليه السلام چي بیا يې پر عیسی عليه السلام هم ایمان راوړی، او يا صالحان کسان ددوی ستا په عصر کي چي پر تا يې ایمان راوړی لکه عبدالله بن سلام او دده د اکثا زامن او ملګري يې رضي الله عنهم، نو ته عفوه کوه ودوی ته او تعرض مه کوه ودوی ته یا په عذاب او په عتاب پر هغو کارو چي دوی ته زهیر کړی يې، بعض مفسرین وايي

چي کـه دوی توبـه وکـاږي او او ايمـان راوړي، ولـي پـه توبـه او ايمـان سره د کفر د وخت تولـه عملونـه عفوه کېږي او کـه پـر کفر پاتـه وي، نـو بـه جزيـه درکـوي او معاهده به درسره کوي، او بعض مفسران وايي چي دا آيت مطلق دی او منسوخ په آية القتال دی، يعني قوله تعالى "قاتلوا الذين لايؤمنون بالله".

## إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ ﴿١٣﴾

په تحقيق د خدای ﷻ خوښ دي احسان کونکي.

**بوه سه:** چي دا آيت علت دی د امر بالصفح والاعراض، او تنبيه ده پر دي عفوه و کافر خائن ته احسان دی، نو مسلمان ته به څرنګه احسان نه وي، سعدي رحمه الله:

عدو را بالطاف گردن به بند | که نتوان بريدن به تيغ و کمند
چو دشمن کرم بيند و لطفا وجود | نيايد ديگر خبث باطن ازو در وجود
وگرخواجه بادشمنان نيک خوست | بسي بر نيايد که گردند دوست

## وَمِنَ الَّذِينَ قَالُوا إِنَّا نَصَارَىٰ أَخَذْنَا مِيثَاقَهُمْ

او د هغو کسانو څخه چي دوی وايي چي موږ نصاری يو موږ اخستی دی ميثاق ددوی.

**بوه سه:** چي جار و مجرور يعني "من الذين" متعلق دی په "اخذنا" پوري او دا جمله معطوف ده پر هغه قول د خدای ﷻ "ولقد اخذ الله ميثاق بني اسرائيل" او ضمير د "ميثاقهم" راجع دی و موصول تـه يعني "الذي قالوا" نو معنا د آيت داده چي موږ اخستي وه لـه نصاری وو څخـه پـه انجيـل کي او پر ژبـه د عيسی عليه السلام ميثاق د نصاری وو چي هغـه ميثاق دا وو چي تاسي بـه امتثال کوئ د ما امر في الانجيل چي هغه مصدق دی تر هغه دمخه کتاب چي تورات دی؛ او انجيـل مبشر دی بنبي ياتي من بعدي اسمه احمد.

**درويش وايي:** چي هغـه دويمـه توجيـه د آيت چي مظهري کـړي ده ضـمير د "ميثاقهم" راجع و بني اسرائيلو تـه دی ډېره بعيده ده، ولـي آيت چي پر ظاهر جوړېږي يعني چي ضمير راجع و "الذين قالوا" ته سي، نو حذف ته مضاف يعني لفظ دمثل ته او مرجع بعيد ته چي بني اسرائيل دي څه ضرورت سته.

**پوښتنه:** څه حکمت الهي دی چي داسي وويل سوه "ومن الذين قالوا آه" او تر دي

اخصر لفظ یعني "ومن النصاری" نه وویل سو؟

**ځواب:** ددې وجه صاحب د روح البیان په متابعت د حسن بصري رحمه الله داسي ویلې ده چي په موجوده عبارت کي تنبیه پر دې ده چي دا تسمیه په نصاری سره اسماني تسمیه یعني له طرفه د خدای پاک نه ده، بلکي خدای پاک ددوی د قول حکایت وکړی یعني هغه وخت چي عیسی علیه السلام پر خپلو ایمان والو روغ وکړی "من انصاري الی الله، قال الحواریون نحن انصار الله" او امام مظهري خو د حسن بصري رحمه الله توجیه راوړې ده لکن وروسته یې ویلي دي. والاولی ان یقال انه تعالی لم یقل ومن النصاری اخذنا میثاقهم آه" لیدل علی انهم یسمون انفسهم ادعاءً لنصرة الله ولیسوا کذالک آه" بیا چونکه دی په دې پوه سو چي هغه ځوک چي دا نوم یې پر ځان ایښی دی یعني الحواریون هغه په رښتیا انصار وه د دین الله. نو یې ولي ولیسوا کذالک ووایه؟ نو یې جواب داسي ورکړی دی وفیه تعریض علی الموجودین في زمن النبي ﷺ لانهم لیسوا کذالک یعني لو کانوا کذالک لآمنوا بالنبي علیه السلام لان نصرة دین الله بعد بعثة النبي ﷺ محصور من جانب الله في متابعة النبي العربي ﷺ، او په اخیر کي مظهري ویلي دي لا علی اسلافهم یعني تعریض پر اسلافو د دوی نه دی فان منهم یعني له اسلافو څخه ددوی من کانوا انصار الله علی الحقیقة انتهی قول المظهري مع ترجمة القندهاري لبعض عبارته.

## فَنَسُوا حَظًّا مِّمَّا ذُكِّرُوا بِهِ

نو هېر کړی یعني اکثر الموجودین في زمنه ﷺ او بعض من قبلهم هغه برخه کافیاً خپله له هغه شي څخه چي دوی ته نصیحت کړه سوی و په هغه سره یعني په انجیل کي چي ایمان راوړل وه پر علیه الصلوة والسلام باندي یعني تر بشارت په دې الفاظو د انجیل چي ترجمه یې دا وه "ونبشرک بنبي یاتي من بعدي اسمه احمد" او خپل مذاهب او خواهشات نفسانیه په مخه واخسته او درې ډلې سوله په باره کي د عیسی علیه السلام ملکانیة، نسطوریة او یعقوبیة حتی چي بعضو به ویل چي عیسی علیه السلام خدای دی او مور یې هم خدای ده والله ثالث ثلثة، او بعضو به ویل چي عیسی علیه السلام ابن الله دی، او بعضو به ویل چي عیسی علیه السلام پخپله

خدای دی، او سره ددې په انجیل کې خو یوه له دغو درو خبرو نه وه بل ذالک قولهم بافواههم واهوائهم.

## فَأَغْرَيْنَا بَيْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاءَ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ

نو موږ لازم او ملصق او جوت کړې په منځ کې ددوی یعني دغو درو ډلو عداوت او دښمني، او بغض یو له بله سره یعني دا مذکوره اختلاف ددوی په باره کې د عیسی ؑ د قیامت تر ورځې پورې.

**پوهه**: چې خدای پاک "الی یوم القیامة" وویل. ولې چې په ورځ د قیامت به دا ښکاره سي چې دا درې سره ډلې پر باطل وې انما المسیح هو عبدالله ورسوله ویس.

## وَسَوْفَ يُنَبِّئُهُمُ اللَّهُ بِمَا كَانُوا يَصْنَعُونَ ﴿١٤﴾

او ژر دی چې خدای ﷻ به دوی خبر کړي یعني په جزاء او عذاب في الآخرة په سبب د هغه شي چې دوی کاوه په دنیا کې من الکفر في شان عیسی والمعاصي او عدم الاقتداء بالکتب ومنها الانجیل والقرآن الکریم.

**درویش وایي**: چې دا آیت وعید شدید دی ددوی لپاره لکه یو سړي ته چې د بد عذاب اراده وي نو داسې ورته وواېي چې ژر دی چې زه به تا خبر کړم په هغه کار چې ما اراده کړې ده وتاته چې ستاسره هغه کار وکړم.

## يَا أَهْلَ الْكِتَابِ قَدْ جَاءَكُمْ رَسُولُنَا

اې اهل کتابو په تحقیق تاسي ته راغلی دی رسول زموږ یعني محمد ﷺ.

**پوهه**: چې له اهل کتابو یهود او نصاری دواړه مراد دي.

**سوال**: د یهود کتاب خو تورات و او د نصاری وو کتاب خو انجیل و، نو دا خو دوه کتابه دي، نو کتاب یې ولې مفرد راوړی؟

**ځواب**: الف لام لپاره د جنس دی.

## يُبَيِّنُ لَكُمْ كَثِيرًا مِمَّا كُنْتُمْ تُخْفُونَ مِنَ الْكِتَابِ وَيَعْفُو عَنْ كَثِيرٍ

چې تاسي ته بیانوي ډېر هغه شیان چې تاسي پټ کړي وه له کتاب څخه یعني په تورات او انجیل کې لکه نعت د نبي ؑ او آیة الرجم په تورات کې او ډېری د

علیه الصلوة والسلام په نبوت سره دده په انجیل کې او عفو او اعراض کوئ د ډېرو ستاسو پټ کړو کارو څخه. ولې چې په هغو کارو پورې امر د نبي تعلق نه لري، نو رسوا کول به کومه فائده لري.

قَدْ جَآءَكُم مِّنَ ٱللَّهِ نُورٌ وَكِتَٰبٌ مُّبِينٌ ﴿١٥﴾

عطف دی پر "رسلنا" یعنې تاسې ته راغلی دی کتاب چې بیانونکی دی د احکام الهیه وو، او یا معنا داده چې اعجاز یې ظاهر دی. نو "مبین" یا اسم فاعل متعدي دی یا لازمي.

**پوه سه:** چې قرآن کریم هم نور دی چې خلګ له ظلمات څخه د کفر ونور ته د ایمان رابولي او هم کتاب مبین دی. او بعض مفسران وایي چې مراد له نور څخه علیه الصلوة والسلام دی لکونه هادي الی طریق الحق والاسلام.

يَهْدِي بِهِ ٱللَّهُ مَنِ ٱتَّبَعَ رِضْوَٰنَهُۥ سُبُلَ ٱلسَّلَٰمِ

**پوه سه:** چې که نور او کتاب یو سي نو خو مفرد روارل د ضمیر به پرېوانه لري، او که له نور څخه علیه الصلوة والسلام او له کتاب څخه قرآن عظیم الشان سي، نو د توحید د ضمیر توجیه داده چې علیه الصلوة والسلام او قرآن حکماً سره یو دي چې دواړه هادي الی الحق والاسلام دي، او یا په اعتبار ددې چې علیه الصلوة والسلام مبعوث الهي دی او قرآن منزل الیه دی معجزة له.

**ترجمه:** لارښوونه په هغه خدای ﷻ و هغه چاته چې متابعت کوي د خدای د رضا، چې په ایمان راوړلو کې نغښتې ده ولارې ته د سلامتیا له عذاب څخه د آخرت بلکې له عذابه د دنیا هم له دې سببه چې څوک چې عمل بالقرآن وکړي او غلا نه کوي، نو په دنیا کې به له عذابه د لاس پرې کېدو خلاص وي، او څوک چې عملاً بالقرآن عمداً مړي نه کوي نو د قصاص في الدنیا به خلاص وي، او څوک چې په مراعات د حکم د قرآن زناء نه کوي، نو له عذابه د درو وهلو یا رجم به په دنیا کې خلاص وي وعلی هذا فقس شرب الخمر. والافطار عمداً الصوم رمضان وغیرهما نو پر بیان مذکور لفظ د سلام مصدر دی چې معنی یې سلامتي له عذاب څخه. او دا احتمال هم سته چې لفظ د سلام دي نوم د خدای ﷻ

وي. يعني ولاړو ته د خداى او لارې د خداى ﷻ شرائع د اسلام دي.

وَيُخۡرِجُهُم مِّنَ ٱلظُّلُمَٰتِ إِلَى ٱلنُّورِ بِإِذۡنِهِۦ

او خلګ باسي له تاريكيو څخه د كفر ورڅا ته د ايمان په اراده د خداى ﷻ.

**پوښتنه:** "ظلمات" خداى پاک په لفظ د جمع راوړی، او "نور" يې په صيغه د مفرد وجه يې څه ده؟

**ځواب:** مراد له "ظلمات" څخه انواع د كفر دي، او انواع د كفر ډېري دي لكه شرک، مجوسيت، دهريت، يهوديت او نصرانيت، او مراد له "نور" څخه ايمان او اسلام دی چې هغه يو دی.

**بوه سه:** چې د "ظلمت" اطلاق پر كفر او د "نور" اطلاق پر ايمان مجاز تشبيهي دی كما لايخفى فافهم.

وَيَهۡدِيهِمۡ إِلَىٰ صِرَٰطٖ مُّسۡتَقِيمٖ ﴿١٦﴾

او هدايت كوي عليه الصلوة والسلام او قرآن عزيز د خلګو ولارې سمې ته، چې سړی د هغې لارې په تلو سره به خداى ﷻ ورسېږي او په آخرت كې وجنت النعيم ته واصل سي.

**فائده:** هدايت و طريق مستقيم ته عين هدايت دی و سبل السلام ته.

**سوال:** عطف خو تغاير غواړي په منځ كې د معطوفينو فكيف الاتحاد بينهما كما قلت؟

**ځواب:** نحات وايي چې تغاير وصفي لكه په دې ځاى كې چې سته پر ځاى د تغاير ذاتي درول كېږي.

لَّقَدۡ كَفَرَ ٱلَّذِينَ قَالُوٓاْ إِنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلۡمَسِيحُ ٱبۡنُ مَرۡيَمَۚ

په تحقيق سره كافران سوي دي هغه كسان چې ويلي يې وه چې په تحقيق خداى چې دی مسيح يعني عيسى بن مريم دی.

**بوه سه:** چې قائلين ددې قول يعقوبيه دي د نصارى وو قائلون بالاتحاد بين الله والمسيح.

**درویش وایي:** چي تعجب دی ددې خلګو عقلو ته. اخیر عاقلان که نه وه انسانان خو به وه عیسی بن مریم خو په اتفاق سره د دوی د مریم له رحمه څخه پر طریقه د نورو ښځو د تولد پر ډول پیدا سوی دی. نو که عیسی علیه السلام خدای وای، نو د مریمې د لنګیدو دمخه چي عیسی علیه السلام څني پیدا سو د اسمانو او ځمکي بلکي د تولو مخلوقات نظام د چا په قدرت چلیدی. او د مریمې مور او پلار اجداد او امهات نو چا پیدا کړي وه.

**سوال:** هیڅ چا خو په اتحاد د خدای او عیسی قول نه دی کړی له نصاری وو څخه نو څرنګه یې نسبت د اتحاد ودوی ته صحیح دی؟

**ځواب:** هو! دوی خو تصریح په اتحاد نه ده کړې لکن ددوی له دې قول څخه چي دوی به ویل ان فیه ای في عیسی لاهوتاً خدای سته او دا به یې هم ویل لا اله الا واحد. نو له دې قول څخه ددوی دا لازمه سوه چي مسیح خدای دی. نو خدای پاک په دې آیت کي لازم د قول د دوی و دوی ته منسوب کړی چي اتحاد دی لان القول باللازم قول بالملزوم لپاره د بیان د جهل ددوی او لپاره د رسوا والي ددوی.

**بوه سه:** چي نصاری د نجران چي لپاره د بحث و مدینې منورې ته راغلي وه علیه الصلوة والسلام ته یې وویل چي خدای ګاهي په بدن کي د انسان یا په روح کي د یو انسان حلول کوي، نو هغه انسان باره خدای سي. قالوا ومن جملة ذالک عیسی فیکون اذا الهاً لعن الله بکفرهم. نو دا آیت نازل سو.

**قُلْ فَمَنْ يَمْلِكُ مِنَ اللَّهِ شَيْئًا إِنْ أَرَادَ أَنْ يُهْلِكَ الْمَسِيحَ ابْنَ مَرْيَمَ وَأُمَّهُ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا**

ته دوی ته ووایه چي څوک دی قادر پر دې چي له خدای جل جلاله څخه دي منع کړي یو شی. که خدای جل جلاله اراده وکړي چي مسیح بن مریم دي هلاک کړي او دده مور دي هم هلاک کړي، او هغه څوک چي په ځمکه کي تول ه دي هلاک کي. والاستفهام للانکار ای لا مانع لقدرته تعالی یعني عیسی علیه السلام او مور دده خو یو مخلوق دی لکه نور مخلوقات لکه هغه چي قابل د هلاکت دي. نو عیسی او دده مور هم په سبب د حدوث او امکان قابل د هلاکت دي. او خدای جل جلاله خو

چونکه واجب الوجود دی قابل د هلاک نه دی، نو عیسی او مور دده لکه نور مخلوقات خدایان نه دي فبطل قول اليعقوبية بالطريق البرهاني.

**درویش وایي:** چي که مطالعه کونکي زما د تفسیر په قیاساتو عقلیه وو پوهیدای ما به په عربي یو قیاس مرتب کړی د شکل اول له قسمه څخه سالبة الکبری لينتج السلب الكلي وهو ان لا شئ من المخلوق بآلـه فافهم، على نهج قولهم كل انسان حيوان ولا شئ من الحيوان بحجر ينتج لاشئ من الانسان بحجر.

**وَلِلَّهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ**

او خدای پاک لره ده بادشاهي يعني الملك والتصرف د اسمانو يعني ما مع فيها من الملائكة والكواكب وغير ذالک او د ځمکي يعني مافيها من الخزائن وما عليها من الحيوانات والنباتات، او د مابين د اسمانو او ځمکو من كائنات الجو التي لايعلمها الا الله ﷻ او خدای پاک پیدا کوي هغه شی چي ورته اراده یې سي.

**بوه سه:** چي بعض خلگ بېله مادې او نقشې پيدا کوي لکه اسمانونه او ځمکه. او بعض مخلوق له داسي مادې څخه پیدا کوي چي د جنس د هغه مخلوق نه وي لکه آدم من تراب. او يا له یوازي نر څخه لکه حواء من ضلع آدم او بعض له یوازي ښځي څخه لکه عيسى عليه السلام من مريم بنت عمران. او بعض مخلوق د نر او له ښځي څخه لکه عمومي انسانان او نور حیوانان.

**وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۱۷﴾**

او خدای پاک پر هر شي قادر دی من الاحياء والاماتة وغير ذالک ولايعلم جنود ربک الاهو.

**نتیجه:** نو څرنګه به يو وي هغه څوک چي شان د هغه امکان او حدوث او احتياج وي لکه عيسى عليه السلام د هغه ذات مقدس سره چي مذکوره شیان د هغه مخلوق دی لکه نصاری چي ددې اتحاد دعوه کوي.

**بوه سه:** چي ابن اسحاق رحمه الله له ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چي ګڼ شمېر یهودان او ددوی احبار و علیه الصلوة والسلام ته راغله نو دوی د علیه الصلوة والسلام سره خبري وکړې. او علیه الصلوة والسلام په وعظ او تبلیغ د بېري له

عذاب څخه د خدای ﷻ که ایمان را نه وړي شروع ورته وکړه، نو دوی ورته وویل چي ته موږ ولي بېروې له عذاب څخه او حال دادی چي موږ زامن د خدای یو او دوستان د خدای ﷻ یو لکه عیسی، فانزل الله تعالی هذه الآیة الآتي. وفي المثنوي

د امن او گیر ای یار د لیر    کو منزه باشد از بالا و زیر
نی چو عیسی سوی گردون برشود    نی چو قارون درزمین اندر شود

له عبادة بن الصامت رضي الله عنه څخه روایت دی عن النبي ﷺ قال من شهد ان لا اله الا الله وحده لاشریک له وان محمداً عبده ورسوله وان عیسی عبدالله ورسوله وکلمته القاها الی مریم وروح منه والجنة حق والنار حق ادخله الله الجنة علی ماکان من عمل.

**درویش وایي:** چي موږ ټوله مسلمانان دا ټولي خبري وایو او حق یې بولو، فادخلنا الجنة مع الابرار والنجاة من النار علی ای عمل کنا علیه من المعاصي وانا نرجوا ذالک من فضلک العمیم تصدیقا لنبیک الکریم.

## وَقَالَتِ الْيَهُودُ وَالنَّصٰرٰى نَحْنُ اَبْنٰٓؤُا اللّٰهِ وَاَحِبَّآؤُهٗ ط

**پوه سه:** چي بعض مفسران ددوی ددغه قول داسي ترجمه کوي چي خدای پاک موږ لره لکه پلار داسي دی په مهرباني او لطف کي، او موږ لکه زامن داسي یو په قرب او منزلت کي، او ابراهیم نخعي رحمه الله وایي چي یهودانو په تورات کي دا آیت پیدا کړی "یاابناء احباري" ای زامنو د علماؤ د تورات، نو یې په دې بدل کړی یاابناء ابکاري، نو څکه یې وویل نحن ابناء الله، او بعض مفسران یې په حذف د مضاف ترجمه کوي یعني نحن ابناء رسول الله، او بعض مفسران وایي چي د یهودانو مراد دا و، چي موږ اتباع د خدای د زوی عزیر علیه السلام یو، او د نصاری وو مراد دا و چي موږ اتباع د خدای د زوی یعني عیسی یو.

**درویش وایي:** چي دعوې د یهودانو او د نصاری وو چي موږ احباء د خدای ﷻ یو خو کذب بحت و، او په حقیقت کي احباء د خدای ﷻ اولیاء الله دي علی اختلاف درجاتهم بعض عوام احباء دي او بعض خواص احباء دي، او بعض یې اخص الخواص احباء دي، اللهم اسلک بنا مسالک کراماتهم.

قُلْ فَلِمَ يُعَذِّبُكُمْ بِذُنُوبِكُمْ

ته ورته ووایه اې محمده ﷺ، نو ولې خدای پاک تاسي په عذابوي په سبب د ګنهو ستاسي.

**پوه سه**: چي کلمه د فاء جواب د شرط محذوف ده ای ان صح ماقلتم فلم آه، ولي چي مهربانه پلار خو زوی نه په عذابوي، او قادر حبیب خو هم خپل حبیب نه په عذابوي، او سره ددې چي خدای ﷻ تاسي ته په دنیا عذاب د قتل او بندي کولو په لاس د مسلمانانو یا د نورو دښمنانو تاسي ته درکوي، او مسخ په قردة او خنازیرو سره ستاسي په برخه کړې وه او دا وعید یې هم درکړی دی چي په ورځ د قیامت په دوږخ کي یاست فدعوا کم اذاً باطلة.

بَلْ أَنْتُمْ بَشَرٌ مِمَّنْ خَلَقَ يَغْفِرُ لِمَنْ يَشَاءُ وَيُعَذِّبُ مَنْ يَشَاءُ

بلکي تاسي یو بشر یاست د هغو خلګو چي خدای ﷻ پیدا کړي دي، نو لکه نورو لره چي جزاء د ښه کار او بد کار سته تاسي لره هم ورته جزاء سته. او خدای بخښي یعني ماسوی له کفر څخه و هغه چاته چي اراده د بخښي ولري فضلاً منه تعالی اذ لاوجوب علیه تعالی او عذاب ورکوي هغه چاته چي مشیت یې وي عدلاً منه.

وَلِلَّهِ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا وَإِلَيْهِ الْمَصِيرُ ⑱

او خدای ﷻ لره دی تصرف او سلطنت د اسمانو او مځکي او د منځ د اسمانو او مځکي او خدای ته ستاسي ورتګ دی، یعني په ورځ کي د قیامت، نو ټول، چي مملوک د خدای دی او په مملوکیت سره برابر، نو عیسی ﷵ هم یو مخلوق او مملوک دی نه ابن الله دی او نه خدای دی او نه هم ثالث ثلثه دی، کما یدل علیه الفرق الثالثة من النصاری کمامر.

**پوه سه**: چي په "الیه المصیر" کي وعد للمؤمنین و وعید للکافرین دي.

**شان نزول**: محمد بن اسحاق له ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چي علیه الصلوة والسلام یهودانو ته دعوت د اسلام ورکړی، نو معاذ بن جبل او سعد بن عبادة رضي الله عنه ورته وویل یا معشر الیهود اتقوا الله، له خدایه وبیرېږئ قسم په خدای دی چي تاسي ښه پوهېږئ چي علیه الصلوة والسلام رسول د خدای ﷻ دی، او

قسم په خدای دی چې تاسي به دمخه تر بعثت دده مونږ ته به مو ذکر د نبي اخیر الزمان کاوه، او واقعي نعوت چې په تورات کې د نبي اخیر الزمان وه مونږ ته به مو بیانوله. نو رافع بن حرملة او وهب بن یهودا وویل چې مونږ تاسي ته هیڅ بیان نه دی کړی او تر موسی علیه السلام وروسته هیڅ نبي نسته. او تر تورات وروسته هیڅ کتاب نسته فانزل الله تعالی.

يَٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ قَدۡ جَآءَكُمۡ رَسُولُنَا يُبَيِّنُ لَكُمۡ عَلَىٰ فَتۡرَةٖ مِّنَ ٱلرُّسُلِ

ای اهل کتابو یعني الیهود والنصاری.

**درویش وایي:** چې که څه هم مخاصمین د علیه الصلوة والسلام او د سعد بن عبادة او معاذ بن جبل رضی الله عنه سره یهودان وه کمامر في شان النزول لکن عبرت او اعتبار عموم لره د لفظ دی خصوص لره د مورد نه دی ولهذا شملت الآیة النصاری ایضاً لعموم لفظ اهل الکتاب. په تحقیق سره تاسي ته راغلی دی رسول زمونږ یعني محمد ﷺ چې تاسي ته بیانوي شرائع د دین اسلام من العقائد والعلمیات حذف هذا المفعول لظهوره لان حال الرسول یدل علی ذالک، او یبین لکم ماکتمتم یې حذف کړی لتقدم ذکره، او جمله "یبین" حال ده له "رسولنا" څخه والمعنی جائکم رسولنا مبینا لکم. په وخت کې د فتور او د انقطاع د وحي وروسته تر عیسی علیه السلام وحي قطع سوي وې تقریباً شپږ کاله.

أَن تَقُولُواْ مَا جَآءَنَا مِنۢ بَشِيرٖ وَلَا نَذِيرٖۖ فَقَدۡ جَآءَكُم بَشِيرٞ وَنَذِيرٞۗ وَٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيۡءٖ قَدِيرٞ ۝١٩

**بیوه سه:** چې د "ان" دمخه مضاف محذوف دی ای کراهة. والمعنی له جهته د کراهت ددې عذر ستاسي چې تاسي به وایاست چې مونږ ته نه زیري کونکي د جنت راغلی و، او نه بیرونکی د دوزخ راغلی و نو مونږ معذوره یو. نو په تحقیق هغه راغلی و تاسي ته زیري کونکی او بیرونکی، یعني محمد ﷺ، او خدای پاک پر هر شي قادر دی قدرة تامة. نو ګاهي وحي پرله پسې را استوي لکه په منځ کې د موسی او عیسی علیهما السلام چې ددغو نبیانو تر منځ یو زر اووه سوه کاله، او یا یو زر او پنځه سوه کاله فاصله وه، او په دې دوران کې خدای پاک یو زر انبیاء علیهم السلام

را استولي وه، او گاهي خدای پاک په را استولو کي د نبي څنډ ورکړی لکه په منځ کي د عيسی او محمد على نبينا وعليه والسلام چي په منځ کي د دوی بعض راويان وايي چي شپږ سوه کاله، او بعض راويان وايي پنځه سوه او شپېته کاله فاصله وه.

**پوښتنه**: چي اکثره رواة الحديث پر دې متفق دي چي تر عيسی عليه السلام وروسته بل نبي نه دی راغلی بېله محمد ﷺ، مظهري وايي چي په دې آيت احسان اچول دي د خدای جل جلاله له خوا پر موجودينو د عصر نبوي ﷺ چي په داسي وخت کي يې عليه الصلوة والسلام وتاسي ته را واستوی چي د وحي آثار قطع سوي وه، او خلګ د بر و وحي ته لالهانه وه، او په حديث صحيح کي راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام وويل "انا اولى الناس بعيسى بن مريم فانه ليس بيني وبينه نبي".

**پوښتنه**: بعض خلګ وايي چي خالد بن سنان عليه السلام په منځ کي د عيسی او د عليه الصلوة والسلام نبي و؟

**ځواب**: خالد بن سنان اخبار د برزخ بعد الموت بيانول او اظهار د نبوت يې په دنيا کي نه دی کړی، او نه يې هم دعوه د نبوت کړې ده، وقصته على ما في روح البيان، چي خالد بن سنان په بلادو کي د عدن اوسېدی چي ناګاه يو اور د يو نژدې غره له غاري څخه را ووتی چي د هغه ځای کښتونه او مواشي يې تول له منځه يوړه، نو د هغه ځای خلګ تول له خالد بن سنان ته ورغله چي د دې اور چاره يا په دعاء له خدايه يا په يو بل شي سره را وکړه، نو خالد لکړه پسي ورواخسته دا اور يې په لکړه وواهه، نو اور چي له کومي غاري څخه را وتلی و بېرته په هغه غار ننوتی، نو خالد وخلو زامنو ته وويل چي زه په اور پسي په دې غاري ننوځم او دا اور هلته وژنم چي وروسته بيا دا واقعه پېښ نه سي، او دوی ته يې وويل چي پوره درې ورځي درې شپې وروسته ماته را ناري کړئ، ولي که تر درې ورځي دمخه تاسي ماته را ناري کړې زه به را ووځم لکن مرمه، او که پوره درې ورځي وروسته مو را ناري کړې زه به سالم را ووځم، دی چي ننوتی او دوې ورځي تېري سوې شيطان يې د زامنو په زړه کي دا وسوسه ورواچوله چي څه فرق لري پسې ناري کړئ که ژوندی و را وه به وځي، نو زامنو يې صبر ونه کړی په دې گمان چي اوس به په غار کي اور سوځلی

وي. پاره يې ور ناري کړې، نو خالد له غاره را ووتی او پر سر يې ډېر درد و. زامنو ته يې وويل چې زه مو ضائع کړم او زما وصيت مو نه کړی پر ځای، او زامنو ته يې د خپل موت خبر ورکړی او ورته وه يې ويل چې ما به قبر ته وسپارئ. حاصل د حکايت د سنان دادی چې دی داسي شخصيت و چې مجاب الدعواة و.

**درويش وايي**: چې بيانول د خالد بن سنان احوال البرزخ دا بيان روح البيان په ډېره اوږده قصه بيان کړی دی ان شئت فرجع اليه.

**وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِ يَا قَوْمِ اذْكُرُوا نِعْمَةَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ إِذْ جَعَلَ فِيكُمْ أَنبِيَاءَ**

او ذکر کړه يا محمد ﷺ هغه وخت چې وويل موسی عليه السلام و خپل قوم ته يعني بني اسرائلو ته ای زما قومه په ياد کړئ نعمت د خدای ﷻ پر تاسي چې پيدا کړي يې دي په تاسي کي انبيا، چې تاسي ته لار د خدای ﷻ دروښيي. او احکام د خدای پاک دروښيي، ولي هر نبي نعمت دی د خدای ﷻ د هغه د امت لپاره. فالانبيا. الکثيرون نعم کثيرة.

**فائده**: په هيڅ امت کي دونه ډېر نبيان خدای ﷻ نه دي را استولي لکه په بني اسرائيلو کي.

**وَجَعَلَكُم مُّلُوكًا**

ای جعل بعضکم ملوکاً بحذف المضاف اذ الکل لا يمکن انيکون ملوکاً او هو من قبيل قولهم بنو فلان قتلوا، مع ان القائل منهم واحداً. يعني نسبت د فعل د بعض يې وکل ته وکړی، او دا هم لکه نبوت چې په دوی کي ډېر وو، داغه رنگه وروسته تر هلاک د فرعون بادشاهان يو په بل پسي ډېر وه حتی چې په غرور د سلطنت بعض ملوک ددوی بغاوت مختار کړی له امر څخه د خدای ﷻ حتی چې يحيٰ عليه السلام يې په قتل ورساوه او اراده د قتل د عيسی عليه السلام يې هم کړې وه لکن هغه خدای پاک اسمانو ته ځني بوتلی. او ابن عباس رضی الله عنه وايي چې مراد له ملکو څخه اصطلاحي ملوک نه دي بلکي مراد خاوندان د خادمانو او نوکرانو او ددبدبې دي ولم يکن لمن قبلهم خدم يعني بتلک الکثرة کمالهم، په حديث کي د عبد الله بن عمرو بن العاص راغلي دي چې يو سړي له ده څخه پوښتنه وکړه السنا من

فقراء المهاجرين فقال له عبد الله بن عمرو بن العاص ﷺ ته ماينه لري په کور کي هغه ورته وويل هو! عبد الله ﷺ ورته وويل چي سرای لهري د اوسېدو لپاره. هغه ورته وويل هو! نو عبد الله ﷺ ورته وويل چي ته خو نو له اغنياؤ څخه يې هغه ورته وويل چي خادم هم لرم. عبد الله ﷺ ورته وويل تو خو له ملوکو څخه يې. او نور هم تفسيرونه د مملکاتو رواتو کړي دي.

وَاٰتٰكُمْ مَّا لَمْ يُؤْتِ اَحَدًا مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ ۝

او خدای ﷻ درکړي دي تاسي ته هغه شيان چي هيڅ چا ته نه دي ورکړه سوي د عالميانو ستاسي په زمانه کي. ولي چي د انبياء عليهم السلام په مجلس په مشرف واست. او نور مراتب د قرب الی الله تعالی. او په دنيا کي به مو هم شان وشوکت لورِ و. او د موسی ؑ غلبه پر لوی دښمن د خدای او د رسول د فرعون په غرقېدو سره معاينه کړه الی غير ذالک من الکرامات والمکرمات.

يٰقَوْمِ ادْخُلُوا الْاَرْضَ الْمُقَدَّسَةَ الَّتِيْ كَتَبَ اللّٰهُ لَكُمْ

اې قومه داخل سئ و مځکي مقدسي ته چي فرض کړی دخول د هغې ارض مقدس پر تاسي باندي لکه لمونځ، روژه وغيرهما من الفرائض. دا هم مقوله ده د موسی ؑ ودوی ته.

**درويش وايي:** چي راويان په ارض مقدسه کي اختلاف لري چي کومه مځکه څني مراد ده. مجاهد ؒ وايي چي کوه طور و ماحوله څني مراد دی، ضحاک وايي چي ايلياء او بيت المقدس څني مراد دی، عکرمه او سدي وايي چي اريحاء څني مراد دي، او کلبي ؒ وايي چي دمشق، فلسطين او بعض اردن څني مراد دي. قتاده وايي چي ټوله شام څني مراد دی. کعب احبار ددې اخيري ارادې په تائيد کي وايي چي ما په کتاب منزل کي ليدلې ده چي شام خزانه د خدای ﷻ ده په مځکه کي او په شام کي خزانې د بنوو بندګانو د خدای ﷻ سته او مقر د انبياء کرامو دی او مسکن د مؤمنانو دی قديماً وحديثاً. نو ځکه يې ارض مقدسه وبلل.

وَلَا تَرْتَدُّوْا عَلٰٓى اَدْبَارِكُمْ فَتَنْقَلِبُوْا خٰسِرِيْنَ ۝

او تاسي مه ځئ د شا پر خوا يعني مصر ته. نو که تر شا راسئ تاسي به وګرځئ

تاوانیان یعني له ثواب څخه د دنیا او اخرت به محرومه پاسته.

**پوه سه:** چي بعض مفسرینو لکه صاحب د روح البیان وغیره د کتب الله لکم ترجمه داسي کړېده چي کتب الله في اللوح المحفوظ چي دا ارض مقدسه به ستاسي د قرار ځای وي.

**پوه سه:** چي پر دې تقدیر یو شرط مقدر غواړي یعني ان آمنتم واطعمتم الله في قوله تعالى یاقوم ادخلوا آه" لقوله تعالى فيما سيأتي وروسته تر دې چي دوی عصیان وکړي له امر څخه د خدای ﷻ فانها محرمة عليهم اربعين سنة. او عین ممکنه ده چي ضمیر د لکم دي و بني اسرائیلو ته راجع وي په اعتبار د بعضي افرادو چي مطیعین د امر الله وي. او ضمیر د "محرمة علیهم آه" نسبت و بعض اخر ته وي چي عاصین د امر الله وي. نو معنا داده چي په لوح محفوظ کي دغه دواړه قسمه نوشته دي یعني کتب الله لکم ای للمطیعین المحرمة علیکم آه ای على العاصين، او یا داسي ووایه چي "محرمة" خو مقید دی په "اربعين سنة" سره. نو وروسته به تر څلوېښت کاله ارض مقدسه د تولو مسکن وګرځي وکان كذالک.

**درویش وایي:** پر دې دواړه تقدیره هغه سوال دفع سو چي په منځ کي د "کتب لکم في اللوح المحفوظ" او د هغه آیت "محرمة علیکم اربعین سنة" تعارض دی.

**پوه سه:** چي بغوي او روح البیان دواړو داسي قصه راوړې ده چي خدای ﷻ د موسی ﷺ سره وعده وکړه چي زه ارض مقدسه یعني شام تا او ستا قوم ته په تصرف درکوم یعني د جهاد په سبب، او ارض مقدسه د کنعانیانو په تصرف کي وه چي په شام کي زر قریې وې او په هره قریه کي زر باغه وه. نو خدای پاک و موسی ﷺ ته وویل "یاموسی اني کتبتها لکم داراً وقراراً فاخرج وجاهد من فیها من الجبابرة الذین هم عداء الله" او موسی ﷺ ته خدای ﷻ وویل چي له بني اسرائیلو څخه چي دوولس قومه وه په هر قوم کي یو نقیب یعني رئیس او مشر وروټاکه چي هر نقیب به د خپل سبط ضمانت د وفاء کوي بما امر الله به. موسی ﷺ هم دغسي وکړه، نو موسی خپل قوم راوهي کړی لکن صحیح تعداد چا نه دی بیان کړی دا قدر په تفاسیرو راغلي دي چي د موسی ﷺ

عسکر فرسخ مضروب في الفرسخ مخکه کي به يې اړول، نو چي موسی الطّیٰلا او قوم دده و اريحاء ته نږدې سول، نو موسی الطّیٰلا هغه دوولس نقيبان لپاره د تجسس او د معلومات د جبابره واستول، نو دوی چي هغه وطن ته ورغله يو نفر د جبابره وو چي عوج بن عنق يې نوم و ددوی سره ملاقي سو چي ددې عوج بن عنق (۳۳۳۳) درې زره درې سوه درې دېرش گزه او يو ثلث زراع يې قد و، او وريځ به دده د پرتگانۍ تر ځايه وه او ده به د وريځي اوبه څيښلې او ماهي به يې له درياب د بېخه راوکښې او اسمان ته به يې پورته کړې په لمر به يې پوخ کړې او خوړې به يې. او راوي وايي چي د طوفان نوح اوبه د عوج تر زنگنو پورې وې او درې زره کاله يې عمر و حتى چي دده پر لاس ووژل سوه تعداد يې نه دی معلوم. نو عوج مذکور چي دا دوولس نقيبان وليدل او د پټو غوزی يې هم پر سر و. نو دا دوولس سره يې په گنډه چخ کړه او ټول يې د ماينې و مخ ته وغورځول. او ماينې ته يې وويل چي دا کسان وايي چي موږ ستا سره جنگ کوو. نو ماينې ته يې وويل چي دا دوولس سره تر يوه پښه لاندې چوختان کړم؟ هغې ورته وويل يا مه يې وژنه چي دوی خپل وروسته لښکر ته دا حال ورکړي، او په هم دغه قصه کي دا راغلي دي چي عوج يو لوی غر په قدر د عسکر د موسى راپورته کړی چي پر هغو يې وړ ايله کړي او ټول تر لاندې کړي، نو خدای ﷻ ملا چرگک پيدا کړی او په مښوکه يې هغه سوری کړی او د عوج په غاړه کي ولوېدی عوج غځار سو او موسى الطّیٰلا ورولاړ سو او مړ يې کړی.

**درويش وايي:** چي قصه خلاصه سوه. خو زه وايم چي د عوج قصه او د قدد عنق قصه او د ملاچرگک قصه دا ټوله دروغ دي نه په يو حديث صحيح يا ضعيف کي راغلي دي او نه يې عقل او نه يې نقل مني، او محدثين ټولو له دې قصې څخه انکار کوي. او تعجب ودې ته دی چي بغوي چي ځان محدث بولي او ډېر حديثونه په سند سره ذکر کوي دا قصه څرنگه رانقل کوي. او مظهري چي له بغوي څخه اکثره ځايونه په خپل تفسير کي نقل کوي هغه هم دا قصه د بغوي په سخت رد سره کړې ده لکن عبارت يې داسي ويلی دی فيه مبالغات آه.

**درویش وايي:** چې داسې قصه يا مثل ددې قصې د اسلام د سپېڅلي دين رنګ په بدېدو، د دين اسلام منکرين به وايي چې ستاسې په اسلامي تفاسيرو کې داسې له عقله لېرې قصې ستته. البته دا قدر صحيح ده چې جبابره اعظم جثه وه تر نورو عادي خلکو او په قوت او زور کې هم ډېر قوي وه او زرر آور وه.

خير نقباء دوولس نفره چې راغله او موسى عليه السلام ته يې د جبابره وو صورت حال ووايه، نو موسى عليه السلام ورته وويل چې دا د جبابرو حال پټ وساتئ او عسکر د بني اسرائيلو مه په خبروئ چې بيا بېزاره کېږي او جنګ ته نه ځي، نو دغو دوولسو نقباؤ هره يوه صورت حال د جبابره وو خپل سبط ته بيان کړى، مګر دوو کسانو حال مطابق د امر سره د موسى عليه السلام حال پټ وساتى، يو يوشع بن نون بن افرايم بن يوسف او بل کالب بن يوحنا چې د موسى عليه السلام زوم و يعني د خور ميړه يې و مريم بنت عمران، چې له سبط څخه د يهودا و، خير دا خبره د جبابره وو چې په بني اسرائيلو کې شائع سوه، ټولو په لوړ آواز بغاري او ناري کړې، او داسې يې وويل ياليتنا متنا بمصر، کاشکي موږ په مصر کې مړه واى. وليتنا نموت ولا ندخل ارض الجبابرة، او کاشکي موږ مړه سو او د جبابره و مځکو ته داخل نه سو فتکون نسائنا و اولادنا واثقالنا غنيمة لهم، نو زموږ ښځې او اولادونه او سامانونه به ټوله غنيمت سي و جبابره وو ته.

**درویش وايي:** چې اخيري نتيجه د حال د نشر او اشاعت کولو دا سوه چې قوم د موسى عليه السلام يعني بني اسرائيلو په کلکه سره منع وکړه له جبابره وو له جنګ څخه، او موسى عليه السلام ته يې داسې وويل.

**قَالُوا يَٰمُوسَىٰٓ إِنَّ فِيهَا قَوْمًا جَبَّارِينَ**

دوی وويل اې موسى عليه السلام په تحقيق سره په دې ارض مقدسه کې يو قوم ستته چې ډېر جابران دي.

**پوهه:** چې جبارين جمع د جبار ده چې صيغه د مبالغې ده مشتق دی له جبر څخه، نو د جبار معنا هو العالي چې خلګ مجبوره کوي پر مايريد باندې، بغوي وايي چې جبار هغه څوک دی چې وسر ته يې د چالاس نه رسېږي لکه په دې

محاوره کي نخلة جبارة اذا کانت طویلة ممتنعة عن وصول الایدي الی راسها. نو جبابره چي په دې نامه مسمی سول په سبب د ډېر جګوالي د قامت ددوی تر عادي خلګو او په سبب د قوت په اجسامو کي ددوی او یا په سبب د ډېر والي ددوی د لښکرو او د اموالو او د حربي آلاتو. او دوی په قول د بغوي د عمالقه وو او د بقایا وو څخه د قوم عاد وه، نو قوم د موسی عليه السلام وده ته دا خبره هم وکړه.

وَإِنَّا لَن نَّدْخُلَهَا حَتَّىٰ يَخْرُجُوا مِنْهَا فَإِن يَخْرُجُوا مِنْهَا فَإِنَّا دَاخِلُونَ

او موږ هر ګز نه داخلېږو مځکي ته د جبابره وو تر هغه وخته چي دوی ووځي. نو که دوی ووځي له ارض مقدسه څخه نو موږ بیا داخلېږو. نو حاصل ددوی ددې ځواب دادی چي موږ ددوی د جنګ طاقت نه لرو. راوي وایي چي بني اسرائیلو چي دا خبره وکړه او وه یې ویل چي موږ بیر ته مصر ته ستانه کېږو. نو موسی او هارون چي پر سجده خدای ﷻ ته پراته وه، نو ددې دوو کسانو حال خدای پاک په دې آیت کي بیان کړی.

قَالَ رَجُلَانِ مِنَ الَّذِينَ يَخَافُونَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِمَا ادْخُلُوا عَلَيْهِمُ الْبَابَ

وویل دوو کسانو له هغې ډلي څخه چي د خدای ﷻ له عذاب بېرېدل چي کالب او یوشع نومېدل علی الروایة المشهورة، چي خدای ﷻ احسان کړی و پر دوی په ایمان او ټینګ والي سره پر ایمان چي داخل سئ پر جبابره وو باندي پر دروازه د قریه ددوی، یعني دروازه محکمه ورته ونه سئ په زور او ازدحام سره یعني چي دوی صحرا ته در څخه ونه وځي.

فَإِذَا دَخَلْتُمُوهُ فَإِنَّكُمْ غَالِبُونَ

چي تاسي پر دروازه ور داخل سئ، نو په تحقیق تاسي به پر دوی غالبه وګرځئ.

**پوه سه:** چي انعم الله علیهما دوهم صفت دی د رجلانو. او دا خبره چي دوی وکړه "فاذا دخلتموه الخ" دا د غایت محکم والي د ایمان وه، او بل په دې سبب چي خدای ﷻ خپله وعده پوره کوي یعني کتب الله لکم، او دې دوو کسانو و نورو بني اسرائیلو ته وویل چي موږ خو جبابره ولیدل په بدن غټ غټ وه لکن زړونه یې ضعیفه وه.

وَعَلَى اللّٰهِ فَتَوَكَّلُوْٓا اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۲۳﴾

او دې دوو کسانو وویل و نورو بني اسرائیلو ته چې د خدای ﷻ توکل واخلئ یعني پر خدای ﷻ تکیه او اعتماد وکړئ په دې جنګ د جبابره وو که تاسې په کامل ایمان سره موصوف یاست، ولې چې خدای ﷻ ناصر دی د خپلو اولیاؤ پر اعداؤ خپل. نو بنو اسرائیلو غوښته چې دغه دوه کسان په ډبرو وولئ. ولې چې دوی ته پېغور د "ان کنتم مؤمنین" ورکړی لکن موسی علیه السلام دوی له دې رجم څخه منع کړه.

قَالُوْا يٰمُوْسٰٓى اِنَّا لَنْ نَّدْخُلَهَآ اَبَدًا مَّا دَامُوْا فِيْهَا فَاذْهَبْ اَنْتَ وَرَبُّكَ فَقَاتِلَآ اِنَّا هٰهُنَا قٰعِدُوْنَ ﴿۲۴﴾

او وویل بني اسرائیلو و موسی علیه السلام ته یعني په ډېره سپین سترګي او بې حیایي سره، چې اې موسی موږ نه داخلېږو و وطن ته د جبابره وو ابداً. تر هغو پورې چې جبابره پکښې موجو وي په دې قریه کې نو ولاړ سه ته او ستا خدای او رب جنګ وکړئ د جبابره وو سره موږ دلته درته ناست یو. یعني تا او ستا خدای چې د جبابره وو وطن فتح کړی پر موږ دغ وکړئ نو موږ به هم در داخل سو.

**فائده**: دا خبره چې دوی وکړه فاذهب آه، دا پر حقیقت نه ده محمول بلکې دا خبره يې استهزاءً په خدای او په رسول د خدای چې موسی و وکړه وعدم المبالات بهما. نو په دې خبره تو له کافران سوه. ولې چې استهزاء په خدای او په رسول سره کفر دی په ادیانو کې بالاجماع. او مظهري وایي چې دا خبره یعني چې دوی استهزاءً دا خبره وکړه مستبعد جداً. ولې چې په دې خبره خو دوی کافران وګرځېدل. نو بیا مصاحبت ددوی سره څرنګه کېدای سوای. او سره ددې چې د موسی علیه السلام سره مصاحب وه. او پر دی باندې په تیه کې من او سلوی نازېدل. او وریځ به یې پر سرو سایوان وه له ګرمی څخه د لمر. او لپاره د شرب د دوی انفجار د عیون کېدی آه.

**درویش وایي**: چې اولاً د کفارو مصاحبت او ددوی لپاره خواست د نعمت خو د علیه الصلوة والسلام له خوا هم واقع سوی چې په بخاري وغیره کې راغلي دي

چي عليه الصلوة والسلام چي تمرد ده كفار د قريش او دوام پر كفر او قسم قسم استهزاء د دوى يې وليده داسي ښېرا يې وكړه. اللهم اعني عليهم بسبع كسبع يوسف. يعني ماته كومک پر دوى راكړې په اووه كاله قحط لكه اووه كاله قحط چي يوسف په زمانه كي و. نو پر اهل مكه قحط مسلط سو تر دې حده چي جيف به يې خوړې او تازه هډوكي به يې په اوبو كي ايشول او هغه به يې څښل الى غير ذالک من اثار القحط. نو ابو سفيان و عليه الصلوة والسلام ته خواست وكړى او خداى ﷻ بارانونه وكړه. واما ثانياً د اسرائيلو كفر او ايمان گړى په گړى بدلېدله. ولي چي موسى عليه السلام طور ته ولاړى د تورات د راوړلو لپاره دوى په عبادة العجل سره كافران سوه كمامر قصته. موسى عليه السلام راغلى دوى بيرته توبه وكښل له عبادة العجل څخه حتى په قتل الانفس سره راضي سوه په توبې كي كمامر ذالک ايضاً مفصلاً. نو په موجوده واقعه كي كه څه هم دوى په استهزاء بالله ورسوله كافران سوه لكن وروسته د موسى عليه السلام له وعظ او هيبت څخه يې بيرته توبه وكښل پر استهزاء. او په تيه كي دوى د خداى ﷻ په عذاب اخته وه. لكن چونكه دا عذاب موقت و په اربعين سنة سره. او په دونه ممتد وخت كي خو د خوړو او اوبو څخه چاره او د لمر د گرمۍ وساتني ته ضرورت و. نو ځكه خداى ﷻ په عين عذاب تر وخت د ميعاد مقرر دوى ته هم من او سلوى د خوراک لپاره ور مقرر كړه. او د شرب لپاره يې له ډبري څخه په ضرب د موسى بالعصاء انفجار العيون وركړې. او له گرمۍ څخه يې په سايه سره د وريځي نجات وركړى.

**سوال**: كه دوى توبه د استهزاء بالله ورسوله څخه كښلې واى. نو دوى ته عذاب په تيه كي ولي وركول كېدى؟

**ځواب**: تيه خو په سبب د امتناع ددوى وه د جنگ سره د جبابره وو او ارض مقدسه ته د نه داخلېدو په سبب، نه په سبب د استهزاء.

**درويش وايي**: چي وروسته مظهري ددوى خبره د استهزاء. وصحيح خبري ته داسي را اړولې ده بقوله. فالمعنى اذهب انت وربک يعينک.

**درویش وایي:** چې قرآن کلام الهي دی پر خپله رایه باید توجیه څوک ونه کړي او قرآن له دومره عبارت "وربک یعینک" له حذف څخه څرنګه متحمل کېدای سي، او بل ددې حذف سره هغه قول د خدای پاک حکایةً عن بني اسرائیل فقاتلا په صیغه د تثنیه منافي دی صراحةً نه پوهېږم چې مظهري به قاتلاً د خپلي توجیه سره اذهب وربک یعینک سره څرنګه برابر کړی، او بل دادی چې بني اسرائیل په دغه قول چې فقاتلا ضرب المثل ګرځېلی حتی چې په هغو مثالو د مظهري توجیه ګنجائش نه لري.

**درویش وایي:** چې علامه بغداد الآلوسي رحمه الله په روح المعاني کي وایي وقالوا ذالک استهانة واستهزاء به سبحانه وتعالی وبرسوله موسی علیه السلام وعدم مبالات لغایة جهلهم وقسوة قلوبهم، وروسته روح المعاني توجیه د مظهري له بلخي څخه رانقل کړی بقوله فاذهب انت وربک یعینک، ثم قال الآلوسي وهو خلاف الظاهر وقال ولا یساعده قوله تعالی فقاتلا بصیغة التثنیة، ولي چې پر تقدیر د بلخي او د مظهري مناسب دا وه فقاتل کما لا یخفی.

**درویش وایي:** چې پر رد د مظهري رحمه الله خو فاذهب کلام تام دی او "ربک" مبتداء ده "یعینک" یې خبر دی، نو د "اذهب" د ضمیر متصل په "انت" سره تاکید ته څه ضرورت و، ولي چې نحات وایي چې تاکید ته د ضمیر متصل په انت سره هلته ضرورت سته چې بل منفعل لفظ پر عطف کېږي پر تقدیر د مظهري خو "ربک" جلا مبتدا. ده عطف پر ضمیر متصل د "اذهب" نه دی تاچي تاکید په منفصل سره وغواړي، نو له تاکید څخه هم دا معلومه سوه چې "وربک" عطف دی پر ضمیر متصل د "اذهب"

**درویش وایي:** چې که په دې آیت کي چې محمول پر استهزاء او عدم المبالات باندي سي دغه اشکال موجود والی لکه مظهري چې ذکر کړی چې دوی په دې استهزاء سره کافران سوه، نو په تیه کي ولي موسی علیه السلام ملګري کوله الی اخیر ماقال المظهري، نو یو چا د صحابه کرامو رضی الله عنهم څخه ددې مشکل د حل لپاره به یې د علیه الصلوة والسلام څخه پوښتنه کړې وای چې علیه الصلوة والسلام به یې حل

ورته بیان کړی وای، نو له صحابه کرامو ﷺ څخه چا د علیه الصلوة والسلام څخه پوښتنه ونه کړه، نو دا معلومه ده چي ددوی په نېز دا آیت محمول دی پر استهزاء که کفر دی که هر څه، ولي اصحابو ته د بني اسرائیلو قدیماً وحدیثاً عادت معلوم وچي دوی په داسي خبرو باک نه کوي، دلیل ددې خبري دادی چي موسی ؑ چي اوویا مخور کسان کوه طور ته بوتله لپاره د معذرت د عبادة العجل، او د خدای پاک او د موسی ؑ تر منځ خبري جاري وې او دې اوویا کسانو هم اورېدلې، نو دوی و موسی ؑ ته داسي وویل "لن نؤمن لک حتی نری الله جهرةً ای علانیة، فاخذتهم الصاعقة الی اخیر الآیة" نو ددوی مثال داسي دی لکه یو شاعر چي وایي

ان بني زملوني بالدم شنشنة اعرفها من اخزم

ولهذا الشعر قصة مذکورة في حواشي المطول

**معذرت:** بیان ډېر را څخه طویل سو لان الآیة معرکة الآراء، نو درویش په مطالعه د ډېرو تفاسیرو کوشش وکړی چي هغه څه چي زما په عقل ناقص صحیح وه هغه مي را نقل کړه، وما علینا الا البلاغ والعلم الحقیقي عند منزل الکتاب، قال الله تعالی "لا یکلف الله نفساً الا وسعها" او داغه رنګه درویش چي د تنقید او اعتراض دروازه خلاصه ده لکن علی وجه الانصاف لا علی وجه الحسد والاعتساف، ولي چي خدای ﷻ د قرآن په ښوونه علیه الصلوة والسلام ته دا خواست ور ښولی دی چي "قل اعوذ برب الفلق، من شر ماخلق، ومن شر غاسق اذا وقب، ومن الشر النفثت في العقد، ومن شر حاسد اذا حسد ط" حاسدین دي هم دومره دلاوري نه کوي چي یو څوک چي خدای ﷻ ته پناه وروړي دی بې له نه پسي پر ېږدي، شعر....

هم یحسدونني وشرناس کلهم من عاش في الناس یوماً غیر محسود

## قَالَ رَبِّ إِنِّي لَآ أَمۡلِكُ إِلَّا نَفۡسِي وَأَخِيۖ

موسی ؑ وویل اې خدایه زما اطاعت نه کوي مګر زما نفس او زما ورور یعني هارون ؑ.

**سوال:** دا حصر به څرنګه وي او سره ددې چي یوشع او کالب خو هم د موسی اطاعت کاوه؟

**ځواب:** دا حصر اضافي دی نسبةً وعاصیانو ته د موسی علیه السلام د شکایت عنهم فلا یلزم ما الزمه السائل.

## فَافْرُقْ بَيْنَنَا وَبَيْنَ الْقَوْمِ الْفٰسِقِيْنَ ۝

پس جلا والی وکړې زمونږ او د قوم فاسقین تر منځ، یعني هر یوه ته زمونږ او ددوی جزاء موافق بالعمل ورکړې.

**یوه سه:** چې د فسق معنا خروج دی له اطاعت څخه د مولی حق ورسول ماخوذ من قولهم فسقت الرطبة عن قشرها ای خرجت.

**فائده:** له "بيننا" څخه مراد د موسی علیه السلام خپل ځان او ورور هارون علیه السلام دی او یوشع او کالب خو ددوی له تابعانو څخه دي، نو هغه دوه هم طبعاً داخل دي په دعاء کې د موسی علیه السلام فلا یرد مایتوهم.

## قَالَ فَاِنَّهَا مُحَرَّمَةٌ عَلَيْهِمْ اَرْبَعِيْنَ سَنَةً

خدای پاک وویل چې دغه ارض مقدسه حرامه ده پر دوی یعني پر بني اسرائیلو باندې په سبب د عصیان د دوی له امر څخه د خدای پاک چې قتال د جبابره وو سره و، څلوېښت کاله.

**یوه سه:** چې دا تحریم نه دی چې په شرع شریفه کې یې تحریم بولي مثلاً شراب خوري حرامه ده فعل د زناء حرام دی وغیر ذالک، ولې چې تحریم شرعي خو صفت دی د افعالو د مکلف بلکې تو له احکام شرعیه او ارض مقدسه خو عین او ذات دی بلکې دا تحریم په معنا دمنع دی ای ممنوعة منهم لا یدخلون او نه یکښې اوسېدای سي.

**یوه سه:** چې "اربعين سنة" دا ظرف متعلق دی په محرمة پورې، نو دا تحریم موقت دی ابدي نه دی، نو دا سوال نه پیدا کېږي پر هغه تقدیر چې د کتب الله لکم ترجمه یې په لوح محفوظ سره وکړه سي، نو دا تحریم به د هغه منافي وي، وجه د عدم منافات داده چې منافات به هلته وای چې دا تحریم ابدي وای دا په څلوېښت کاله سره موقت دی، نو وروسته تر څلوېښتو کلو به دوی ورسي ارض مقدسه ته علی میعاد اللوح المحفوظ، او ددې خبر تائید هغه روایت کوي چې موسی علیه السلام اریحا فتح کړه په هغو بني اسرائیلو سره چې له تیه څخه ژوندي پاته

سوي وه، او یوشع بن نون پر مقدمة الجیش مقرر کړي وه او له جبابره سره یې جنګ وکړی او هغو ته یې شکست ورکړی، له هغو څخه یې بعض ووژل او بعض فراره سول، او بعضو اسلام قبول کړی، او موسی علیه السلام په هغه ارض مقدسه کې څه زمانه وه اوسېدی او بیا وفات سو.

**درویش وایي**: چي مظهري وایي لایعلم قبره احد انتهی دا سلب کلي منافي دی د حدیث سره د بخاري چي علیه الصلوة والسلام وایي چي که زه هلته وای ما به قبر د موسی علیه السلام خلګو ته ښوولی وای الی جانب الطریق عند الکثیب الاحمر الا ان یقال ان مراد المظهري لیس السلب الکلي عن جمیع افراد النوع الانساني بل السلب الکلي عن صنف بني اسرائیل لقوله تعالی "واذا قلتم یاموسی لن نصبر علی طعام واحد ی المن والسلوی. فادع لنا یخرج لنا مما تنبت الارض الی اخیر الآیة. حیث قال الله تعالی في جوابهم اهبطوا مصراً فان لکم ماسئلتم" ولي چي دا آیت دلالت پر دې کوي چي موسی علیه السلام ژوندی و، اهبطوا مصراً بعد الخروج من التیة وذالک بعد اربعین سنة.

**درویش وایي**: چي په دې خبره کې چي موسی علیه السلام ژوندی و او د جبابره وو سره جنګ هم ده وکړی، او و مصر ته د ورتلو په وخت کې هم موسی علیه السلام ژوندی و، لوی اختلاف د مفسرینو او د تاریخ پوهانو لکه تفصیل چي به یې راسي ان شاء الله تعالی، دا مذکوره قول چي تېر سو دا قول د بغوي و، او دی وایي چي دا اصح الاقاویل دی او مظهري یې هم تائید کړی دی په آیت مذکوره سره یعن واذ قلتم یموسی کمامر آنفاً.

يَتِيهُونَ فِى الْأَرْضِ فَلَا تَأْسَ عَلَى الْقَوْمِ الْفٰسِقِينَ ۝

چي دوی سرګردان وه په ځمکه کې. نو ته غم مه کوه پر هغه قوم چي فاسقان وه یعني هغه کسان چي له جنګ څخه د جبابره وو انکار وکړي، او دوی هم په دغه سبب فاسقان وبلل سول.

**پوه سه**: چي مخاطب په دې کې موسی علیه السلام دی، ولې چي دی پر هغه بنیرا چي بني اسرائیلو ته یې وکړه بقوله "فافرق بیننا وبین القوم الفاسقین" پښېمانه وه چي تا ولې

شپږ اورته وکړه چې دوی په سرگردانۍ د تیه مبتلا سوه، نو خدای ﷻ و موسیٰ ﷺ ته وایي چې ته یې غم مه کوه، ولې چې دوی مستحق د دغه عذاب التیه دي په سبب د فسق د دوی یعنې اعراض د امر الهي څخه چې جنگ د جبابره سره و.

**پوه سه**: چې معنیٰ د "یتیهون یتحیرون في الارض ای ارض التیة" چې د یو لوی بیابان نوم دی چې بني اسرائیل څلوېښت کاله په دغه بیابان کې گرځېدی چې دا بیابان شپږ فرسخه و، او دوی شپږ لکه مقاتل کسان وه او دوی به پر ورځ په ډېر کوشش سفر کاوه چې له دې بیابانه ووځي. مابښام چې په سو بیر ته به هغه ځای ته راغله چې تېره شپه دوی په کوم ځای کې وه او په دې بیابان کې د گرمۍ په موسم کې به وریځ د دوی پر سرو سایه کوله. او د شپې به یوه تنبه (لکړه) د نور پیدا کېدله چې دوی ته یې تول محکه روښانه کول او د خوراک لپاره "من" خواږه شیان وه او د سپېدو څخه تر لمر ختو پورې په مثل د واورې اورېدله او دوی به ټولول. او "سلویٰ" وه چې پاخه تاروگان وه چې هر چا د خپل ضرورت مطابق جمع کوله. او کالي داغه یو جوت نه څیرېدل او نه خیرنېدل او ویښتان د ږیرې، بریتو، سر او د نورو ځایو یې نه اوږدېدل چې غچې یا د سر چرې ته محتاجه سي. او اوبه یې د هغې ډبرې څخه وې چې د موسیٰ ﷺ سره ورسره وه کما في سورة البقرة "فاضرب بعصاک الحجر" روح البیان وایي چې اصح د اقوالو دادی چې موسیٰ او هارون علیهما السلام د تیه په تول سفر کې د بني اسرائیلو سره هم سفر وه او دا سفر که څه هم د بني اسرائیلو لپاره عقوبة التادیب و. لکن د موسیٰ او هارون علیهما السلام لپاره خوشحالي او سلامتي وه ولې چې امتثال د امر الهي و او عبادت و. نه دې سببه چې په دوی دوو کې د تادیب سبب عقوبت نه و. لکه د نمرود اور د ابراهیم ﷺ لپاره.

**درویش وایي**: چې اختلاف د رواتو او مفسرینو په څلور ځایه کې دی.

(۱) موسیٰ ﷺ د ارض مقدسه فاتح له جبابره وو څخه و لکه مور چې د مخه وویل (۲) موسیٰ ﷺ بعد الخروج من التیة وفتح الجبابرة ژوندی و چې مصر ته ورغلی (۳) موسیٰ او هارون علیهما السلام په تیه کې وفات سوه.

(۴) فاتح د جبابره وو يوشع بن نون عليه السلام و، چي د موسى او هارون عليهما السلام وروسته خدای جل جلاله ده ته نبوت ورکړی، والی کل من هذه الاقوال ذهب ذاهب.

**درویش وایي:** چي ددې ټولو اقوالو د دلائلو راوړلو به ډېري ورقي ونیسي او کتاب به ویونکو ته درد سر سي، ولهذا اعرضنا عن دلائل الکل.

**قصة وفات هارون** عليه السلام: سدي رحمه الله وايي چي موسى عليه السلام ته جبرائيل راغلی او پېغام الهي يې راوړی چي د هارون اجل نژدې دی ته دی فلاني غره ته بوزه، نو موسى هارون عليهما السلام له ځانه سره ملګری کړی او د هغه غره وجانب ته ولاړل. او په هغه غره کي يو ه ښائسته درخته ولاړه وه چي مثل يې چا نه وليدلی. او تر هغې درختي لاندي يو ه خونه وه او په خونه کي يو پلنګ پروت و او پر هغه يو فرش اوار و. او ډېره ښه خوشبوئي پر پاشل سوې وه. هارون عليه السلام چي ورته وکتل ډېر ښه خوند يې ورکړی، نو موسى عليه السلام ته يې وويل چي زه به يو ګړی پر دغه پلنګ بيده سم! موسى عليه السلام ورته وويل بيده سه. هارون عليه السلام ورته وويل چي بېرېږم که صاحب البيت راغلی ماته به په غضب سي، موسى عليه السلام ورته وويل چي ببغه بيده سه که صاحب البيت راغلی زه دي د هغه له غضبه خلاصوم، نو هارون عليه السلام چي بيده سو ملک الموت ورته راغلی، نو هارون و موسى عليه السلام ته وويل "خدعتني ياموسى" زما سره دي چم وکړی اې موسى. نو هارون عليه السلام وفات سو، هغه خونه هم پورته سوه هغه درخته هم ورکه سوه او پلنګ د آسمان پر خوا ولاړی، نو موسى عليه السلام يوازي وبني اسرائيلو ته راغلی هغو ورته وويل چي هارون څه سو؟ موسى عليه السلام چي د هارون عليه السلام د مرګ قصه ورته وکړه، بني اسرائيلو ورته وويل چي هارون تا وژلی دی او يو ځای به دي ښخ کړی وي، او بني اسرائيلو د قتل سبب دا ورته ووايه چي تر تا پر موږ باندي هارون ګران و، نو ستا حسد ورسره پيدا سو او مړ دي کړی، موسى عليه السلام ورته وويل ويحکم هارون خو زما ورور و، نو ما به څرنګه وژی. خو بني اسرائيلو موسى عليه السلام ډېر تنګ کړی چي هارون هرو مرو تا وژلی دی، نو موسى عليه السلام ولاړ سو دوه رکعته لمونځ يې وکړی او خدای جل جلاله ته يې خواست وکړی چي دغو

بني اسرائيلو ته د هارون د مرګ قناعت ورکړي، نو سرير د هارون عليه السلام په منځ کي د اسمان او مځکي راکښته سو چي بني اسرائيلو وليدی، نو يې قناعت وسو چي هارون موسی عليه السلام نه دی وژلی بلکې په خدايي مرګ مړ دی.

**قصة موت موسیٰ عليه السلام:** ابن اسحاق رحمه الله وايي چي د موسی عليه السلام اجل نژدې سو، نو خدای جل جلاله يوشع نبي کړی چي د موسی عليه السلام صاحب و، له دې سببه چي موسی عليه السلام له مرګه ډېر بد وړه، نو خدای جل جلاله غوښتل چي د موسی عليه السلام په زړه کي د مرګ محبت پيدا کړي، نو د موسی عليه السلام په زړه کي شک پيدا سو چي زه ژوندی يم نو ولي خدای جل جلاله يوشع بن نون نبي کړی، په زړه کي يې دا وروګرځېدل چي ستا لکه چي اجل الموت نژدې سوی دی، نو له هم دې سببه هره ورځ چي به يوشع و موسی عليه السلام ته ورغلی موسی به پوښتنه ځني کوله يانبي الله ما احدث الله اليک؟ يعني خدای جل جلاله څه نوي خبري تاته استولي دي، يوشع به ورته وويل چي ما څو کاله ستا شاګردي وکړه ما کله ستا څخه پوښتنه کړي وه چي خدای جل جلاله تاته څه نوې خبره راستولې ده چي تا به نه وای ويلي چي خدای فلانی خبره ماته وحي کړې ده. يعني ته ولي زما څخه پوښتنه کوې د نوي خبري، نو موسی عليه السلام په ځان پوه سو چي مرګ دي نژدې سوی دی، چي يوشع وتاته حال نه وايي، نو باره د موسی عليه السلام موت خوښ سو او له ژونده يې بد راغله قمات.

**درويش وايي:** چي د موسی عليه السلام د موت په باره کي يو صحيح حديث چي بخاري هم روايت کړی دی له ابو هريره رضي الله عنه څخه لکن درويش نه کړی رانقل چي عوام الناس به د هغه حديث له کبله په زړو کي څه وګرځوي، او توجيه به يې هم نه سي کولای، او وهب بن منبه رحمه الله وايي چي موسی عليه السلام يوه ورځ د يو کار لپاره صحراته ووتی که څه ګوري چي ملکي يو ځای قبر جوړوي موسی عليه السلام چي ورته وکتل ډېر خوندآور قبر و او ډېر خوشبويه او ښه فرش هم پکښې هوار و، موسی عليه السلام و ملکو ته وويل چي دا قبر مو د چا لپاره جوړ کړی دی؟ ملکو ورته وويل لعبد کريم على الله، موسی عليه السلام ورته وويل چي رشتيا دا بنده پر خدای ډېر قدر لري چي تاسي يې د هغه لپاره په داسي ژيبا قبر جوړولو مامور کړي

ياست، ملكو ورته وويل ياصفي الله ستا خوښه ده چې دا قبر ستا واى؟ موسى ورته وويل چې ښخې مې خوښه ده. ملكو ورته وويل ورشوه سه پكښې پرېوزه او توجه و خداى ﷻ ته وكړه. موسى عليه السلام هم ورغلى پكښې پرېوتى او توجيه يې وخداى ﷻ ته وكړه او يوه لنډه ساه يې وكښله او وفات سو. ملكو خاورې پر سمې كړې، راويان وايي چې د موسى عليه السلام عمر يو سل او شل (۱۲۰) كاله و.

**پوښتنه:** دا څه سبب دى چې د موسى عليه السلام د ژوندانه په كارنامو او د هارون عليه السلام د وفات په باره كې دومره ډېر اختلاف موجود دى؟

**ځواب:** يو خو دا سبب دى چې دا واقعاتې په زرو كلونه دمخه پېښې سوي، او بل اصلي سبب دادى چې دا حكايات اكثره مبني دي د يهودانو پر تاريخ چې بعض به يې صحيح وي او بعض به يې موضوعي وي، والله اعلم بالصواب واليه المرجع والمآب.

وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ ابْنَيْ آدَمَ بِالْحَقِّ ۘ

او ته اې محمده ﷺ ووايه پر دوى يعني پر اهل كتابو خبر او قصه د دوو زامنو د ابو البشر آدم عليه السلام چې هغه دوه زامن يې هابيل او قابيل وه په حق سره، يعني چې موافق د تاريخ سره د اهل كتابو وي.

**يوه سه:** چې "بالحق" باعتبار الموصوف المحذوف مفعول مطلق دى "اتل" يعني تلاوت متلبسة بالحق او يا حال دى له ضمير څخه د "اتل" چې عليه الصلوٰة والسلام ته راجع دى اى متلبساً بالصدق.

**يوه سه:** چې اهل علم د تاريخ اسلامي او د اهل كتابو وايي چې د تمامو انسانانو جده چې حواء رضي الله عنها يې نوم و له آدم عليه السلام څخه يې په يوه حمل يو نر او يوه ښځه زېږول، او ټوله اولاد د حواء نر او ښځې ځلوېښت ته ورسېدې په شل حمله كې، اول نر چې قابيل يې نوم و دده غبرګولې اقليما نومېده، او د دوهم حمل نر د هابيل په نامه و او دده غبرګولې لبودا نومېده، او د اخيري حمل د نر نوم يې ابو المغيث و، او د غبرګولې نوم يې ام المغيث و، او له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دى چې آدم عليه السلام تر هغه وخت ژوندى و چې زامن، لونې، لمسيان، كړوسيان وغيرهم يې ځلوېښت زره ته ورسېدل.

## إِذْ قَرَّبَا قُرْبَانًا

**یوه سه:** چي کلمه د "اذ" ظرف ده د "نباء" او یا حال ده له "نباء" څخه ای کائنا ذالک انبا، ابني آدم.

**یوه سه:** چي قربان نوم دی د ما یتقرب بها الی الله تعالی که یوه ذبیحه وي یا غنم اوړه وي وغیرهما.

**پوښتنه:** قربان هر یوه د قابیل او هابیل وکړی کما یدل علیه لفظ قربا بضمیر التثنیة فلم اورد لفظ قرباناً مفرداً؟

**ځواب:** یو خو لفظ د قربان مصدر دی تثنیه او جمع پکښې برابر دي، او بعض علماء تقدیر ورسره کوي ای قرب کلواحد منهما قرباناً.

## فَتُقُبِّلَ مِنْ أَحَدِهِمَا وَلَمْ يُتَقَبَّلْ مِنَ الْآخَرِ قَالَ لَأَقْتُلَنَّكَ

نو د یوه قربان قبول سو چي هابیل و او د هغه بل دا نه سو قبول چي قابیل و، نو یې ورته وویل چي زه تا وژنم.

تفصیل المقام: په وخت کي د آدم عليه السلام قانون الهي دا و چي د یوه حمل د غبرګو یانو نر او ښځي نکاح نه وه سره روا، او د یوه بطن د نر نکاح د بل بطن د ښځي سره روا وه، نو آدم عليه السلام به داسي کول چي نر به یې بالغ سو د هغه بل بطن ښځه به یې په نکاح ورکوله، نو څه وخت چي قابیل او هابیل ځوانان سوه، نو خدای جل جلاله آدم عليه السلام امر کړی چي د قابیل خور چي اقلیما یې نوم و وه هابیل ته په نکاح ورکړه، او د هابیل خور چي لبودا نومېده وه قابیل ته په نکاح ورکړه، لکن د قابیل غبرګولې ډېره ښائسته وه او د هابیل خور بدرنګه وه، نو قابیل وویل چي زه خپله غبرګولی خور په خپله په نکاح کوم هابیل ته یې نه ورکوم، دده دا خیال و چي د یوه بطن نر او د بل بطن ښځه په نکاح ورکول حکم الهي نه دی بلکي د آدم له خوا دی، نو قابیل و آدم عليه السلام ته انکار وکړی چي زه خپله خور هابیل ته نه ورکوم بلکي انا احق بها، او د قابیل د هابیله سره لوی حسد په زړه کي پیدا سو، نو آدم و قابیل ته وویل چي پر قربان به فیصله سره وکړو چي په دوی کي دا رواج و چي

سره اختلاف به یې سو، نو به یې یو خیرات خدای وهست وکړی، نو کوم سړی
چې به پر حق و، نو له اسمانه به سپین اور راغلی او د هغه صدقه به یې اسمان ته
یوړه او چې پر ناحقه به و د هغه صدقه به خپل پر ځای پاته سوه، که به غوبښي وې
لېویانو به وخوړلې او که به دانې وې مرغانو به وخوړلې، او بعض علماء وايي چې
هغه پاته قربان پر فقیرانو وېشل کېدی، نو هابیل چونکه مواشي درلودې، نو یو
بنه غټ پوسه څه شیدې او یو څه پېروی یې په قربان کې کېښښوی، او قابیل یو
اندازه لږ او بې کاره غنم په قربان کې کېښښول. له اسمانه چې اور راغلی د هابیل
پوسه یې اسمان ته پورته کړی او د قابیل غنم ځای پر ځای پاته سوه، نو د قابیل
په زړه کې نور غضب، بغض او حسد د هابیله سره پیدا سو، سعید بن جبیر رحمه الله
وايي چې دغه پوسه د هابیل په جنت کې روزل کېدی تاچه په وخت کې د ذبح د
اسماعیل تر چاړه لاندې د ابراهیم علیه السلام کېښښول سو او ذبح سو، نو د قابیل په
زړه کې حسد مضمر و حتی چې آدم علیه السلام د بیت الله شریفې زیارت ته ولاړی او
میدان خالي سو، نو قابیل و هابیل ته وویل زه تا وژنم، هابیل ورته وویل ولې؟
قابیل ورته وویل له دې سببه چې خدای جل جلاله ستا قربان قبول کړی او زما دا یې نه
کړی قبول، او بل دا چې ته زما ښائسته خور په نکاح کوې او ستا بدرنگه خور
ما ته په نکاح راکوې، نو هابیل ورته وویل چې په دې کې زما څه گناه ده.

قَالَ إِنَّمَا يَتَقَبَّلُ اللَّهُ مِنَ الْمُتَّقِينَ ﴿٢٧﴾

خدای جل جلاله خو قربان د هغه چا قبلوي چې له متقینو څخه وي. یعنې له خدایه بېرېږي
یعنې حکم الهي ته غاړه ایږدي او د چا سره حسد نه کوي. اشاره یې ودې ته وکړه چې
حاسد باید په خپل گرېبان کې وگوري او گناه کبیره د حسد له ځانه لېرې کړي.

**پوښتنه**: آیا قابیل په دغه حسد او قتل د ورو کافر سو که څرنگه؟

**ځواب**: ابن ابي شیبه له ضحاک څخه روایت کړی دی په تفسیر کې ددې آیت
"انما یتقبل الله عن المتقین. قال الذین یتقون الشرک" له دې تفسیر څخه خو
داسې معلومېږي چې قابیل کافر سو لکن صحیح دا ده چې قابیل په حسد سره د
هابیل او په قتل سره کافر نه دی بلکې مرتکب د دوو کبیره گنهو دی، والله اعلم.

او هابيل و قابيل ته وويل.

لَئِنۢ بَسَطتَ إِلَيَّ يَدَكَ لِتَقۡتُلَنِي مَآ أَنَا۠ بِبَاسِطٖ يَدِيَ إِلَيۡكَ لِأَقۡتُلَكَۖ إِنِّيٓ أَخَافُ ٱللَّهَ رَبَّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ۝٢٨

**پوه سه**: چي لام موطئه د قسم محذوف دی. والمعنی قسم په خدای ﷻ دی که ته ما ته وغځوې لاس چي ته ما وژنې، زه نه یم غځونکی د لاس و تا ته ددې لپاره چي زه تا مړ کړم، په سبب ددې چي زه له خدایه ببرېږم چي تا وژنم له هغه خدای څخه چي خدای دی د عالمیانو.

**پوه سه**: چي عبد الله بن عمرو رضی الله عنه وایي قسم په خدای دی چي مقتول یعني هابیل قوي و تر قابیل، لکن د خدای ﷻ له خوفه یې مقابله نه ورسره وکړه. بلکې د تسلیم لاره یې غوره کړه للاثابة یوم القیامة. مجاهد رحمه الله وایي چي د آدم علیه السلام په دین کي حکم دا و چي که یو سړي د بل سړي قتل کوی منع به نه ورته کوي بلکي صبر به کوي. او یا له دې سببه چي دا قتل افضل و تر منعي او مقابلې قال علیه الصلوة والسلام کن عبد الله المقتول ولا تکن عبد الله القاتل.

**پوه سه**: چي ابن سعد رحمه الله په طبقات حدیث کي له عبد الله رضی الله عنه څخه روایت کړی دی چي زموږ په شریعت کي که څه هم مقابله د مرید القتل سره روا ده لکن بیا هم تسلیم او صبر افضل دی. لکه امیر المؤمنین عثمان رضی الله عنه چي دغه لاره غوره کړه په هغه وخت کي چي باغیانو د مصر دی په خپل سرای کي تر محاصره لاندې نیولی و، حتی چي ابو هریره رضی الله عنه وایي چي زه په دغه وخت کي د محاصرې د عثمان رضی الله عنه کور ته ورغلم او ما ورته وویل چي زه ستا سره کومک کوم. عثمان راته وویل ایسرک ان تقتل الناس جمیعاً وایای معهم" آیا تاته ای ابو هریره دا خوند درکوي او داسي دې خوښه ده چي تول خلگ ووژل سي اوزه هم ورسره ووژل سم. ابو هریره رضی الله عنه وایي ما ورته وویل یا داسي کار خوند نه راکوي، نو عثمان رضی الله عنه راته وویل که زه قتل کړم یو مسلمان گویا ما تول مسلمانان قتل کړه هغه وچي حضرت عثمان رضی الله عنه د تهجد لمونځ په کور کي کړی و او د قرآن وظیفه

يې كول چې باغيان و كور ته ور واوښتل او سر يې په توره څنډې پرې كړى، او د حضرت عثمان ﷺ وينې پر دې آيت باندې ولګېدې "فسيكفيكهم الله وهو السميع العليم" درويش وايي چې د حضرت عثمان ﷺ د قتل قصه ډېره اوږده ده په بل ځاى كې به راسي ان شاء الله العزيز، او هابيل ورته زياته كړه.

## اِنِّىۡۤ اُرِيۡدُ اَنۡ تَبُوۡٓاَ بِاِثۡمِىۡ وَاِثۡمِكَ

زما دا اراده ده چې تا نه قتل كوم چې رجوع وكړې يعني وخداى ﷻ ته په ورځ د قيامت زما په ګناه سره، او خپل په ګناه يعني كه ته ما قتل كړې اى ترجع متلبساً بالاثمين، يوه ګناه زما ده چې ما يې عمل كړى وي، او يو ستا ګنهونه دي چې تا زما سره د حسد او د بغض له لارې خپل كړي او په اخير كې مې مرهم كړې.

## فَتَكُوۡنَ مِنۡ اَصۡحٰبِ النَّارِ ۚ وَذٰلِكَ جَزٰٓؤُا الظّٰلِمِيۡنَ ۚ﴿۲۹﴾

نو ته به وسې له اصحابو څخه د اور يعني دوزخ. او همدا غه اور دوزخ جزاء ده د ټولو ظالمانو يعني وانت منهم.

**پوه سه**: چې "باثمي واثمك" دواړه حال دي له ضمير څخه د "تبوء" اى تبوء متلبساً باثمي ومتلبساً باثمك. ولې چې مظلوم ته له حسناتو څخه د ظالم وركول كېږي په ورځ د قيامت جزاءً لظلمه، او كه چېرې ظالم حسناتې نه درلودې، او يا يې درلودې لكن حسنات يې دمخه تر اداء د حقوق الناس خلاصې سوي وې، نو پر ظالم ګنهونه د مظلوم طرح كوي او دوزخ ته يې اچوي، لكه څنګه چې په صحيح حديث كې راغلي دي چې روايت يې ابو هريره ﷺ كړى دى چې سره د اختصاره يې حاصل دادى چې رسول الله ﷺ وفرمايل "المفلس من امتي من ياتي يوم القيامة بصلوة، وصيام و زكوة" مسكين يعني حقيقي هغه څوک دى چې راسي په ورځ د قيامت د لمونځو، روژو او زكوات سره يعني دا افعال يې كړي وي "وياتي قد شتم هذا واكل ما هذا وسفک دم هذا وضرب هذا" او داسي راسي چې بعضې خلګو ته يې ښكنځل كړي وي، او د بعضو خلګو مال يې خوړلى وي، او د بعضو خلګو وينه يې توى كړې وي، او بعض كسان يې وهلي وي، نو يوه مظلوم

ته دده حسنات ورکړه سي او بل مظلوم ته دده حسنات ورکړه سي، یعني وهکذا الی اخیر المظلومین، نو که یې حسنات تمامي سوې دمخه تر اداء د حقوق د مظلومینو، نو د هغو گنهونه راواخلي پر ده یې طرح کړي، بیا یې نو دوږخ ته واچوي، رواه مسلم بطوله.

## فَطَوَّعَتْ لَهُ نَفْسُهُ قَتْلَ أَخِيهِ

نو خوښه کړه نفس دده یعني د قابیل د ورور وژل یعني د هابیل.

**پوه سه:** چي کلمه د "له" یې لپاره د زیادت ربط ده یعني اصل یې دا و فطوعت نفسه یعني نفس دی دعوت کړی وقتل ته د ورور او ده یې په خوله وکړه، ابن جریج وایي چي ابلیس وده ته په رنگ د سړي سو یو مرغه یې را واخستی سر یې پر ډبره ورکښېښود او په بله ډبره سره یې سر ور وکوټی او مړ یې کړی، او قابل ورته کتل، نو د خپل ورور هابیل د قتل چم یې زده کړی، نو قابیل د هابیل سر د دوو ډبرو تر منځ کړی او مړ یې کړی. بعض علماء وایي چي هابیل و خدای ﷻ ته صبر وکړی یعني قابیل په ښکاره مړ کړی. او بعض علماء وایي چي هابیل بیده و قابیل په لو ډبره پر سر وواهه هغه مړ سو.

**درویش وایي:** چي په اولاد کي د آدم ﷺ هابیل اول سړی و چي ظلماً ووژل سو، او قابل اول ظالم دی چي قتل یې وکړی، په صحیح حدیث کي راغلي دي چي علیه الصلوة والسلام ویلي دي چي هر څو ناحقه قتلونه چي کېږي د قیامت تر ورځي پوري، نو قابیل په گناه کي ورسره شریک دی لانه اول من سن القتل بغیر حق.

## فَقَتَلَهُ فَأَصْبَحَ مِنَ الْخَاسِرِينَ ۝

نو قابیل خپل ورور هابیل مړ کړی، نو وګرځېدی قابیل له خسران کونکو خلګو څخه هم په دنیا کي، ولي چي تو له باقي مانده عمر یې په غم کي و، او په اخرت کي هم ولي جنت یې په دوږخ بدل سو، او تاریخ وایي چي هابیل د شلو کلو په عمر کي ووژل سو، تاریخ وایي قابیل چي هابیل مړ کړی نو حیران و چي اوس نو څه په وکړم، او درندگان شاوخوا د هابیل د غوښو خوړلو لپاره په انتظار وه، نو



Scanned by CamScanner

قابیل هابیل په یوه توبره یا گونۍ کې واچاوه او په شا یې کړی تر څلوېښت ورځو پورې، او ابن عباس رضي الله عنه وايي چې یو کال یې په شا وگرځاوه، حتی بدن یې تغیر وخوړی، او مرغان و درندگان به په پسې وه چې کله به یې پرېږدو خوي چې ده یې خوړو، اخیر خدای ﷻ دوه کارگان پیدا کړه چې سره جنگ یې وکړی یو کارگه بل وواهه مړ یې کړی، نو وروسته ژوندي کارگه په مو ښکه او پښو سره خاوره وشنلې او مړ کارگه یې پکښې ښخ کړی قابیل ورته کتل کما قال الله تعالی.

**فَبَعَثَ اللَّهُ غُرَابًا يَبْحَثُ فِي الْأَرْضِ لِيُرِيَهُ كَيْفَ يُوَارِي سَوْءَةَ أَخِيهِ قَالَ يَا وَيْلَتَا أَعَجَزْتُ أَنْ أَكُونَ مِثْلَ هَٰذَا الْغُرَابِ فَأُوَارِيَ سَوْءَةَ أَخِي فَأَصْبَحَ مِنَ النَّادِمِينَ**

نو خدای ﷻ راواستاوه کارگه چې کیندله یې مځکه تاچې وویني خدای پاک یا کارگه چې څرنگه سړی پټوي جسد میت د خپل ورور.

**فائده:** ضمیر مرفوع د "یریه" څوک وايي راجع دی و خدای ﷻ ته، او بعض علماء وايي چې کارگه ته راجع دی، او ضمیر منصوب وقابیل ته راجع دی، او مراد له "سوءة" څخه د مړي جسد دی که څه هم په اصل کې خو سوءة عورت ته وايي چې کشف یې سړی په غم کې اچوي پر جسد د میت اطلاق له دې سببه وشو چې د میت وجسد ته کتل هم بد ښکاریږي.

**پوښتنه:** کارگان خو دوه وه، نو څرنگه یې "غراباً" په لفظ د مفرد راوړی؟

**ځواب:** غراب اسم جنس دی، او بل دا چې په قابیل لیدل ښخول د مړي خو د یوه کارگه کار و، مړی کارگه خو په دې لیدلو کې کار نه لري.

**فائده** رؤیة دلته علمي دی د سترگو نه دی، ولې چې په سترگو خو قابیل موارة الغراب لیدی لا موارات سوءة الاخ.

**پوښتنه:** خدای پاک الهام د موارات المیت وکارگه ته وکړی قابیل ته یې نه وکړی لپاره د تحقیر د قابیل، او تنبیه یې پر دې وکړه چې قابیله ته اهون یې پر خدای ﷻ

تر کارګه، راوي وايي قابيل چي هابيل قتل کړی بدن يې تول تک تور سو، آدم عليه السلام چي له بيت الله څخه راغلی، نو له قابيل څخه يې پوښتنه وکړه چي ورور هابيل دي چېري دی؟ قابيل ورته وويل چي زه نه يم په خبر زه خو د هابيل وکيل نه وم، آدم عليه السلام ورته وويل چي تا وژلی دی، نو ځکه دي بدن تور سوی دی، آدم عليه السلام له قابيل څخه بېزاري اختيار کړه ومکث بعد ذالک مائة سنةً لا يضحک.

**بوه سه:** چي مقاتل له ضحاک رحمه الله څخه او هغه له ابن عباس رضي الله عنه څخه داسې يو روايت راوړی دی چي قابيل چي هابيل قتل کړی آدم عليه السلام په مکه مکرمه کي و، د ټولو درختو بلګونه ورژېدل او خوراکي شيانو هم تغير پيدا کړی، او مېوې ټولې توروې سوې اوبه د آدم عليه السلام پر خوله بې خونده وې، او ځکه ټوله سپېره معلومېده، نو آدم عليه السلام وويل چي په ځکه کي يو څوی بد کار پېښ سوی دی، نو هند ته راغلی هغه و چي قابيل هابيل وژلی و، نو دا دوه بيته يې وويل.

تغيرت البلاد ومن عليها فوجه الارض مغبر قبيح

تغير كل ذی طعم ولون وقل بشاشة الوجه المليح

لکن ابن عباس رضي الله عنه وايي چي هغه څوک چي وايي چي آدم عليه السلام شعر وو ايه، نو دروغ يې وويل پر خدای او پر رسول د خدای ﷺ، ولې چي محمد ﷺ او ټوله انبياء په نفي کي د شعر سره برابر دي، او قرآن کريم خو له شاعريت د عليه الصلوٰة والسلام نفي کړې ده، او په حديث کي هم راغلي دي "ما انا بشاعر" لکن خبره داده چي آدم عليه السلام د هابيل په وژلو کي په سرياني ژبه يوه مرثيه وويل لکن په نثر سره نه په نظم سره، نو آدم عليه السلام وشيث عليه السلام ته وويل يا بني ته زما وصي يې دغه زما مرثيه د هابيل په باره کي په ياد لره تاچي په مرور د زماني تر ډېره پاته سي، نو خلګو ته به رقت او د زړه نرمي ورپيدا کوي، نو دا مرثيه پاته وه چي يعرب بن قحطان ته ورسېده او يعرب په عربي او سرياني دواړو ژبو خبري کولې او شاعر هم و، نو هغه مرثيه د آدم عليه السلام په باره کي د هابيل چي په سرياني ژبه وه وعربي ته يې را نقل کړه او پر وزن شعري يې جوړه کړه او پر هغه دوو مقدمو بيتو يې دوه بيته نور ورزيات کړه.

ومالي لا اجود بسکب دمع　　وها بيل تضمنه الفريح
اری طول الحياة علي غماً　　فهل انا من حياتي مستريح

تاريخ انبياء وايي چي د آدم ﷤ عمر چي يو سل او دېرش کاله و د هابيل تر قتل پنځه کاله وروسته خدای پاک ورته زوی ورکړی چي شيث يې نوم و معناه هبة الله. يعني په عوض کي د هابيل، او شيث ﷤ لوی عابد سړی و، په ساعاتو کي د ورځي او د شپې. او پنځوس صحيفې يې پر ده نازل کړي دي. نو شيث ﷤ د آدم ﷤ وصي او ولي عهد وګرځېدی. او آدم ﷤ وقابيل ته وويل ځه ولاړ سه "طريداً شريداً فزعاً" ترتلې، سرګښته او بېرونکی. نو قابيل خپله خور تر لاس ونيول او له آدم ﷤ څخه وتښتېدی د يمن عدن ښار ته ولاړی او هلته چي بعض اولاد الاولاد د آدم ﷤ موجود وه د هغو سره يو ځای سو، او بليس لعين د سړي په رنګ کي ورته راغلی او ورته وه يې ويل چي د هابيل قربان چي اور وخوړلی هغه په پټه د اور عبادت کاوه، نو ته هم بيت النار جوړ کړه او د اور عبادت شروع کړه چي ستا او د پسمانده ګانو به فائده وي، نو قابيل بيت النار جوړ کړی، اول د اور عبادت چي په دنيا کي شروع سوی دی هم دډغه قابيل ميراث دی، او د قابيل اولاد په لهوه ولعب د سورنا او طنبور او ډولک ربابو اخته وه او شراب يې څښل، او زنا او نور فواحش يې کوله حتی غرقهم الله بطوفان نوح ﷤، او د شيث ﷤ نسل باقي پاته سو الی اليوم القيامة.

**پوښتنه**: عبيد الله تا دمخه وويل چي قابيل کافر نه دی، اوس وايي چي هغه آتش پرست کافر دی؟

**ځواب**: ما چي وړاندي وويل ما داسي وويل چي په قتل د هابيل او دده سره په حسد نه دی کافر، ولي چي په ګناه کبيره سړی کافر کېږي نه، او اوس چي ما دی کافر وباله په سبب ددې چي د اور عبادت يې شروع کړی، او عبادت د غير الله شرک دی.

**درويش وايي**: چي دا خبره ډېره صحيحه ده چي پر صغيره ګنهو همېشه توب کول يعني پښېماني نه پر کول په کبيره ګناه سړی اخته کوي، او همېشه توب پر کبيره ګناه اخير سړی کفر ته رسوي فتفکر في حال قابيل مع ابيه آدم ﷤ و مع اخيه هابيل.

مِنْ اَجْلِ ذٰلِكَ ۚ كَتَبْنَا عَلٰى بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ اَنَّهٗ مَنْ قَتَلَ نَفْسًا بِغَيْرِ نَفْسٍ اَوْ فَسَادٍ فِي الْاَرْضِ فَكَاَنَّمَا قَتَلَ النَّاسَ جَمِيْعًا ؕ

**پوه سه:** چي کلمه د "من" ابتدائيه ده او متعلق په "کتبنا" پوري ده.

والمعنى په سبب د وقوع د جنايت عظيمه من ابن آدم يعني قابيل چي هابيل يې ناحقه قتل کړی. او لپاره د بندولو له دې کار څخه يعني ناحقه قتل په اينده کي نه کېږي مونږ ليکلي وه پر بني اسرائيلو يعني په تورات کي که وواژه يو سړي بېله قصاصه د بل نفس، او بېله فساد د قطاع الطريق غلو. يا زناء بعد الاحصان چي په رجم يې مرگ روا دی، نو بېله دغو اسبابو که څوک بل څوک قتل کړي، نو گويا ټوله انسانان يې قتل کړه، ددې آيت تاويل حسن بصري رحمه الله دا دول کوي چي د يوه نفس په قتل سره قاتل قصاصېږي لکه ټوله خلگ چي مړه کړي او پر قصاصېږي، او که څوک يو نفس ژوندی کړي يعني ولي د مقتول و قاتل ته عفوه وکړي او قصاص يې نه کړي لکه ټوله خلگ چي ژوندي کړي يعني په ثواب کي، حسن بصري رحمه الله وايي چي مقصود ددې آيت تعظيم د قتل النفس دی او احياء د نفس دی په عفوه سره من القصاص لپاره د بېرولو د خلگو عن قتل النفس. يعني بغير حق او ترغيب دی د خلگو في العفو عن القصاص. او ابن عباس رضي الله عنه په روايت د عکرمه وايي من قتل نبياً او يا سلطان عادل فکانما قتل الناس جميعاً في الوذر يعني په گناه کي، او که چا د يو نبي مرسته وکړه يعني له مرگه يې خلاص کړی، او يا يې د امام عادل سره کومک وکړی او له قتل څخه يې وساتی فکانما احياء الناس جميعاً، او مجاهد رحمه الله وايي چي څوک يو نفس محرمه قتل کړي ځای يې دوږخ دی لکه ټول خلگ چي مړه کړي هم ځای يې دوږخ دی من التاويلات.

وَمَنْ اَحْيَاهَا فَكَاَنَّمَآ اَحْيَا النَّاسَ جَمِيْعًا ؕ

**درویش وایي:** چي ددې آيت ژباړه او تاويل دمخه آنفاً تېر سوه.

وَلَقَدْ جَآءَتْهُمْ رُسُلُنَا بِالْبَيِّنٰتِ ؗ

په تحقيق سره راغلي دي ودوی ته رسولان زمونږ يعني يو په بل پسي په معجزاتو واضحاتو سره.

**پوه سه:** چي لام د "لقد" موطئه د قسم محذوف دی او د "جائتهم" ضمیر د جمع راجع دی وبني اسرائیلو ته لان الکلام معهم، که څه هم روح البیان و اهل کتابو ته مطلقاً راجع کړی دی.

**پوه سه:** چي له "رسول" څخه مراد هغه اصطلاحي معنی نه ده چي مستجد د دین به لري، ولي چي انبیاء د بني اسرائیلو ټوله پر دین د موسیٰ علیه السلام وه او کتاب یې تورات و، بلکې رسول دلته په معنی د نبي دی الا ان یقال انه مبني علی مذهب من قال ان النبي والرسول بمعنی واحد.

**ثُمَّ اِنَّ کَثِیۡرًا مِّنۡهُمۡ بَعۡدَ ذٰلِکَ فِی الۡاَرۡضِ لَمُسۡرِفُوۡنَ ﴿۳۲﴾**

وروسته بیا نو ډېر ددوی یعني بني اسرائیلو وروسته تر ارسال د رسولانو او د تاکید د امر په نه کولو سره د امثالو د جنایت د قابیل اسراف کوونکي دي په قتل او باک هم نه په کوي.

**پوه سه:** چي اسراف تجاوز دی له حدودو څخه د اعتدال چي خدای جل جلاله امر په کړی وي من غیر مبالات یعني باک نه په کوي.

**فائدة في الآیات السابقة:** په حدیث کي د براء بن عازب رضي الله عنه چي ابن ماجه یې روایت کړی دی راغلي دي! چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل "لزوال الدنیا اهون علی الله من قتل مؤمن بغیر حق" یعني خرابول د دنیا سپک دي پر خدای جل جلاله باندي تر قتل د مؤمن بېله حقه د قتل. وقد ذکرنا موجبات القتل عن قریب.

**پوه سه:** چي سلیمان بن علي و حسن بصري رحمه الله ته وویل په باره کي د دغه آیت وویل "وکتبنا علی بني اسرائیل الی اخیرها" چي دا احکام زموږ لپاره هم دي لکه د بني اسرائیلو لپاره چي دي؟ حسن رحمه الله ورته وویل ای یعني هو والذي لا اله غیره ماکان دما، بني اسرائیل اکرم علی الله من دمائنا. هو! زموږ لپاره هم دی، ولي چي وینې د بني اسرائیلو عزت مندي نه دي پر خدای جل جلاله زموږ تر وینو.

**اِنَّمَا جَزٰٓؤُا الَّذِیۡنَ یُحَارِبُوۡنَ اللّٰهَ وَرَسُوۡلَهٗ**

نه ده جزاء او عذاب د هغو کسانو چي جنګ کوي د خدای او د رسول سره د

خدای ﷻ مکر دا وروسته چي راځي.

**پوه سه:** چي مراد له جنګ څخه د خدای او د رسول، جنګ دی د دوستانو سره د خدای او د رسول وهم المسلمون، خدای ﷻ خپل د دوستانو جنګ خپل او خپل د رسول جنګ وګرځاوه لپاره د تعظیم د دوستانو د خدای او د رسول.

**پوه سه:** چي مراد له دغې محاربې څخه په قول د روح البیان قطع الطریق دي چي یو قوم وي ذی شوکة او سلاح وي په صحراء کي سره جمع سي، او د مسلمانانو پر اموالو تعرض کوي او د مسلمانانو پر وینه او ازواجو تعرض کوي.

## وَيَسْعَوْنَ فِي الْأَرْضِ فَسَادًا

او کوشش کوي په مځکه کي د فساد چي دا مذکوره شیان او اعمال وه.

**پوه سه:** چي "فساداً" حال دی له ضمیر څخه د "یسعون" ای حال کونهم مفسدین اصل نزول ددې آیتو په قوم د هلال بن عویر اسلمي دی چي هغه د علیه الصلوٰة والسلام سره قرار داد او معاهده کړې وه، چي زه او زما قوم نه ستا سره کومک په جنګ کي کوو، او نه د نورو کفارو مرسته کوو ستا سره په جنګ کي. و هغه څوک مسلمانان چي تاته درځي زموږ پر لار هغه زموږ له خوا څخه په امن کي دي، او هغه څوک چي په قصد د اسلام و مدینې ته ځي زموږ پر لار هغه هم زموږ له خوا څخه په امن کي دي. نو یو قوم د بني کنانه وو د علیه الصلوٰة والسلام وخواته روان وه د اسلام راوړلو اراده یې وه، د هلال د قوم پر لار تېرېدل او هلال په خپله په دغه ورځ حاضر نه و، نو د هلال قوم د هغو بني کنانه وو لار ونیول نو هغه یې مړه کړه او مالونه یې ځني لوټ کړه.

**سوال:** څوک خو په نفس ارادي د اسلام له حربي توبه نه وځي او حد خو په قطع الطریق کي د حربي نسته که څه هم مسامن حربي وي، نو دې قوم ته د هلال ولې حد وېاکل سو کما سیئاتي؟

**ځواب:** معنی د یریدون الاسلام یریدون تعلم احکام الاسلام ده، یعني مسلمانان خو دمخه لا وه.

فائده محاربه او فساد چونکه پر مختلفو اقسامو دی لکه (۱) قتل بدون اخذ

المال (۲) او بل قتل دی سره د اخذ المال (۳) اخذ المال بدون القتل (۴) صرف بیربول بدون القتل واخذ المال. نو په دې راتلونکو آیتو کې یې د هرې مرتبې لپاره جزاء وټاکل.

## اَنْ يُّقَتَّلُوْٓا

یعني حداً او پر صلب دې نه اچوي دا په هغه صورت کې چې دوی یوازې قتل کړی وي که څه هم اولیاء د مقتول عفو ورته وکړي لکن ددوی عفو ته اعتبار نشته، ولې چې دا حق د شرعي شریفې دی حق العبد نه دی. او په دې کې هم فرق نشته که یې په آله جارحه لکه توره وغیره قتل کړی، او که یې په ډبره وژلی وي او که یې په لرګي وهلی وي مثلاً الی غیر ذالک.

## اَوْ يُصَلَّبُوْٓا

یا دې یې په دار کړي که یې قتل او اخذ المال دواړه کړي وي.

**فائده:** صلب دا یولې لکه د لاندې پسه چې پر یو لرګي واچوي او په نس او نورو ځایو کې یې په نېزو او چړو ووهي تر څو چې مري، او که یې پر مځکه مړ کړي بیا دې پر دار نه اچوي لانه لا فائدة فیه. یعنې زجر د ورته کار څه.

## اَوْ تُقَطَّعَ اَيْدِيْهِمْ وَاَرْجُلُهُمْ مِّنْ خِلَافٍ

او یا دې ور پرې کړه سي لاسونه او پښې ددوی، یعنې رسته لاسونه ور پرې سي له اول بنده څخه. او چپه پښې دې ور پرې کړل سي د بجلکي سره که یې واژي مالونه اخستي وه یا له مسلمان څخه او یا له اهل ذمه څخه لکن دومره مقدار روپۍ دې چې پر دغو قطاع الطریقو وېشل سوي وای هر یوه ته لس درهمه ور رسېدل، او یا برابر د لس درهمه که نقدي روپۍ نه وي بلکې نور عرض وه.

**فائده:** قطع د رسته لاس خو یې په سبب د مال د ورلو ده، او قطع د چپه پښې یې په سبب ددې ده چې دوی امنیت د لارې ګډوډ کړی و.

## اَوْ يُنْفَوْا مِنَ الْاَرْضِ

او یا له مخه څخه د مځکې ورک کړل سي یعنې په محبس کې دې بندیان کړي

او بعض اهل مذهب وايي چي له وطنه دې فراره کړي. والاول هو مذهب الحنيفية نو چي بنديان يې کړه شر ددوی به دفع سي او څه ناڅه تعزير دې هم ورکړي دا پر دې تقدير چي قطاع الطريق صرف خوف زده کړي وه تېرونکي پر دوی نه يې وژلي وه او نه يې مال ځني اخستی و، نو دا سبب ددوی په سبب د امنيت د لاري چي دوی ګډوډ کړی و.

ذٰلِكَ لَهُمْ خِزْيٌ فِي الدُّنْيَا وَلَهُمْ فِي الْآخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٌ

دغه مذکوره جزاګانې دوی لره رسوايي ده په دې دنيا کي، او دوی لره په اخرت کي لوی عذاب دی.

إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا مِنْ قَبْلِ أَنْ تَقْدِرُوا عَلَيْهِمْ فَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ

مګر نه هغه قطاع الطريق چي توبه وکاږي له قطع الطريق څخه دمخه تر دې چي تاسي قادره کېدای پر دوی، نو چي دمخه يې توبه وکښل، نو تاسي په دې پوه سئ چي خدای ﷻ غفور دی يعني ګناه بخښونکی دی او علاوه پر هغه مهربان دی پر ګناه کارانو توبه کونکو باندې.

**فائده:** استثناء د مخصوص په هغه څه پوري چي له حقوق څخه د خدای ﷻ وي، او هر چي حقوق د انسانانو دي هغه په دې توبې سره نه ساقطېږي مثلاً که قاطع الطريق يو سړی وژلی و، او بيا قبل القدرة عليه توبه وکښل نو په دې توبه وژل دده حد آخو ساقط سو، ولي دا حق الله و، او ولي د مقتول پر خپل حق پاته دی من القصاص او العفو، ولي چي دا حق العبد دی، او که قطاع الطريق له چا څخه ډېر مال اخستی و او بيا قبل القدرة عليه توبه وکښل نو لاس او پښه يې نه پرې کېږي ولي چي دا حق الله دی په توبه ساقط سو، مګر د صاحب المال حق باقي دی په مال کي د قطاع الطريق پر قاطع يې رد واجب دی، او که قاطع الطريق بعد القدرة عليه توبه وکښل، روح البيان وايي چي له ظاهر څخه د آيت خو داسي فهمېږي چي دا توبه وده ته فائده نه کوي د هر حد چي مستحق و هغه حد پر جاري کېږي کما يضمن حقوق العباد. البته ددې توبه فائده داده چي عذاب عظيم په اخرت کي نسته وده لره.

**پوه سه**: چي دا ټوله بيان چي تېر سو په باره کي د قطاع الطريق د مسلمانانو دی.
**مسئله**: که قطاع الطريق کافران وه او له کفره يې توبه وکښل او ايمان يې راوړی، نو له ده څخه ټوله عقوبات ساقط دي قبل القدرة وبعدها. او که يې څوک وژلی وي او يا يې مال د چا اخستی وي په حال کي د کفر پر هغه کافر مؤمن باندي د هيڅ شي مطالبه نسته که څه هم ايمان يې بعد القدرة وي کما لو آمن قبل القدرة عليه.
**مسئله**: مسلمانان که محاربان وه نو که دوی توبه وکښل قبل القدرة عليهم ای قبل ان يظفر امام المسلمين عليهم. نو له دوی څخه هغه عقوبت چي حق الله وي ساقط دی او حقوق العباد نه ځني ساقطېږي، نو که دوی يو مسلمان په وخت کي د قطع وژلی و، نو له دوی څخه ساقط دی په توبه سره قبل القدرة يعني خواه مخواه وژل ولي چي حتماً وژل حق الله دی مګر د ولي المقتول حق چي قصاص دی پر پاته دی نو د ولي المقتول خوښه ده که يې قصاصوي او که عفوه ورته کوي، او که يې له يو مسلمان څخه په وخت کي د قطع الطريق مال اخستی و او بيا يې توبه وکښل نو قطع اليد ځني ساقط دی ويجب عليه رد المال. وان جمع بينهما ای القتل واخذ المال، نو له ده څخه خامخواه وجوب القتل او صلب ساقط دی او ضمان المال پر پاته دی، او دغه رنګه د ولي المقتول د قصاص حق ان شاء عفی عنه وان شاء اقتص منه.
**درويش وايي**: چي له دې ټوله تفصيل څخه دا معلومه سوه چي قطع الطريق او بېرول د مسلمانانو من اقبح السيئات. او هم دا و شان نزول د دې آيتو په نېږ د اکثرو مفسرينو. او مظهري رحمه الله په روايت د بخاري له انس رضي الله عنه څخه داسي روايت کړی دی چي يو څو نفره د عکل له قبيلې څخه عليه الصلوة والسلام ته راغله او اسلام يې راوړی، نو د مديني هواء بده پر ولګېده يعني مرض د نفخ البطن وربېښ سو غالباً له دوا څخه داسي معلومېږي چي د استسقاء مرض به وربېښ سوی وی، ولي البان د اوښانو د استسقاء د مرض دوا ده. او بل په روايت کي د ابن عباس رضي الله عنه راغلي دي چي راغلي خلګ د عرنيه د قبيلې وه.
**درويش وايي**: چي جمع يې ممکنه ده بعض راغلي کسان څوک د عکل له قبيلې وه او بعض د عرنيه له قبيلې وه، نو عليه الصلوة والسلام دوی امر کړه چي

ولاړ سئ و اوښانو ته د صدقې او تاسي څيښئ شيدې او بولي د اوښانو، نو دوی چي دا کار وکړی دوی جوړ سوه او په بدن چاغ سوه، نو دوی مرتد سوه العياذ بالله او دوی مړه کړه رعات "ساروانان" د اوښانو د صدقې او اوښان يې بوتله ولاړه، نو عليه الصلوة والسلام ته خبر راغلی خلگ يعني اصحاب کرام ﷺ يې پسي واستول، نو صحابه کرامو هغه کسان سره د اوښانو ونيول او عليه الصلوة والسلام ته يې را وستل، عليه الصلوة والسلام امر وکړی لاسونه او پښې دو پرې کړئ او مېخونه يې تاوده کړه سترگې يې په ورتوري کړې. او د ډيرو په شپله کي يې وغورځول، دوی به د اوبو ناري وهلې اوبه به چا نه ورکولې تر څو چي په داغه حالت کي مړه سوه، ابو قلابة ﷺ وايي سبب د تشديد د عليه الصلوة والسلام ددې خلگو سره په دې وجه و چي دې خلگو رعات الابل وژلي وه او اوښان يې غلا کړي وه، او حاربوا الله ورسوله هم وه او په مځکه کي يې فساد هم وکړی. نو دا و سبب د تغليظ د عذاب ددوی سره.

**پوښتنه**: په شريعت محمدي کي مثلت يعني پزه يا غوږونه پرېکول يا په سترگو تاوده مېخونه ورچخل خو ممنوع وه؟

**ځواب**: محدثين وايي چي دا فعل عليه الصلوة والسلام قصاصاً وکړی ولي چي دوی د رعات الابل سره دا تولـه کارونـه کـړي وه، او قتاده لـه ابن سرين ﷺ څخه داسي روايت کړی دی چي دا فعل د عليه الصلوة والسلام دمخه و تر انزال د حدود الشرعية وو، او ابو الزياد وايي چي دا فعل چي عليه الصلوة والسلام وکړی خدای حدود نازل کړه او عليه الصلوة والسلام يې له مثلت څخه منع کړی، ولهذا روی عن قتادة ﷺ بلغنا ان النبي ﷺ بعد ذالک يحث علی الصدقة وينهی عن المثلة او نوري توجيهات د فعل د عليه الصلوة والسلام علماؤ د صحابه وو او تابعينو نقل کړي دي.

**درويش وايي**: چي زما په نيز اصلي توجيه د مثلت ددوی قصاص د رعاتو الابل ده کما اوردناه من قبل لکه سليمان التميمي چي له انس ﷺ څخه روايت کړی دی قال انما سمل النبي ﷺ اعينهم لانهم سملوا اعين الرعات.

**پوه سه:** چي مظهري ګډوډ روايتونه نقل کړي دي حتى چي په بعضي رواياتو کي يې راوړي دي چي دغه آيتونه يعني "انما جزاء الذين الخ" سرزنش و د عليه الصلوة والسلام پر فعل د مثلث والله اعلم زه خو داسي نه سم ويلای که څه هم ټوله خلګ داغسي ووايي، اوس خو به لا مظهري وليث بن سعد ته حواله کړي وي

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱتَّقُواْ ٱللَّهَ وَٱبۡتَغُوٓاْ إِلَيۡهِ ٱلۡوَسِيلَةَ

اې هغه کسانو چي ايمان يې راوړی دی له خدايه وېرېږئ يعني له عذاب او عصيانه د خدای جل جلاله، او طلب کړئ يعني د خپلو ځانو لپاره و خدای پاک ته يعني و ثواب ته د خدای او قرب ته د خدای په واسطه سره د اعمال صالحه وو.

**پوه سه:** چي "اليه" متعلق دی په "وسيلة" پوري لکن مقدم يې کړی پر وسيله لپاره د اهتمام.

**سوال:** نحات وايي چي د مصدر معمول پر مصدر نه دمخه کېږي لضعف عمله؟

**ځواب:** وسيله خو مصدر نه ده بلکې په معنا د مايتوسل به الى الله تعالى ده، ويتقرب به اليه تعالى والجمع وسائل، او عطاء رحمه الله وايي چي وسيله افضله د درجو د جنت ده، نو ځکه په حديث نبوي کي راغلي دي "سئلوا الله لي الوسيلة فانها درجة في الجنة لا ينالها الا عبد واحد وارجوا من الله ان اكون هوانا" يعني تاسي سوال کوئ له خدای جل جلاله څخه زما لپاره د وسيلې، ولي چي هغه يوه درجه ده په جنت کي يعني درجه عظيمه چي هغه نه رسېږي مګر و يوه بنده ته او زما اميد دی چي هغه بنده زه يم او د هغه چي ماته طلب د وسيلې وکړي زما شفاعت به په ورځ د قيامت د هغه نصيب سي.

وَجَٰهِدُواْ فِي سَبِيلِهِۦ لَعَلَّكُمۡ تُفۡلِحُونَ ٣٥

او تاسي جهاد کوئ په لاره کي د خدای جل جلاله يعني لپاره د اعلاء د کلمة الله له دښمنانانو ظاهره او باطنه وو سره شايد بلکې په تحقيق تاسي به ورسېږي و قرب الهي ته او سعادت اخروي ته.

**پوه سه:** چي بعض مشائخ ددې زمانې ترجمه د "وسيلة" په شېخ مرشد سره کوي.

**درويش وايي:** چي شېخ کامل چي اوصاف د ارشاد پکښې وي کما بين في

کتب التصوف که څوک پیدا کړي خو هغه کبریت احمر دی او مسک اذفر دی، لکن توفیق الوصول الیه من الله الاکبر. لکن زما غرض دادی چې د لفظ "وسیلة" ترجمه شیخ مرشد نه ده کما زعموا.

**پوه سه:** چې صحبت او هم نشیني د صالح سړي هر څوک چې وي ډېر ښه کار دی په صحیح حدیث نبوي کې راغلي دي چې د صالح سړي ناسته داسې مثال لري لکه سړی چې د مشک خرڅونکي په دکان کې کښېني. نو یا به دی مشک څني رانیسي او یا به دکاندار ده ته څه مشک مفت درکړي، او که له دغو دواړو څخه یو هم نه سي پېښه دکان خو یې خوشبویه دی، دی چې را وځي ده د کالو به خوشبویي ولاړه وي. او د جلیس سوء مثال یعني د بد سړي مثال داسې دی لکه سړی چې د آهنګر په دکان کې کښېني، نو یا به د آهنګر د اور کوره ده ده کالي در وسوځي او یا به ده په دود لړلی دکان ده مخ او کالي در تور کړي، او که دا یو نه وي چونکه د آهنګر د دکان هوا بدبویه ده دی چې راوزي ده به هم بد بوی څي او کما قال رسول الله ﷺ.

**درویش وایي:** چې داوسنی زماني یعني سنه ۱۴۲۷ هـ ق بلکې تر دې سنې هم ډېر دمخه په نامه پیرانو او خلیفه ګانو پیري او مریدي تجارت ګرځولي دي. پایڅې یې پورته کړي وي نن ددې مرید پر کور بېله دعوته مېلمه کېږي په خپلو ورجو غوښو ځان موړ کړي، سبا د بل مرید پر کور، مګر خدایي کسان خامخواه په امت محمدیه ﷺ کې سته لکن اوس به ډېر کم وي وهم من عصمهم الله من تلک الاعمال اللهم صبراً.

## إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْ أَنَّ لَهُم مَّا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا وَمِثْلَهُ مَعَهُ

په تحقیق هغه کسان چې کفر یې مختاره کړي وي که فرضاً دوی لره یعني هر یوه لره مافي الارض وي من خزائنها وجواهرها وذخائرها.

**پوه سه:** چې مافي الارض اسم دی د "ان" او "لهم" یې خبر دی "جمیعا" یې تاکید دی د "ما" چې موصوله ده، او یا حال دی "ومثله" یعني مثل د مافي الارض عطف دی علی مافي الارض معه سره د مافي الارض "معه" ظرف دی حال دی له معطوف څخه.

لِيَفْتَدُوا بِهِ مِنْ عَذَابِ يَوْمِ الْقِيٰمَةِ مَا تُقُبِّلَ مِنْهُمْ ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٣٦﴾

چي دوی يې فديه وګرځي لـه عذاب څخه د ورځي د قيامت چي دوزخ دا ټولـه مافي الارض ومثله له دوی څخه به نه سي قبول يعني لـه عذابه به نه سي خلاص، او دوی لره عذاب درد ناک سته چي دوزخ دی يعني په ورځ کي د قيامت.

**پوه سه:** چي لام جاره متعلق دی په هغه فعل سره چي خبر دی د "ان" چي "لهم" پوري متعلق و چي فعل د استقروا و چي "لهم" پوري متعلق و، او حرف د "به" متعلق دی په "يفتدوا" پوري او ضمير د "به" راجع دی و موصول "ومثله" ته.

**سوال:** ضمير د "به" خو مفرد دی نو څرنګه دوو شيانو ته راجع کېږي؟

**ځواب:** ضمير ته يې حکم د اسم الاشارة ورکړی دی کانه بدل به بذالک فافهم.

يُرِيدُونَ أَنْ يَخْرُجُوا مِنَ النَّارِ وَمَا هُمْ بِخَارِجِينَ مِنْهَا ۖ وَلَهُمْ عَذَابٌ مُقِيمٌ ﴿٣٧﴾

**پوه سه:** چي دا جمله مستانفه ده، او استيناف يې بياني دی چي ځواب د سوال مقدر دی کانه قيل کيف حالهم فيها او ماذا يصنعون فاجيب يريدون الخ، والمعنی دوی اراده لري دې چي ووزي لـه اور څخه د هغه وخت چي لمبې د اور دوی راپورته کړي، نو دوی هڅه وکړي چي لـه اوره ګوندي ووزو "ولات حين مناص" اوس نسته وخت د خلاصون، او بعض مفسرين وايي چي مراد لـه "يريدون" څخه تمنای قلبي ددوی ده لـه دوزخ څخه، او دوی نـه سي کېدای خارجين له اور څخه لانهم کلما ارادوا ان يخرجوا منها اعيدوا فيها او دوی لره دی عذاب مقيم يعني دائم چي هيڅ نه قطع کېږي، په حديث شريف کي راغلي دي چي جنتيان چي جنت ته ورسي او دوزخيان دوزخ ته ورسي، نو د خدای ﷻ له خوا اعلان ذکر سي يا اهل الجنة خلود بلا موت يعني فيزدادون فرحاً علی فرحهم، او دوزخيانو ته به هم وويل سي خلود بلا موت فيزدادون غما علی غمهم.

**درويش وايي:** چي په حديث شريف کي راغلي دي چي "يؤتي بانعم اهل الدنيا من اهل النار يوم القيامة فيصبغ في النار صبغة" راتګ به وکړل سي په لوی نعمت داره سره په دنيا چي لـه اهل النار څخه وي يعني کافر وي په ورځ د قيامت، نو

غوټه به یې کړې په اور کې یوه غوټه یعنې یوه نفخه د اور به ورورسېږې "ثم یقال یا ابن آدم هل رئیت خیراً قط فیقول لا والله یارب" بیا به وروته وویل سي ای د آدم زویه آیا تا په دنیا کې یو خیر لیدلی او یا تا په دنیا کې یو نعمت لیدلی و؟ دی به ورته ووایې "لا یا رب" نو معنا داده چې سختې د عذاب له ده څخه هېره کړې هغه چې پر ده تېر سوي وه له نعمتو څخه د دنیا. او بیا به راتګ وکړل سي په هغه سړي سره چې سخت ترین د خلګو وي په دنیا کې از روی فقر او له اهل جنت څخه به وي، نو یوه غوټه به په جنت کې ورکړې یعنې بوی د جنت به یې تر پېزه سي، بیا به وهغه ته وویل سي ای ابن آدم پر تا یو وخت فقر درغلی و او تا په دنیا کې یوه سختې لیدلې وه، فیقول لا والله یارب، یعنې د دنیا ټولې سختې په یوه بوی د جنت ځنې هېرې سي، کذا في شرح المشارق لابن مالك رحمه الله.

وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوٓا۟ أَيْدِيَهُمَا

نر غل او ښځه غله یعنې چې غلا وکړې پرې دې کړل سي لاسونه ددوی.

**یوه سه:** چې "والسارق آه" مبتدا، ده خبر یې محذوف دی ای حکم السارق والسارقة ثابت فیما یتلی علیکم، نو "فاقطعوا" بیان دی د حکم مقدر.

**پوښتنه:** څه ضرورت سته و تقدیر ته د خبر؟

**ځواب:** له دې سببه ضرورت سته چې "فاقطعوا" امر دی او امر انشاء ده نو خبر نه سي واقع کېدای بېله تاویله.

**یوه سه:** چې مراد "له ایدي" څخه ښي (راسته) لاسونه دي.

**سوال:** ایدي خو جمع ده او د غله یا د غلې خو دوه لاسونه دي؟

**ځواب:** په نحو کې وایي چې دوه لفظ د تثنیې متوالي مستکره دي یعنې یداهما. نو ځکه یې جمع کړه او پر دوه والي باندې ضمیر د "هما" دلالت کوي کما في قوله تعالى فقد صغت قلوبکما موضع قلبا کما فافهم هداك الله.

جَزَآءًۢ بِمَا كَسَبَا نَكَٰلًا مِّنَ ٱللَّهِ ۗ وَٱللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿٣٨﴾

دا جزاء ده د هغه فعل چې دوی کړی دی یعنې غلا. او دا عقوبت دی د

خدای ﷻ له خوا چي دوی به هم بیا غلا نه کوي او د نورو غلو چي دوی ووینې عبرت به یې سي. او خدای ﷻ غالب دی پر خپلو کارو. یعني هرڅه اراده چي یې وسي هغه کولای سي، نه یې د مراد څوک مانع کېدای سي. ولي چي خدای لره ضد اوند نسته، او په هر حکم کي که د امر وي او که د نهي وي حکمت لري وهي اخلاء العالم من فساد النظام لکه په موجوده آیت کي چي یې حکم وکړی پر سارق او سارقه په قطع الید سره.

**پوښتنه**: په آیت کي د سرقي خدای پاک نر دمخه کړی او په آیت کي د زناء یې ښځه دمخه کړه الزانية والزاني فاجلدوا كل واحد" حکمت یې څه دی؟

**ځواب**: په سرقه کي شجاعت لوی کار فرما دی، او په شجاعت کي نر تر ښځي بالا دی علی الاکثر، او په زنی کي باعث شهوت دی او په شهوت کي ښځه تر نر بالا ده غالباً.

فَمَنْ تَابَ مِنْ بَعْدِ ظُلْمِهِ وَأَصْلَحَ فَإِنَّ اللَّهَ يَتُوبُ عَلَيْهِ ۗ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ۝

نو که چا که نر وي او که ښځه وي توبه وکښل له سرقي څخه پسله ظلمه څخه يعني اخذ المال غيره بالسرقة. او خپل ځان یې اصلاح کړی په رد د ماسرق او بالعفو من المسروق منه، نو خدای ﷻ یې توبه قبولوي ولا يعذبه في الآخرة. په تحقیق سره خدای پاک بخښونکی د گناه دی او مهربان دی.

**پوهه**: چي قطع اليد نه ځني ساقطېږي په توبه لان فيه حق المسروق منه، زموږ د حنفیانو په مذهب کي.

**مسئله**: حدادي رحمه الله وايي که سارق مال مسروقه رد کړی ومسروق منه ته قبل المرافعة الى الحاكم لاتقطع يده. واما بعد المرافعة الى الحاكم فيجب القطع.

**سوال**: چي د غله لاس پرې سي او مال هم رد کړي، نو غله ته څه گټه ورسېده؟

**ځواب**: که یې توبه د زړه له کومي وه، نو خدای پاک به وده ته اجر عظیم ورکړي پر قطع اليد باندي. لکه انبیاء علیهم السلام او صلحاء دامت چي خدای پاک یې په امراض او بلاياو گوناگون مبتلا. کوي لپاره د رفع د درجاتو ددوی في الجنة.

اَلَمْ تَعْلَمْ اَنَّ اللّٰهَ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

**پوه سه:** چي مخاطب په آيت کي خو عليه الصلوة والسلام دی لکن مراد ټوله مؤمنان دي ولي ټوله خو په دې خبر دي "ان الله له آه" او استفهام لپاره د انکار دی او نفي د نفي اثبات دی يعني ته په دې خبر يې او مقصود په اثبات کي د علم ددوی شاهدان دي، ولي پر قدرت الهي پر مضمون د آيت آتي.

يُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ وَيَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَآءُ ۗ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۴۰﴾

خدای ﷻ په عذابوي هغه څوک چي اراده د عذاب يې لري او بخښنه کوي و هغه چاته چي اراده د بخښي يې ورته وسي. او خدای ﷻ پر هر شي قادر دی فيدخل في عموم الشئ المغفرة والتعذيب.

**پوه سه:** مفعول د "يشآء" په دواړو ځايو کي محذوف دی يعني التعذيب والمغفرة کما اشرنا اليه في ترجمة الآية.

فائدة في بيان السرقة وهي اخذ المكلف. نو که نابالغ یا لېوني غلا وکړي قطع اليد نسته باندي "خفية" يعني په پټه.

**پوه سه:** چي "خفيـة" چي رکن د سرقې دی احتراز دی لـه غصب څخه چي د غاصب لاس نه پرې کېږي که څه هم غصب لويه گناه ده، په قدر د لس درهمه چي سکه پر وهل سوې وي. نو که عين دراهم وه خو خير او که بل مال و، نو قيمت ته د هغه مال اعتبار دی. نو که لس درهمه ته رسېدی قطع اليد پکښي واجبه ده. له خوندي ځايه څخه چي ده لره ملک نه وي پکښي، د "حرز" څخه مراد دادی چي ممنوع ځای وي که مانع په بناء وي لکه خونه او که پيره دار وي، بغوي رحمه الله وايي که يو چا شی غلا کړی بېله حرزه لکه مېوه د چا له باغه چي پيره دار نه لري، يا يو پسه يا بل حيوان چي په صحراء کي وي او محافظ نه وي ورسره، او يا يې مال غلا کړی له داسي خوني څخه چي جلا وه له نورو خونو څخه د سرای په دې ټولو کي قطع نسته، او په دې قول سره من حرز لا ملک له فيه چي معنا يې داده چي داسي ممنوع ځای وچي سارق لره ملک نه وپه دې حرز کي. احتراز يې وکړی چي

مال مسروق په داسې خونه کې وي چې د سارق ملک وي لکه څوک چې د بل چا په خونه کې مال کښېږدي او خوني والا يې غلا کړي پر دغه سارق قطع اليد نشته، ولې چې حرز د سارق ملک و.

**مسئله**: د سارق رسته لاس دې وريږي کوي له اول بنده څخه چې زند يې بولي، او وروسته تر پريکېدلو دې په تودو تېلو چخ کړي تاچې وينه يې ودرېږي، ولې که يې داغ نه کړي نو يې وينه بهېږي خو سارق مري، او حد خو لپاره د زجر دی نه لپاره د قتل.

**مسئله**: که سارق چې لاس يې پرې سو دوهمه پلا بيا غلا وکړه نو چپه پښه دې د اول بنده سره وريږي کړي، او که يې درې يمه پلا غلا وکړه بل لاس يا پښه دې نه څني پرې کوي بلکې بندي دې کړي تر هغو پورې چې توبه کاږي، او علامه د تائبين پر معلومېږي لقوله علي ؓ په باره کې د داسې چا چې درې يم وار يې غلا کړې وه چې زه له خدايه شرمېږم چې زه داسې لاس وسارق ته نه پرېږدم چې دی خوراک په کوي، يعني دا بل لاس هم وريږي کړم، او زه شرمېږم که يې داسې پښه وريږي کړم چې ده په تګ پرې کولای يعني که يې راسته پښه ور پرې کړم.

**مسئله**: اثبات د سرقې په هغه شي سره کېږي چې اثبات د شراب خمر په هغه سره کېږي يعني يا اقرار د سارق يا دوه شاهدان لکن د ښځو شاهدي په حدودو کې نه قبولېږي بشبهة البدلية منه ، والحدود يندر بالشبهات.

**مسئله**: طلب د مسروق منه شرط د قطع دی ولې چې خيانت پر ملک د غير لکه سرقه لاتظهر الا بخصومة ذالک الغير.

**فائده**: په قطع کې د لاس په سبب د سرقې فرق نسته د امير او د فقير، بخاري له عائشې ؓ څخه روايت کړی دی چې يوه ښځه د بني مخزوم د قبيلې غلا يې کړې وه، عليه الصلوة والسلام ته چې موضوع پېش سوه عليه الصلوة والسلام حکم د قطع اليد پر وکړی، نو يې اقرباء د ښځې وغوښتل چې سارقه ښځه د قطع اليد څخه خلاصه کړي، نو اسامه بن زيد ؓ چې پر عليه الصلوة والسلام ډېر ګران و لکه پلار دده چې زيد و پر عليه الصلوة والسلام ګران و، نو د ښځې

قريبانو اسامه بن زيد ﷺ و عليه الصلوة والسلام ته ورواستاوه چي ددې ښځي شفاعت دي و عليه الصلوة والسلام ته وكړي چي لاس دې نه ورپرې كوي، هغه چي ورغلى عليه الصلوة والسلام د اسامه خبره ونه منله او داسي يې ورته وويل "اتشفع يا اسامة في حد من حدود الله انما اهلك الذين قبلكم انهم كانوا اذا سرق فيهم الشريف تركوه واما اذا سرق فيهم الوضيع والضعيف اقاموا عليه الحد.

**ترجمه:** آيا ته شفاعت كوې اې اسامه په يو حد كي د حدودو د خداى ﷻ، استفهام انكاري دى يعني مه يې كوه. او ورته زياته يې كړه چي ترتاسي دمخه خلگ يعني اليهود غالباً چي خداى ﷻ هلاک كړه په دې سره چي د لوړ خاندان سړي به غلا وكړه هغه به يې پرېښوى يعني حد به يې نه پر جاري كاوه او چي يو ضيف سړي به غلا وكړه حد به يې پر جاري كاوه، او عليه الصلوة والسلام اسامه ته داهم وويل "لو ان فاطمة بنت محمد سرقت لقطعت يدها"

**مسئله:** په حديث شريف كي راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام نهي وكړه له شفاعت څخه په حدود كي بعد بلوغ الامام، له دې سببه ده مبارک د اسامه ﷺ شفاعت رد كړى، واما الشفاعة قبل البلوغ الى الامام، نو شفاعت كول و مجني عليه ته روا دى او پر جاني كه سارق وي او كه بل پرده اچول يعني شاهدي نه پر اداء كول چي مجني عليه طلب نه وي كړى مستحب كار دى، سعدي شيرازي وايي.

پس پرده بيند عملهاى بد		هم اوپرده پوشد بآلاى خود

يعني خداى ﷻ پس پرده ويني يعني علم پر لري عملونه بد د بندگانو او هم په خپله خداى پاک پرده اچوي پر عملو بدو د بندگانو په خپل احسان سره.

**درويش وايي:** چي امام ابو منصور ماتريدي ﷬ چي امام دى د حنيفيانو په عقائدو كي وايي كه څوک وايي څه حكمت الهي دى په قطع كي د يد چي په زرو بلكي په لكو روپى يې قيمت دى په سرقه د لس درهمه كېږي، وكيف يكون قطع اليد جزاء د فعل د سارق يعني سرقة عشرة دراهم، او سره ددې چي خداى پاک وايي "من جاء بالسيئة فلا يجزى الامثلها" واين مماثلة بين قطع اليد وبين سرقة عشرة دراهم؟

**ځواب:** قطع اليد خو د عشرة دارهم عوض نه دى بلكي قطع اليد جزاء ده د هتک او

بې حرمتي، د حقوق د خدای ﷻ چې سارق وکړه ولهذا قال الله ههنا جزاء بما کسبا. یعني دا قطع الید جزاء ددوی د کسب او فعل ده نه جزاء د لس درهمه. او د خدای پاک په نبز دي هتک د حرمت د سرقې دغه قطع الید جزاء ده لان مقادیر العقوبات انما یعلمها من یعلم الجنایات فالحق التسلیم والانقیاد انتهی بزیادة یسیرة.

**درویش وایي:** چې کافران ټوله په سرکې انګریزان او امریکایان په خپلو بیانو کې وایي چې قطع الید په جرم کې د لس درهمه ظلم دی، او دوی دا ظلم نه بولي چې د مسلمانانو د وطنو د قبضه کولو لکه عراق او افغانستان آتش باره بمباری کوي نر او ښځې حتی د زانګو ماشومان ددوی له بمبار څخه هره ورځ په زرهاوو وژل کېږي دا ظلم نه بولي او قطع الید ظلم بولي، ع... بدین عقل ودانش باید ګریخت، غلبېل کوزې ته ویل څومره د پر سوري لرې؟ کوزې ورته وویل زما دا خو دوه دي ستا د خو په سلهاوو دي، بیت.....

چو بینم دین احمد درغریبی		دلم سوزان زچشم خون جاری

**پوه سه:** چې لکه غلا چې د اموالو سته داغه رنګه غلا په عباداتو کې د خدای هم سته څکه چې په صحیح حدیث کې راغلي دي علیه الصلوة والسلام فرمایلي دي "اسوء الناس سرقة الذي یسرق من صلاته، قالوا یا رسول الله کیف یسرق عن صلوته قال لایتم رکوعها ولاسجودها.

**درویش وایي:** چې تعدیل الارکان پر صحیح مذهب د حنیفیانو واجب دی کما صرح به الطحاوي، ویدل علیه ما رواه البخاري وغیره چې علیه الصلوة والسلام په مسجد نبوي کې تشریف فرما وچې یو سړی چې د جماعت لمونځ څني تېر سوی و پر لمانځه ودرېدی، لمونځ چې یې وکړی تېرېدی او علیه الصلوة والسلام ته یې سلام علیکم ووایه، نو علیه الصلوة والسلام وروسته تر ځواب د سلام ورته وویل "صل فانک لم تصل" ورسه دوهم لمونځ وکړی ولې چې تا لمونځ نه دی کړی یعني کامل لمونځ، هغه سړی ورغلی بیا یې لکه دمخه لمونځ داسي لمونځ وکړی، خو بیا علیه الصلوة والسلام ورته وویل "صل فانک لم تصل" تر دري څلور واره پوري، نو په اخیر هغه سړي ورته وویل چې یا رسول الله ﷺ ته یې راوښیې زه

څرنګه لمونځ وکړم، علیه الصلوة والسلام په بیان کي د صحرائي د لمانځه دا جزء ورزیات کړی، نور خو د صحرائي لمونځ سم و مګر دغه شی کم و، نو علیه الصلوة والسلام د هغه په بیان کي ورته وویل "اذا رکعت فاطمئن راکعاً واذا رفعت فاطمئن قائماً و اذا سجدت فاطمئن ساجدا" یعني هر رکن بنه په اطمنان سره کوه، ژر ژر يو رته کښته مه کوه "واذا رفعت فاطمئن قاعداً" او تعدیل الارکان یې ور وښوول چي د صحرائي په لمانځه کي کم وه.

**يٰٓاَيُّهَا الرَّسُوْلُ لَا يَحْزُنْكَ الَّذِيْنَ يُسَارِعُوْنَ فِي الْكُفْرِ**

اې رسوله تا دي په غم کي وانه چوي هغه کسان چي په ډېر تلوار سره په کفر کي واقع او داخلېږي.

**پوښته:** چي خطاب يې و علیه الصلوة والسلام ته په عنوان د رسالت وکړی لپاره د تشريف دده، والمقصود چي ته غم مه کوه زه دي ناصر یم.

**مِنَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اٰمَنَّا بِاَفْوَاهِهِمْ وَلَمْ تُؤْمِنْ قُلُوْبُهُمْ**

هغه کسان چي دوی وایي چي موږ ایمان راوړی دی په خولو وایي، او ایمان یې نه دی راوړی زړو ددوی، چي دا د منافقینو ډله وه.

**پوښتنه:** قول خو وي په ژبه او په خوله، نو د "بافواههم" څه فائده ده.

**ځواب:** اشاره ودې ته ده چي ژبې او خولې ددوی ترجمان د زړه نه دي ولا عبرة لقول لایکون معبراً وترجماناً للقلب.

**وَمِنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا**

او د هغو کسانو چي په دین کي د یهودانو دي.

**پوښتنه:** چي دا موصول عطف دی پر موصول سابق او په دې دوو ډلو یعني المنافقین والهیود سره مسارعین في الکفر ختم سوه.

**سَمّٰعُوْنَ لِلْكَذِبِ سَمّٰعُوْنَ لِقَوْمٍ اٰخَرِيْنَ**

**پوښتنه:** چي "سماعون" خبر د مبتدا، محذوفي دی والتقدیر "هم" ای المنافقون والیهود بنه اورېدونکي دي د دروغو او سماع د مبالغې صیغه ده.

**سوال:** سمع" خو متعدي بنفسه ده، نو لام ته د للكذب څه ضرورت و؟

**ځواب:** لام لپاره د تقويه د عمل دى ومثله كثير في العربية، او يا سماع متضمن معنا لره د قبول ده، والقبول يتعدى باللام.

**پوه سه:** مراد له كذب څخه هغه احبار دي چي احبارو يعني ملايانو د يهودانو به پر خداى ﷻ ويل په تحريف كتابهم التوراة كما في نعوت رسول اللهﷺ وكتمان آية الرجم وغير ذالک.

**پوه سه:** چي اكثره منافقين چونكه يهودان وه نو ځكه يې سماعون للكذب و دواړو ته شامل كړى فتدبر.

**پوه سه:** چي دوهم "سماعون" هم خبر د مبتدا، مقدر دى د اول "سماعون" د تقرير لپاره دى والمعنى مبالغون في سماع قوم آخرين يعني بسمع القبول.

**لَمْ يَأْتُوكَ**

اى لم يحضروا مجلسک. يعني ځانونه له تا څخه گوښه ساتي د تكبر او د غايت بغض او عناد له سببه.

**پوه سه:** چي "لم ياتوک" بل صفت دى د "قوم" بعض مفسرين وايي چي مراد له "لم ياتوک" يهودان د خيبر دي، او له "سماعون" مراد بني قريضه دي د يهودانو.

**يُحَرِّفُونَ الْكَلِمَ مِنْ بَعْدِ مَوَاضِعِهِ**

صفت اخرى دى "القوم". معنا داده چي دوى تغيير او ميل وركوي و كلمو الهيه وو ته له خپلو ځايو څخه، وروسته تر دې چي خداى پاک دغه كلم په خپلو ځايو كي ايښي وه يعني په تورات كي، يا د سره هغه كلم مهمل پرېږدي او يا يې پر غير مراد الهي حمل كوي.

**يَقُولُونَ إِنْ أُوتِيتُمْ هَٰذَا فَخُذُوهُ**

دوى وايي و خپلو اتباعو ته چي ددوى خبره اورئ په وخت چي دوى و اتباعو ته ځپل باطل او له ځانه جوړ كړي خبرونه بيانوي، كه چېري تاسي ته دركړه سو يعني له جانبه د رسول دغه "هذا" اشاره ده و هغه قول محرف ته ددوى، نو قبول يې كړئ

او عمل په وکړئ فانه الحق.

**درویش وایي:** چي دوی خپشان خو په دې پوهېدل چي علیه الصلوة والسلام خو دا محرف او از خود ساخته خبرې ددوی وځلگو ته نه کوي. نو له دې جهته دوی و خپلو اتباعو ته وویل چي نو یې قبولې کړئ.

## وَإِن لَّمْ تُؤْتَوْهُ فَاحْذَرُوا

او که دغه خبري چي موږ تاسي ته وکړې ﷺ رسول وتاسي ته ونه کړي، نو له هغو خبرو څخه وبېرېږئ یعني مه یې قبلوئ؛ او یا له علیه الصلوة والسلام څخه بېرېږئ ددوی په قول چي نبي نه دی لعنهم کیف یمولون. للباطل المحرف فخذوه وللحق المنزل فاحذروا.

**درویش وایي:** چي شان نزول د فوق التلاوة آیتو مفسرینو قریباً په اتفاق سره دالسي ذکر کړی دی چي عربي عبارت سره سره به یې په پښتو هم واورئ ان شاء الله ﷺ ان شریفاً من خیبر زنی بشریفة وکانا محصنین وحدهما الرجم في التورات (چي یو شریف سړی یعني په دوی کي ښه نسب والا او مالدار و، زنا یې وکړه د یوې شریفي ښځي سره او دوئ دواړه محصن وه یعني نر مایښه درلوده او ښځي مېړه درلودی او حد ددوی رجم و په تورات کي) فکرهوا رجمهما لشرفهما (نو دوی یعني علماؤ ددوی رجم د ددوی نه وخوښ په سبب د شرافت ددوی) فارسلهما مع رهبط منهم الی بني قریضة وبني نضیر (نو دوی راواستول زاني او زانیه سره د یو جماعت ددوی و بني نضیر او بني قریضه وو ته چي د مدینې منورې یهودان وه) حتی نزلوا علی قریضة ونضیر فقالوا لهم انکم خبیر بهذا الرجل ومعنه في بلده (حتی چي هغه جماعت راغلی او پر قریضه او نضیر یې وارول، او هغه جماعت و نضیر او قریضه ته وویل چي تاسي خو په حالاتو ددغه سړي یعني رسول الله ﷺ ښه خبر یاست او دده سره په ښار کي یاست یعني مدینه) وقد حدث فینا حدث فلان وفلانة قد فجرا وقد احصنا فنحب ان تسئالوا لنا محمداً عن قضائه (په موږ کي یعني په خیبر کي یوه نوې خبره پېښه سوې ده فلاني نر او فلانۍ ښځي فجور یعني زنا کړې ده او دواړه هم محصن دي، نو زموږ دا خوښه ده چي تاسي پوښتنه

وکړئ زمونږ لپاره د محمد ﷺ څخه ددې قضيې د حکم) فقالت لهم قريضه والنضير اذا والله يامركم بما تكرهون (نو قريضه او نضير ورته وويل دى به امر كوي په هغه چي تاسي يې مكروه بولئ يعني رجم) ثم انطلق قوم منهم كعب بن الاشرف وكعب بن الاسد وكنانة بن ابي الحقيق وغيرهم الى رسول اللهﷺ، فقالوا يا محمد اخبرنا عن الزاني والزانية اذا احصنا ماحدهما في كتابك (بيا ولاړې يو قوم د خيبريانو چي په هغو كي كعب بن الاشرف او كعب بن الاسد او بل كنانه بن الحقيق و. او نور هم و رسول اللهﷺ ته، او دوی وويل اې محمده خبر راكړه يعني د حكم د زاني او زانيه چي دواړه محصن وي څه دى حد د هغو ستا په كتاب كي) فقال هل ترضون بقضائي؟ قالوا نعم (نو عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي تاسي زما په قضاء او حكم سره راضي ياست دوی وويل هو!) فنزل جبرئيل بالرجم فاخبرهم بذالك فابوا ان ياء خذوا بذالك (نو جبرائيل العَلِيْلاً راغلى چي حكم يې رجم دی، عليه الصلوة والسلام ودوی ته وويل چي حكم يې رجم دی، نو دوی منع وكړه چي مونږ به عمل په رجم سره) فقال له جبرئيل اجعل بينك وبينهم ابن صوريا ووصفه له (جبرائيل و عليه الصلوة والسلام ته وويل چي ته محكم وگرځوه په منځ كي خپل او ددوی ابن صوريا. او جبرائيل العَلِيْلاً د ابن صوريا صورت او هيئت و عليه الصلوة والسلام ته بيان كړی) فقال عليه الصلوة والسلام هل تعرفون ابن صوريا؟ قالوا نعم قال فاي رجل فيكم؟ قالوا هو اعلم يهودي بقى على وجه الارض بما انزل الله على موسى العَلِيْلاً في التوراة (نو عليه الصلوة والسلام ودوی ته وويل آيا تاسي پيژنئ ابن صوريا؟ دوی ورته وويل هو! عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي څرنگه سړی دی ابن صوريا په تاسي يهودو كي؟ دوی ورته وويل چي ابن صوريا هغه ښه خبر سړی يهودي دی چي پاته دی پر مخ د مځكي په هغه كتاب چي خدای پر موسى العَلِيْلاً نازل كړی دی يعني تورات) قال فارسلوا اليه ففعلوا فآتاهم وهو ابيض اعور يسكن فدك فقال له عليه الصلوة والسلام انت ابن صوريا قال نعم قال وانت اعلم يهودي قال كذالك يزعمون، قال عليه الصلوة والسلام اتجعلونه بيني وبينكم قالوا نعم (نو عليه الصلوة والسلام ودوی ته وويل چي ابن صوريا ته سړی

ورواستوئ چي راسي، نو دوی هم داغسي وکړه، نو ابن صوریا راغلی چي په رنګ سپین مخ یې و او یه یوه سترګه ړوند و او ځوان و، نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل چي ته ابن صوریا یې؟ هغه ورته وویل هو! علیه الصلوة والسلام ورته وویل چي خبرداره یهودي یې، ابن صوریا ورته وویل چي یهودان داغسي ظن پر ما لري، نو علیه الصلوة والسلام د خیبر ویهودانو ته وویل چي تاسي ابن صوریا محکم ګرځوئ زما او ستاسي تر منځ؟ هغو ورته وویل هو!) قال له رسول الله ﷺ انشدک بالله الذي لا اله الاهو انزل التوراة على موسى واخرجم من مصر وفلق لكم البحر وانجاكم واغرق آل فرعون والذي ظل عليكم الغمام، وانزل عليكم المن والسلوى وانزل عليكم كتابه فيه حلاله وحرامه هل تجد في كتابكم الرجم يعني على المحصن والمحصنة، قال ابن صوريا نعم والذي ذكرتني به لو لا خشيت ان تحرقني التوراة ان كذبت او غيرت ما اعترفت لک (نو علیه الصلوة والسلام و ابن صوریا ته وویل چي زه تا ته قسم درکوم په هغه چي لا اله الا هو چي نازل کړی یې دی تورات پر موسی العلیه او نازل کړی یې دی کتاب خپل یعني تورات چي په هغه کي خدای ﷻ حلال او حرام تو له بیان کړي دي، او تاسي یې را ایستلي یاست له مصر څخه او دریاب وتاسي ته کوځې کوځې و، او تاسي ته یې نجات درکړی و، او آل فرعون یې غرق کړي وه، او په هغه خدای قسم درکوم چي پر تاسي یې سایوان ګرځولې وه وریځ، او پر تاسي یې نازل کړل من او سلوی، آیا تاسي رجم د محصن او محصنې په تورات کي نه دی لیدلی؟ ابن صوریا ورته وویل هو! لیدلی مو دی او زما قسم په هغه خدای دی چي تا ماته ذکر کړی که نه وای بېره ددې چي تورات په ما وسوځي که زه دروا غ ووایم، او یا تورات ته تغییر ورکړم ما به تاته دغه اقرار یعني د رجم في التوراة نه وای کړی) لكن كيف في كتابک يا محمد قال اذا شهد اربعة رهبط عدول انه قد ادخله فيها كما يدخل الميل في المكحلة وجب عليه الرجم (نو ابن صوریا وروسته تر اقرار په رجم سره د تورات په حکم و علیه الصلوة والسلام ته، لکن حکم څرنګه دی ستا په کتاب کي یا محمد؟ نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل چي شاهدي ادا، کړي څلور عادلان چي دې نر خپل ذکر داخل

کړی و په دې کي یعني په فرج کي د ښځي، او داسي يې داخل کړی و لکه سلایي
چي سرې په رنجونوني چیخي، نو رجم واجب دی یعني که محصن او محصنه وه)
فقال ابن صوريا والذي انزل التوراة على موسى هكذا انزل الله على موسى عليه السلام
في التوراة (نو ابن صوريا ورته وويل چي قسم دی په هغه خدای چي تورات يې پر
موسی عليه السلام نازل کړی دی دغه شان يعني لکه تا چي وويل خدای نازل کړی يعني
حکم د زنا د محصن او محصني په تورات کي پر موسی عليه السلام) فقال له النبي ﷺ
فما ذا كان اول ترخستم به في امر الله تعالى (نو عليه الصلوة والسلام و ابن صوريا
ته وويل څه شی اول سبب د آسانی ستاسي په امر کي د خدای یعني في التوراة
يعني حکم د تورات ته مو تغيير ورکړی) قال كنا اذا ذنى الشريف تركناه واذا اخذنا
الضعيف اقمنا عليه الحد يعني الرجم كما هو حكم التوراة (ابن صوريا ورته وويل
چي موږ به داسي کوله چي شريف سړي به زنا وکړه هغه به مو پرېښو يعني حد د
رجم مو نه پر جاري کاوه، او چي ضعيف به مو پر زنا ونيوی موږ به حد د زنی يعني
رجم پر جاري کاوه) فكثر الزنى في اشرافنا حتى زنى ابن عم ملكنا فلم يرجم (نو له
دې سببه چي پر شريف به رجم نه جاري کېدی په اشرافو کي زموږ زنا ډېره سوه
حتى چي زموږ د يوه بادشاه د اکا زوی زنا وکړه نه سو په رجم) ثم زنى رجل آخر في
اسوة من الناس فاراد ذالك الملك رجمه فقام دونه قومه وقالوا لا والله لاترجمه حتى
ترجم فلاناً ابن عمك (او بیا زنا وکړه يو بل سړي په عمومي خلګو کي يعني چي
شريف نه و، نو بادشاه اراده د رجم وکړه، نو د بادشاه و مخ ته خلګ له قوم څخه د
هغه ضعيف ودرېدل، او قوم د ضعيف وويل چي قسم په خدای که يې رجم کړې تر
هغو چي فلانی ستا د اکا زوی دي په رجم کړی نه وي، يعني هغه ضعيف زاني بيا
خپل قوم له رجم څخه خلاص کړی) فقلنا تعالوا نجتمع فلنضع شيئاً دون الرجم
يكون على الشريف والوضع فوضعنا الجلد والتحميم وهو ان يجلد يعني الزاني
والزانية اذا كانا محصنين لاغيرهما اربعين جلدة بحبل مطلى بالقار ثم تسود
وجوهما ثم يحملان على حمارين وجوههما من قبل دبر الحمار يطاف بهما فجعلوا
هذا مكان الرجم (ابن صوريا وويل چي موږ ملايانو د يهودو سره وويل چي تاسي

راسئ موږ سره کښېنو او په اتفاق سره يو شی وضع کړو په ځای کي د رجم چي هغه حکم پر شريف او پر ضعيف باندي برابر وي چي هغه ځلو ښست درې وهل او مخ ور تورول دي د زاني او د زانيې چي محصنين وي نه غير محصنين. نو ځلو ښست درې وهل دي او بيا د دواړو مخان ور تورول دي. او بيا زاني پر يوه خره او زانيه پر بل خره سپرول چي مخان يې د خره د کوني وخواته وي.

**وَمَنْ يُرِدِ اللّٰهُ فِتْنَتَهٗ فَلَنْ تَمْلِكَ لَهٗ مِنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا**

و چاته چي د خدای ﷻ اراده وسي د ضلالت او رسوايي. نو ته هرگز مالک نه يې د هغه لپاره يعني ستا په طاقت نه ده پوره په دفع کي د عذاب له خدايه هيڅ شی.

**پوه سه:** چي کلمه د "من" شرطيه ده وروسته يې ځواب دی.

**أُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ لَمْ يُرِدِ اللّٰهُ اَنْ يُّطَهِّرَ قُلُوْبَهُمْ**

او دغه منافقان او يهودان هغه کسان دي چي اراده نه لري ددې چي ددوی زړونه دي پاک کړي له نجاست څخه د کفر او ضلال، ولي چي دوی منهمک دي په کفر کي او دوی ټينگ دي پر خپل کفر او ضلال او دوی روی گرداني کوي چي اسباب د هدايت دي تر لاسه کړي.

**لَهُمْ فِي الدُّنْيَا خِزْيٌ ۚ وَّلَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيْمٌ**

دوی لره په دنيا کي رسوايي ده او دوی لره په آخرت کي عذاب دی لوی، د منافقانو خزی خو دا وه چي خدای ﷻ ددوی نفاق رسوا کړی و مسلمانانو ته او ددوی له نفاق څخه يې پرده پورته کړه او خزی د يهودانو ذلت او جزيه يې پر دوی اچول دي او ددوی د دروغو ښکاره کول دي چي پر تورات يې، ويل لکه په قصه کي د ابن سوريا چي تېره سوه او دوی لره عذاب د دوږخ دی ابد الآبدين لا يخفف عنهم العذاب ولاهم ينصرون.

**سَمّٰعُوْنَ لِلْكَذِبِ**

او دوی اورېدونکي دي د دروغو.

**پوه سه:** چي دا تکرار دی د لوی فعل قبيح ددوی تاکيداً وتقريراً في قلوب المؤمنين.

أَكَّٰلُونَ لِلسُّحۡتِۚ

دوی د پر خوړونکي دي د حرام لکه رشوتونه وغيرها.

فَإِن جَآءُوكَ فَٱحۡكُم بَيۡنَهُمۡ أَوۡ أَعۡرِضۡ عَنۡهُمۡۖ

نو که دوی راسي و تاته لپاره د حکم په يوه موضوع چي ددوی پکښي اختلاف وي، نو ته حکم وکړه په منځ کي ددوی لکه دوی چي په موضوع کي د خيبريانو د زنی تاته راغله او تا حکم د رجم پر وکړی او زاني او زانيه دواړو ته رجم ورکړه سو کمامر عنقريب، او يا ته اعراض څني وکړه يعني خصومت ته ددوی غوږ مه نيسه.

**پوه سه:** چي کلمه د "فا" فصيحيه ده يعني جزاء د شرط محذوف ده ای اذا کان حالهم کما شرحنالک فان جاؤک آه.

وَإِن تُعۡرِضۡ عَنۡهُمۡ فَلَن يَضُرُّوكَ شَيۡـٔٗاۖ

او که ته اعراض څني وکړې نو تاته ضرر نه سي رسولای په هيڅ شي سره يعني چي دوی به ستا سره عداوت کوي په سبب د اعراض ولي چي خدای ﷻ تا ددوی له ضرره ساتي.

وَإِنۡ حَكَمۡتَ فَٱحۡكُم بَيۡنَهُم بِٱلۡقِسۡطِۚ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلۡمُقۡسِطِينَ ﴿٤٢﴾

او که تا حکم کاوه نو حکم کوه په منځ کي ددوی په عدل سره کما حکمت بينهم بالرجم فيمامر، په تحقيق د خدای ﷻ خوښ دي عادل کسان نو دوی په سبب د محبت د خدای ﷻ له هر ضرره څخه په محفوظ وي يعني حاکم بالعدالة دي له چا څخه نه بيريږي ولي چي خدای ﷻ يې ساتندويه دی، په حديث شريف کي راغلي دي "المقسطون علی منابر من نور.

وَكَيۡفَ يُحَكِّمُونَكَ وَعِندَهُمُ ٱلتَّوۡرَىٰةُ فِيهَا حُكۡمُ ٱللَّهِ

او څرنګه دوی يهودان تا محکموي او سره ددې چي ددوی سره تورات موجود دی چي په هغه کي حکم د خدای ﷻ سته لکه په موجوده مسئله کي حکم د تورات چي رجم و موجود و.

**پوه سه:** چي دا استفهام لپاره د تعجب دی یعني چي خلګ په تعجب کي واچوي، ولي چي یهودانو نه علیه الصلوة والسلام مني نه یې قرآن مني او حال هم دادی چي حکم مذکور یعني رجم منصوص دی په تورات کي چي دوی یې دعوه د ایمان کوي، نو په آیت کي اشاره ودې ته ده چي ددوی په تحکیم سره ستا معرفت د حق نه دی او اقامة الشرع بلکې غرض ددوی په تحکیم کي ستا اساني پر زاني او زانيه ده وان لم يكن حكم الله ددوی پر زعم، ولي چي دوی خو نه تا مني او نه دي کتاب مني.

**پوه سه:** چي "فيها حكم الله" حال دی له تورات څخه.

**ثُمَّ يَتَوَلَّوْنَ مِنْ بَعْدِ ذَٰلِكَ ۚ وَمَا أُولَٰئِكَ بِالْمُؤْمِنِينَ ﴿٤٣﴾**

وروسته بیا دوی روی ګرداني کوي ستا له حکم څخه وروسته تر تحکیم ستا که څه ستا حکم برابر د دوی د کتاب دی، ولي که ابن صوريا نه وايي نورو یهودانو د علیه الصلوة والسلام حکم نه مني، دا آیت عطف دی پر "يحكمونك" داخل دی لاندي تر تعجب او لفظ د "ثم" لپاره د تراخي رتبې دی ولي تراخي زماني خو د "من ذالك" څخه مراد ده، او نه دي دغه موصوفين په دغو صفاتو بالمؤمنين د ایمان راوړونکو څخه پر کتاب خپل چي تورات دی.

**إِنَّا أَنْزَلْنَا التَّوْرَاةَ فِيهَا هُدًى وَنُورٌ ۚ**

موږ نازل کړی دی تورات چي په هغه کي هدايت دی د شرائعو د دين حق او بيان دی د احکامو د دين چي وخلګو ته عموماً او بني اسرائیلو ته خصوصاً بنووونه کوي و دين حق ته او تورات یو نور الهي دی چي پرده پورته کوي د هغو احکامو الهیه وو څخه چي تر تاريکيو د جهل لاندي وه لکه شرک او روښان کوي احکام.

**يَحْكُمُ بِهَا النَّبِيُّونَ الَّذِينَ أَسْلَمُوا**

چي حکم کوي په تورات سره هغه انبياء د اسرائیلو یعني په احکامو سره د تورات او خلګو ته دعوت ورکوي او باعثه کوي یې پر هغو احکامو باندي هغه انبياء چي دوی اسلام راوړی و.

**پوښتنه**: نبوت خو تر نفس اسلام لوړ دی په درجه کي نو څرنګه مدح په اسلام سره د نبي کول کېږي بان یقال ان النبي رجل مسلم وماالوصف بالاسلام بعد الوصف بالنبوة دا خو داسي مثال لري چي د لوړي مرتبې څخه وروسته په کښته مرتبې د چا مدح کوي؟

**ځواب**: دا کېداسي چي ګاهي یو وصف ذکر کړه سي صرف ددې لپاره چي دا وصف ښه وصف دی یعني اسلام ښه وصف دی، نو په داسي راوړو تعظیم د شان د وصف دی او تنبیه ده پر دې چي دا وصف عظیم القدر دی حیث وصف به عظیم القدر وهو النبي لکه توصیف د انبیاء علیهم السلام په صلاح سره یا ملکي په ایمان سره لکه دا چي ویل سوي دي اوصاف الاشراف الاوصاف کما قال الشاعر المحقق.

ما ان مدحت محمداً بمقالتي ولکن مدحت مقالتي بمحمد

لِلَّذِينَ هَادُوا

**پوښتنه**: چي دا موصول متعلق دی په "یحکم" پوري ای یحکمون فیما بینهم واللام للاختصاص بهم اعم من ان یکون لهم او علیهم ګویا داسي یې وویل چي انبیاء د بني اسرائیلو لاجل الذین هادوا ای دخلوا في دین الیهودیة حکم کوي یعني په دین د موسی علیه السلام او په کتاب د تورات. نو حاصل د کلام دادی چي له نبوت څخه مراد هغه انبیاء دي چي وروسته په بني اسرائیلو کي مبعوث سوي دي د مخه تر عیسی علیه السلام چي بعضو علماؤ ویلي دي چي پر دین د موسی علیه السلام او پر کتاب د تورات په بني اسرائیلو کي څلور زره انبیاء راغلي دي.

**پوښتنه**: چي معنی د "هادوا" رجعوا من الکفر وتابوا منه ده. بعض علماء وايي چي دا نوم یهودانو ته هغه وخت ورکړه سو چي دوی د عبادة العجل څخه توبه وکښل یعني په زمانه کي د موسی علیه السلام کمامر قصته في سورة البقرة. او بعض علماء وايي یهود چي یې بولي په نامه د مشر اولاد د یعقوب علیه السلام چي یهودا یې نوم و مسمی سوي دي والله اعلم.

## وَالرَّبَّانِيُّونَ وَالْأَحْبَارُ

**پوه سه:** چي دا عطف دی پر "نبیون" باندي، "الربانیون" جمع د رباني ده الف او نون له زوائدو څخه د استعمال دي، ولي چي نسبت و رب ته خو "ربی" راځي نو رباني داسي لفظ دی لکه روحاني في النسبة الى الروح، او احبار جمع د حبر ده په معنی د عالم کبیر، نو مراد له "ربانیون" څخه زاهدان او صوفیان د بني اسرائیلو دي، او مراد له احبارو څخه علما. ددوی دي چي تولهٔ له اولاد څخه د هارون عليه السلام دي چي طریقه د انبیاؤ یې ټینګه کړې وه او له عصري خود ساخته یهودیت څخه منکر وه، مثال یې په دین کي د اسلام علماء، زاهدان او صوفیان د اهل سنت والجماعة دي چي له خود ساخته اسلام څخه لکه اسلام د معتزله وو، کرامیه وو، شعیه وسائر فرق اهل الاهواء څخه منکر دي.

## بِمَا اسْتُحْفِظُوا مِنْ كِتَابِ اللَّهِ

**پوه سه:** چي با سببیه ده او کلمه د "ما" موصوله ده او عائد یې محذوف دی او ضمیر مرفوع په قول د روح البیان او روح المعاني راجع دی و ربانیون او احبار ته او په قول د مظهري و انبیاء او احبار او ربانیون ټولو ته راجع دی. اوکلمة د با متعلقة ده په "یحکم، نو د روح البیان په نېز ترجمه داده چي په سبب د هغه شي چي ربانیون او احبارو هغه شی ساتلی و په وصیت د موسی عليه السلام چي هغه شي کتاب الله و یعني تورات له تحریف او تغیر څخه. او د مظهري پر رایه یې ترجمه داسي ده چي انبیا او ربانیون او احبارو هغه شی ساتلی چي کتاب الله و یعني عمل یې کاوه او له هېري څخه یې ساتلی و.

**درویش وایي:** چي پر دې تقدیر هم له انبیاؤ څخه د بني اسرائیلو انبیاء مراد دي او له کتاب څخه مراد تورات دی.

## وَكَانُوا عَلَيْهِ شُهَدَاءَ فَلَا تَخْشَوُا النَّاسَ وَاخْشَوْنِ

او دوی وه پر استحفاظ باندي یا پر کتاب الله باندي رقیبان او محافظان وه چي خلګو ته به یې تعلیم کاوه او خلګ به یې په عمل د مافي کتاب الله امر کول. او د

تحریف لاره یې بنده کړې وه. نو مه بېرېږئ اې امراوو او اې احبارو او ای ربانینو له خلګو څخه بلکې اقتدا. وکړې په اجراء او بیان کې د احکامو د کتاب الله په من کان قبلکم من الانبیاء چې انبیاء علیهم السلام یې بیان د احکام الکتاب له خلګو څخه نه بېرېدل او ازار د خلګو پر ځان وړئ مګر اظهار الحق یې نه پرېښو تاسي هم باید هغه سې وکړئ. او زما څخه وبېرېږئ چې په ترک د عمل بما في الکتاب به زه تاسي ته عذاب درکړم یعني په اجراء کې د احکامو د کتاب الله مه د چا مراعات کوئ چې دا شریف یا سرمایه دار دی یا جابر دی یا زما قریب دی لکه اهل خیبر چې د شریف زاني او شریفي زانیې مراعات وکړی او په تورات کې موجود حکم چې رجم و پر وه یې نه کړی حتی چې قضاوت یې و آنحضرت ﷺ ته ورساوه او علیه الصلوة والسلام یې له مراعات د چا حکم د رجم پر وکړی او رجم یې کړه کمامر.

**یوه سه**: چې دا حکم و مسلمانانو ته هم شامل دی یعني امیرانو ته او قضاتو ته د مسلمانانو لکن هیهات ذالک في الزمان الحاضر بل في الازمنة قبلها. ومن بلاغات الزمخشري رحمه الله

قضاة زماننا صاروا لصوصاً ... عموماً في القضایا لاخصوصاً
نخافوا منهموا لوصافحونا ... للصوا من خواتمنا فصوصاً

**درویش وایي**: چې په اوسني زمانه کې ملایان، قاضیان او امراء څو مراعات په نظر کې لري مراعت د قومیت، مراعات د سرمایه دار سړي وغیرها.

**حکایت**: یو زاهد سړی د فقیر په لباس کې یو مسجد ته ورغلی چې د مسجد ملا په مسجد کې ناست و، زاهد السلام علیکم ورته ووایه، ملا صاحب د خولې په کنج یو ضعیفه وعلیکم ورته ووایه. زاهد کښېنستی وروسته بل پېدا ال سرمایه داره سړی مسجد ته داخل سو او ملا صاحب ته یې سلام ووایه ملا صاحب په ډکه خوله او لوړ آواز وعلیکم ورته ووایه. زاهد وروېغ کړه چې ملا صاحب رد د سلام څو قسمه دی؟ ملا صاحب ورته وویل یو قسم دی، زاهد ورته وویل چې زما په عقیده ستا په نېز پر دوه قسمه دی. ملا صاحب خجالت سو.

وَلَا تَشْتَرُوْا بِاٰيٰتِيْ ثَمَنًا قَلِيْلًا

او تاسي مه بدلوئ آيات زما چي په تورات کي وه چي يا يې څنې وباسئ لکه آيت د رجم کمامر تفصيله او يا عمل نه په کوئ، او تاسي د خپلي ګټي لپاره د هغه عوض واخلئ لکه ملا يانو د عصر نبوي ﷺ چي له عوامو څخه به يې روپۍ تر لاسه کولې د زکوة وغيره، نو په نعوت د عليه الصلوٰة والسلام به يې چي په تورات کي وه عمل نه کاوه، او مراد له "ثمن قليل" څخه رشوت دی او خپل جاه و جلال ساتل دي او نوري د دنيا ګټي.

**سوال:** ملا يانو د يهودانو له خلګو او عوامو څخه ډېر بدي او رشوتونه تر لاسه کول، نو ولي ثمن قليل ووېل سو؟

**ځواب:** نعمتونه د دنيا که څه هم جليل وي لکن نظر ونعمتو ته د اخرت قليل او رزيل دي خصوصاً هغه نعمتونه د اخرت چي ملا يانو ددوی په رشوت کي له لاسه ورکړه کما لا يخفى على من له عقل سليم. يو محقق شاعر وايي يعني المولوي المعنوي جلال الدين الرومي رحمه الله.

| | |
|---|---|
| اين جهان جيفه است ومردار ورخيص | برچنين مردار چون باشم حريص |
| پس حيات ماست موقوف فطام | اندک اندک جهد کن تم الکلام |

**فائده:** اخستل او لاس ته راوړل د يو مال لکه غوا و غويي او خر او غالۍ يا بل شی په ورکولو سره د ثمن، وروسته بيا مجازاً مستعمل سو لپاره د اخستو د شي په بدل کي د ماکان له عيناً کان والمعنى لکن چي په اخستو کي به سړی راغب وي او معرض به وي د هغه شي چي دی په عوض کي ورکوي، د سورة بقره په اوائلو کي ددې اشتراء مزيد تفصيل ملاحظه کړه.

وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْكٰفِرُوْنَ ﴿۴۴﴾

او څوک چي حکم ونه کړي په هغه آيت چي خدای ﷻ نازل کړي وي، نو هغه کسان کفاران دي.

**پوښتنه:** ډېر حکام او قضات د مسلمانانو د رشوت وغيره په خاطر حکم په ما

انزل الله في القرآن العزيز نه کوي، نو دوی به هم کافران وي او که څرنګه؟

**ځواب**: مراد په دې نه حکم کول دي په ما انزل الله سره د انکار او سپکاوي په ډول هغه هر څوک چې وي کافر دی اجماعاً قطعياً.

## وَكَتَبْنَا عَلَيْهِمْ فِيهَا أَنَّ النَّفْسَ بِالنَّفْسِ وَالْعَيْنَ بِالْعَيْنِ

او موږ ليکلی دی يعني حکم مو کړی دی پر دوی يهودانو باندې په تورات کې چې يو سړی پر بل قصاصېږي چې ناحقه يې قتل کړي. او سترګه د يو سړي چې ناحقه د بل سترګه ورړنده کړي نو د هغه سترګه چې جاني دی هم ورړنده کېږي چې په عربي تقفاء ورته وايي.

## وَالْأَنْفَ بِالْأَنْفِ وَالْأُذُنَ بِالْأُذُنِ وَالسِّنَّ بِالسِّنِّ

او د پزې د پرې کېدلو په عوض کې د جاني پزه پرې کول کېږي چې دې ته په عربي جذم وايي، او د غوږ په پرې کېدلو کې ناحقه د جاني غوږ پرې کېږي چې دې ته په عربي صلم وايي. او که يو سړی د بل غاښ ورو کښي د هغه جاني غاښ به هم ورکښل کېږي چې دې ته په عربي قلع وايي.

## وَالْجُرُوحَ قِصَاصٌ

او ټپونه قصاص دی په حذف د مضاف يعني ذات قصاص.

**پوه سه**: چې مراد هغه ټپونه دي چې اندازه يې معلومېږي او مساوات يې ممکن وي لکه ماتول د هډوکو د يو چا يا جائفه ټپ وغيرها مما ذکر في کتب الفقه. د هغو ټپو تاوان به جاني ورکوي او يا به يو عادل سړی محکم ګرځوي.

**درويش وايي**: چې که تفصيل د جروح غواړئ نو کتابو ته د فقهي شريفي رجوع وکړئ چې په تفسير کې دا امکان کم دی.

## فَمَنْ تَصَدَّقَ بِهِ فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَهُ

که د مستحقينو څخه ددغو قصاصاو څوک عفوه وکړي وجاني ته.

**پوه سه**: چې تعبير په تصدق سره لپاره د مبالغې في الترغيب دی نو دغه تصدق کفاره د متصدق ده يعني خدای ﷻ يې ګنهونه رژوي.

**مسئله**: کافر که چېرې عفوه د قصاص لازم وجاني ته وکړي هغه کفاره دده نه سي کېدای مادام باقیاً علی الکفر. وفي الحدیث النبوي ﷺ من اصیب بشیٔ من جسده فترکه لله کان کفارة له. او په یو بل حدیث مبارک کي راغلي دي "ثلاث من جاء بهن یوم القیامة مع الایمان دخل الجنة من ای ابواب الجنة شاء" درې شیان دي که چا راتګ په وکړی په ورځ د قیامت دی به داخل سي و جنت ته له هرې دروازې د جنت چي دده خوښه وي "وتزوج من الحور العین حیث شاء. من عفی عن قاتله" او دی به په نکاح کړي یعني خدای پاک به یې په نکاح ورکړي له حور عین څخه هر ځای چي غواړي، که چا عفوه وکړه و خپل قاتل ته.

**سوال**: د عفوه و خپل قاتل ته صورت څرنګه دی، ولي چي سړی قتل کړه سي بیا نو عفوه و قاتل ته څرنګه کولای سي؟

**ځواب**: والله اعلم بالصواب. مراد دادی چي په ورځ د قیامت عفوه ورته وکړي او یا دا معنی ده چي یو سړی په آله قاتله سړی وواهه او سړی وتښتېدی او مجروح لا ژوندی و ورثه وو ته یې وویل چي زما قاتل ما بخښلی دی ثم مات من ذالک "ومن قرء دبر کل صلوة قل هو الله احد عشر مرات ومن ادی دینا خفیاً" او که څوک ووایي همېشه وروسته تر هر لمانځه یوولس واره قل الله شریفه او اداء کړي یو پټ پور.

**درویش وایي**: چي اکثره مفسران خو پر دې خبره دي چي د "من تصدق" ضمیر راجع دی و مظلوم ته چي په عربي یې مجني علیه بولي، نو له کفارو څخه مراد عفوه د ګنهو د مجني علیه ده. او بعض مفسران وایي چي ضمیر د "له" وجاني ته راجع دی. والمعنی که چا عفوه وکړه و جاني ته نو عفوه د مجني علیه وجاني ته کفاره ده د جاني لپاره. یعني جنایت او ګناه یې ختمه سوله یعني په ورځ د قیامت خدای ﷻ جاني ته عذاب نه ورکوي لانه حق العبد وقد عفی العبدله.

وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿٤٥﴾

او که څوک حکم ونه کړي په هغه شرائع او احکامو سره چي خدای ﷻ نازل کړي دي، نو دغه کسان ظالمان دي په غټه پېمانه. ولي حدود او احکام د خدای پر خپل ځای نه کړه برابر کما هو معنی الظلم ای وضع الشیٔ في غیر محله.

**پوه سه:** چي خدای پاک ددغو کسانو چي د "من یحکم آه" څخه فهمېږي درې الفاظ راوړه "الکافرون، والظالمون، والفاسقون" نو کفر یې په سبب د تمرد او انکار دی له حکم څخه د خدای ﷻ کمامر قریباً او ظلم یې په سبب ددې دی چي دوی ظلم وکړی پر خلاف د حکم د خدای ﷻ او فسق یې په سبب د خروج د امر الهي څخه کما هو معنی الفسق ولي فسق په لغت کي خروج ته وایي کما في قولهم فسقت الرطبة عن قشرها ای خرجت.

## وَقَفَّيْنَا عَلَىٰٓ ءَاثَٰرِهِم بِعِيسَى ٱبْنِ مَرْيَمَ

**پوه سه:** چي دا جمله عطف ده پر "علی انزلنا التوراة" باندي یعني موږ وروسته راواستاوه پر اثار د انبیاء المذکورین السابقین عیسی چي د مریم د عمران د لور زوی وه، نسبت یې ومور ته وکړی. ولي چي عیسی ﷺ بې پلاره په قدرت عظیمه د خدای ﷻ عالم الوجود ته راغلی دی.

**پوه سه:** چي "قفینا" چي له بابه د تفعیل دی د تعدیه لپاره نه دی چي باب د تفعیل ګاهي په معنی د مجرد راځي کما في الشافیة نحو قدر بالتشدید وقدر بالتخفیف او اول مفعول یې محذوف دی ای اتبعنا النبیین الذین ذکرناهم بعیسی بن مریم، نو مفعول ثاني ته په با د جار متعدي سو.

## مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ ٱلتَّوْرَىٰةِ

دا حال دی من "عیسی" یعني په داسي حال کي چي عیسی تصدیق کونکی و د هغه کتاب چي تر ده دمخه و یعني بلاواسطة چي کتاب تورات و.

## وَءَاتَيْنَٰهُ ٱلْإِنجِيلَ فِيهِ هُدًى وَنُورٌ

موږ ورکړی ودته انجیل یعني نوی کتاب، چي په هغه کي هدایت او لار ښوونه ده و خلګو ته او نور و یعني څراغ و د خلګو لپاره چي د حق لاره یې ورته روښانه کول یعني لکه په تورات کي.

**پوه سه:** چي "فیه هدی ونور" محلاً منصوب دی حال دی له انجیل څخه ای کائنا فیه ذالک.

وَمُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ التَّوْرٰىةِ

او تصديق كونكى و انجيل د هغه كتاب چي تر ده دمخه و يعني التوراة.

**پوه سه**: چي اول "مصدقا" حال و له عيسى څخه او دوهم "مصدقا" حال دى له انجيل څخه. او تكرير د من التوراة لپاره د زيادت تقرير دى.

وَهُدًى وَّمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِيْنَ

دا عطف دى پر "مصدقا" لكه هغه چي حال و دا هم حال دى.

**پوه سه**: چي تخصيص د متقين كه څه هم انجيل د ټولو بني اسرائيلو لاربنود و له دې جهته چي متقينو په هدايت د انجيل لار پيدا كړه او نفع يې پر واخسته بخلاف المنكرين له فانهم بمعزل من النفع بالانجيل بل بسائر الكتب الالهيه.

وَلْيَحْكُمْ اَهْلُ الْاِنْجِيْلِ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فِيْهِ

او حكم دي كوي اهل د انجيل چي عيسى عليه السلام او علماء د امت دده دي په هغه شي سره چي خداى جل جلاله نازل كړي دي يعني په انجيل كي.

**پوه سه**: چي كلمه د "ما" موصوله ده والعائد اليه محذوف لكه چي فقير په ترجمه لفظي كي وعائد ته اشاره وكړه په دغه هغه شي.

**فائده**: چونكه لفظ "وليحكم" امر بالام او انشاء ده د ماقبل سره تعلق نه لري، نو ځكه مفسرين په اتفاق وايي وقلنا ليحكم نو به قلنا سره د مقولې عطف سي پر آتيناه الانجيل بالندې دا خبره دقيقه ده صحيح فكر پكښې وكړئ.

وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ

او څوك چي حكم نه كوي يعني په ما انزل في الانجيل لكن پر وجه د انكار او د سپكاوي په انجيل سره نو هغه كسان فاسقان دي يعني له حكم څخه د خداى جل جلاله وتلي دي.

**درويش وايي**: چي ددې الفاظو تفصيلي بيان ما دمخه درته وكړى فتذكر هداك الله.

**فائده**: له دې آيت څخه دا معلومه سوه چي په انجيل شريف كي احكام وه او عيسى عليه السلام مستقل شريعت درلودى يعني تابع د تورات موسى عليه السلام نه و.

**فائده**: په دې آیت کې شدید تهدید دی و حکام او قضاتو ته د اسلام چې دوی به هم حکم کوي په ما انزل في القرآن الکریم او که حکم په هغه ونه کړي دوی به هم په ډله کې د فاسقانو حساب سي، البته دا قدر به بې فرق وي چې حکام او قضات چې د قرآن عزیز په حکم یې ونه کړه پر وجه د انکار او د استهانت نه دی، نو له دې سببه کافران نه بلل کېږي بلکې دوی خو یا رشوت راخلې او یا یې مرعات قومي وکړې او یا یې د پیدا ال مراعات وکړی، نو یې حکم په قرآن سره ونه کړی. لکن له مطلق فسق څخه خو نه خلاصېږي په صحیح حدیث کې راغلي دي "یؤتی بالقاضي العدل یوم القیامة فیلقی من شدة العذاب مایتمنی انه لم یفصل بین احد في تمرتین" فاذا کان هذا حال القاضي العدل فما حال القاضي الجابر. بیت

بوحنیفه قضا نه کرد وبمرد — تو بمیری اگر قضا نه کنی

**درویش وایي**: چې بیان او ترجمه د هغه حدیث صحیح داده چې یو قاضي عادل به راوستل سي په ورځ د قیامت نو دی به ملاقي سي له سخت عذاب سره، مراد له عذاب څخه دلته سختي د حساب ده یعني د هر وخت د قضاوت به بازخواست ځني کېږي لاعذاب النار لانه قضی بین الخصوم بالعدل والانصاف بدون الرشوة والاعتساف. نو دی دا سخت عذاب ویني دا به یې تمنی سي چې کاشکي ده قضاوت نه وای کړی په منځ کې د هیڅ چا حتی د دوو خورما وو په حکم سره.

**پوه سه**: چې امام سخاوي رحمه الله په مقاصد حسنه کې چې دده تصنیف دی داسې حدیث رانقل کړی دی چې قاضیان درې قسمه دي. دوه یې په دوږخ کې دي یو یې په جنت کې دی اول هغه قاضي دی چې حکم وکړي په ناحقه سره یعني د رشوت وغیرها له سببه او دی پوهېږي چې دا ناحقه دی فهو في النار، دوهم هغه قاضي دی چې جاهل وي یعني پر احکام شرعیه وو علم نه لري او د خپلې خېټې حکمونه کوي او حقوق د خلگو تلفوي فهو في النار، دریم قاضي قضی بالحق ای بعد العلم به فهو في الجنة.

**وَأَنزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَٰبَ بِالْحَقِّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ الْكِتَٰبِ**

او موږ نازل کړی وتاته یا محمد کتاب چې قرآن عزیز دی چې تصدیق کوونکی دی د هغه جنس کتاب چې ستا تر کتاب دمخه نازل سوي دي یعني د جمیع کتب

الهيه وو، او څوک چي تخصيص کوي په تورات او انجيل سره هغه بلا فائده دي وعلى هذا فاللام في الکتاب للجنس.

## وَمُهَيْمِنًا عَلَيْهِ

يعني رقيب دی قرآن او شاهد دی پر ټولو کتابو چي دمخه نازل سوي وه لکن چي هغه محفوظ د تغير او تبديل څخه وي، يعني قرآن کريم د ټولو لپاره شاهدي ورکوي په صدق او صحت سره.

**فائده:** په اصولو کي د شرائع يعني العقائد کالتوحيد والرسالة ويوم القيامة والجنة والنار وامثالها خو قرآن کريم د هغو هم شاهد دی او قرآن مبارک بيان د هغو فروعو چي په نورو اديانو کي وه او په دين محمدي کي منسوخ دي د هغو هم بيان او تفصيل کوي.

## فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ

الفاء لترتيب مابعدها على ما قبلها اى اذا كان حال القرآن كما ذكر. نو ته حکم کوه په منځ کي د اهل کتابو په هغه کتاب سره چي خدای نازل کړی يعني القرآن الکريم چي رجم و کمامر چي دوی تاته مرافعه وکړي لکه په موضوع کي د زنی د شريف او د شريفي د اهل خيبر چي تاته راغلـه کمامر تفصيله. ولي چي قرآن مبارک معلومه کړې ده چي دا حکم د تورات او د قرآن سره شريک حکم دی او منسوخ نه دی.

## وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَهُمْ عَمَّا جَاءَكَ مِنَ الْحَقِّ

نو ته متابعت مه کوه د خواهشاتو د اهل کتابو.

**پوه سه:** چي اهواء هغه د زړه خوښتنه ده چي له شرع شريفي څخه مخالف وي د هغه څه چي تاته راغلي وچي هغه حق حکم دی.

**پوه سه:** چي کلمه د "عن" په عما کي متعلق ده په "لاتتبع" پوري.

**سوال:** صله د "تتبع" خو کلمه د "عن" نه راځي؟

**ځواب:** تتبع متضمن دی معنی لره د اعراض فالمعنى لاتتبع اهوائهم معرضاً

عما جائک من الحق.

## لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنكُمْ شِرْعَةً وَمِنْهَاجًا

هر يوه ته ستاسې گرځولې دی موږ يعني لكل امة منكم ايها الناس قديماً وحديثاً شرعة ای شريعة.

**پوه سه:** چې شرعه په اصل لغت کې گودر ته وايي چې سړی اوبو ته پر رسېږي، نو شريعت ته د انبياء عليهم السلام يې شريعت وويل تشبيهاً چې په شريعت سره سړی و هغه شي ته رسېږي چې سبب د حيوة ابدي دی وهي الاحكام الالهيه الموصلة الى الجنة دار النعيم ابداً "ومنهاجاً معنا لار ښکاره په دين کې.

## وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَجَعَلَكُمْ أُمَّةً وَاحِدَةً

او که د خدای ﷻ مشيت او اراده وای تاسې به يې ټول يو امت گرځولي وای، معنی داچې يو جماعت به وای پر يوه دين او شريعت يعني په ټولو زمانو کې، نو ستاسې په منځ کې به اختلاف ديني نه وای.

## وَلَٰكِن لِّيَبْلُوَكُمْ فِي مَا آتَاكُمْ

يعني خدای ﷻ دا اراده نه وکړه بلکې تاسې نوع انساني يې افراد او قومونه پر شرائع مختلفه وو وگرځولاست. چې په علم کې د خدای ﷻ چې هر شريعت چې د هغې زمانې سره موافق و راوا يې ستاوه تاچې ستاسې امتحان وکړي په هغه شريعت کې چې تاسې ته يې درکړي، نو د امتحان معنی داده چې تاسې څه کوئ د نوي شريعت متابعت به کوئ او که د پلرو او نيکه گانو دين د هغه شريعت جديده چې په معجزاتو سره تائيد سوی هم وي انکار کوئ، مثلاً دين د يهودانو شريعت د موسی عليه السلام او د تورات و، چې خدای ﷻ نوی شريعت د اسلام پر محمد ﷺ باندې نازل کړی او په ډېرو معجزاتو يې تائيد کړی، نو په دې د يهودانو امتحان کېږي چې دوی به اسلام ته غاړه کښېږدي او لا اله الا الله محمد رسول الله به وايي او خپل د دين موسوي او د تورات منسوخيت به ومني او که له نسخ څخه به انکار وکړي او پر منسوخ دين د آباء په متابعت کلک پاته سي اکثرو يهودانو خو دغسې

وکړه چي پر خپل آبائي دين باندي ټينګ سوه او له اسلام څخه یې انکار مختاره کړی، البته په دوی کي بعض صاحبان د صحيح نظر او د عقل سلیم لکه عبدالله بن سلام او دده ملګري ﷺ اسلام ته په لبیک ويلو سره په اسلام کي داخل سوه.

**درویش وايي:** چي دغه وه معنا د امتحان الهي او د امتحان دمخه تر اسلام په عيسى او انجيل سره هم اخسته سوی و چي په هغه امتحان کي هم يهودان ناکامه سوي وه حتى رفع الله عيسى من بينهم الى السموات العلى كما مرت هذه القصة في هذا التفسير في موضعه فتذكرها.

## فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرٰتِ

نو تاسي وړاندي والی وکړئ د خیر و کارو ته یعني الاعمال الصالحة دا خطاب عام دی، چي نور خلګ هم په تاسي پسي اقتداء وکړي او د هغو د خیر په کارو کي به خدای ﷻ تاسي ته هم ثوابونه درکړي كما ورد في الحديث الصحيح من سن سنة حسنة فله اجرها واجر من عمل بها الى يوم القيامة من غير ان ينقص من اجورهم شئ.

## اِلَى اللّٰهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيْعًا

**پوه سه:** چي دا جمله استينافيه ده، علت ده و استباق الى الخيرات ته، او هم وعد په جنت او ثواب سره و هغه کسانو ته مبادرت او استباق د خیر و کارو ته وکړي او وعید دی د دوږخ و هغو کسانو ته چي تقصير وکړي، والمعنى خدای ﷻ ته ده خاص ستاسي رجوع د ټولو، نو مرجع مصدر میمي دی.

## فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ فِيْهِ تَخْتَلِفُوْنَ ۝

بیا به خدای ﷻ تاسي خبر کړي په هغه شي چي ستاسي پکښي اختلاف و چي يهودانو به ويل زموږ دين حق دی باقي اديان او د اسلام دين حق نه دی، یعني په ورځ د قيامت به محق او مبطل سره جلا کړي چي محق به جنت ته واستوي او مبطل به دوږخ ته رهي کړي.

شان نزول د وروسته آیت ابن اسحاق وايي له ابن عباس ﷺ څخه روایت دی چي کعب بن اسد او عبدالله بن صوريا او شاس بن قيس سره وويل چي درځئ چي

محمد ته ورسو شاید چې دی به موږ په فتنه کې واچوو له خپله دینه څخه یعني غلط حکم به په وکړو چې رسوا سي، نو علیه الصلوة والسلام ته ورغله او ورته وه یې ویل چې ته موږ پېژنې چې موږ احبار او اشراف د یهودانو یو، او سرداران ددوی یو، که موږ ستا متابعت وکړو ټول له یهودان به ستا متابعت وکړي او ستا په دین کې به داخل سي، او زموږ و د قوم تر منځ یو خصومت موجود دی موږ به تاته دواړه طرفه راسو ته دوی په موږ ملامت کړه نو موږ به پر تا ایمان راوړو، نو علیه الصلوة والسلام په خپل نور وجداني سره ددوئ ددې مطالبې څخه منع وکړه، نو خدای ﷻ دا آیت نازل کړی.

وَاَنِ احْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ

**پوه سه**: چې دا آیت عطف دی پر کتاب باندې والمعنی انزلنا علیک الکتاب وانزلنا الیک ان یحکم آه، او داسې هم روا ده چې دا دې جمله وي په تقدیر د وامرنا ان احکم آه او ته حکم کوه په منځ کې د راغلو یهودانو په هغه کتاب سره چې خدای ﷻ تاته نازل کړی نه داسې حکم چې دوی درته وایي کمامر.

وَلَا تَتَّبِعْ اَهْوَآءَهُمْ وَ احْذَرْهُمْ اَنْ يَّفْتِنُوْكَ

او ته متابعت مه کوه د خواهشات باطله وو ددوی، عطف دی پر احکم عطف النهي الانشائي علی الامر الانشائي، او ته له دوی څخه بېربېږه چې د حق حکم څخه دې په فتنه کې وانه چوي چې خلاف ما انزل الله حکم په تا ونه کړي لاضلالک.

عَنْۢ بَعْضِ مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ اِلَيْكَ ؕ

د بعض هغه حکم چې خدای ﷻ پر تا نزل کړی دی یعني په خلاف د هغه په تا حکم وکړي د فتنې له لارې وتاته.

فَاِنْ تَوَلَّوْا فَاعْلَمْ اَنَّمَا يُرِيْدُ اللّٰهُ اَنْ يُّصِيْبَهُمْ بِبَعْضِ ذُنُوْبِهِمْ ؕ

که دوی یعني یهودان وغیرهم اعراض او روی گرداني وکړي له حکم منزل الیک څخه او بل حکم غواړي نو پوه سه په دې چې اراده لري خدای ﷻ چې ودوی ته ورسوي عقوبت او عذاب د بعض گنهو د دوی یعني په دې دنیا کې بعض عقوبات

پر دوی مسلط کړي، نو حاصل د معنی دادی چې په دغه تولی سره چې یوه عظیمه ګناه ده.

**پوه سه:** چې لفظ د بعض يې تنبیه پر دې ده چې دوی ګنهونه دېر کوي چې يو له هغو څخه تولی ده یعني انکار کول.

وَإِنَّ كَثِيرًا مِّنَ النَّاسِ لَفَٰسِقُونَ ﴿٤٩﴾

او په تحقیق سره ډېره حصه د خلګو یعني د یهودانو هر آئینه فاسقان دي.

**درویش وايي:** چې د "کثیراً" لفظ يې له دې جهته ووایه چې بعض د یهودانو خو فاسقان نه دي لکه عبدالله بن سلام واضرابه.

**پوه سه:** چې مراد له "فاسقون" څخه دلته کاملون في الفسق المتمردون في الفسق دي وهم الکافرون منهم لانهم خرجوا عن امر الله بالکلیة.

أَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُونَ ۚ

آیا حکم د جاهلیت د وخت چې هغه متابعت الهوی دوی غواړي.

**پوه سه:** چې همزه لپاره د استفهام انکاري ده یعني حکم د جاهلیت چې د اسلام دین و منځ ته راغلی بیا پوښتنه نسته، قانون نحوي همزه خو لپاره د استفهام دی چې هغه صدارت د کلام غواړي او وروسته تر همزه که فا عاطفه راسي لکه مانحن فیه او یا واو عاطفه راسي کما في مواضع اخر من القرآن العزیز نو عطف خو يې پر ماقبل د همزه نه سي کېدای ولې چې صدارت د همزه له منځه ځي، نو په هر ځای کې د قرآن کریم چې دغسې عبارت راسي نو معطوف علیه د واو یا د فا محذوف دی په منځ کې د همزه او فا لکن مناسب د هر مقام سره لکه په دې ځای کې تقدیر داسې دی ایتولون فحکم آه.

**درویش وايي:** چې دا قانون په یاد ساتئ چې په ډېرو ځایو کې د قرآن عزیز به په ښه درسې.

وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ اللَّهِ حُكْمًا لِّقَوْمٍ يُوقِنُونَ ﴿٥٠﴾

او څوک دی ښه تر خدای از روی حکم و هغه قوم ته چې یقین لري پر خدای ای

لا احد احسن حكماً منه تعالى، نو استفهام انكاري دی.

**پوه سه:** چې تخصیص د قوم یوقنون یې وکړی له دې سببه چې دا قوم په دې پوهېږي او ایمان یې دی چې خدای عالم الغیب والشهادة دی او د بندګانو په خیر او شر عالم دی، نو دوی پر دې یقین لري چې احسن تر خدای ﷻ هیڅ څوک نسته

**فائده:** حكماً منصوب دی چې تمیز دی له احسن څخه او په اصل کې مبتدا، وه او اصل یې داسې و من حكمه احسن من حكم الله.

**فائده:** په "لقوم" کې لام لپاره د بیان دی ای هذا الاستفهام الانکاري لقوم یوقنون.

له ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی چې د عبدالله بن ابي رئیس المنافقین او د بني قریظه او د بني النضیر چې د یهودانو دوه قومه وه حلف وچې موږ به یو د بل نصرت کوو او د عبدالله بن الصامت او د قریضه او نضیر تر منځ هم حلف و، نو عبدالله بن ابي چې مسلمان سو یعني صادقانه وروسته یې وویل چې زه خو حلیف د نضیر او قریظه یم او زه بېرېږم چې د زماني حوادث پر ما راسي او قریظه و نضیر به مرسته نه راسره کوي، نو بیرته مرتد سو کافراً. او عبدالله بن صامت وویل چې زه بېزاري ښکاره کوم و خدای ﷻ ته له حلف څخه د قریظه او نضیر، او زه دوستي کوم د خدای ﷻ او دده له رسول ﷺ سره او د مؤمنانو سره نو دی پر ایمان ثابت پاته سو، نو په عبدالله بن الصامت رضي الله عنه او عبدالله بن أبی بن سلول کې دا آیتونه نازل سوه.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَّخِذُواْ ٱلۡيَهُودَ وَٱلنَّصَٰرَىٰٓ أَوۡلِيَآءَۘ بَعۡضُهُمۡ أَوۡلِيَآءُ بَعۡضٖۚ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمۡ فَإِنَّهُۥ مِنۡهُمۡۗ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهۡدِي ٱلۡقَوۡمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ۝٥١

اې هغه کسانو چې ایمان یې راوړی دی تاسې مه ګرځوئ یهود او نصاری خپل دوستان یعني د دوی پر قول او پر اظهار د محبت ستاسې سره اعتماد مه کوئ او داسې ژوند د دوی سره مه کوئ لکه دوست چې یې د دوست سره کوي، او دا جمله "بعضهم آه" علت دی د نهي یعني دغه دوې ډلې سره دوستانې دي په مقابل کې ستاسې او تاسې مسلمانانو ته په ضرر رسولو کې سره متحدي دي یعني که څه

هم یهود او نصاری په خپل منځ کي ډېر سخت اختلافات سره لري لکن ستاسي په مخالفت او اضرار کي سره متحد او متفق دي، پښتانه مثل کوي چي "سپي يو دبله سره يو دي و فقير ته" او که څوک ددوی سره دوستي غوره کړي لکه عبد الله بن ابی، نو ددوی له ډلي دی يعني کافر دی مثلهم، په تحقيق خدای ﷻ هدايت نه ورکوي و هغه قوم ته چي ظالمان وي يعني پر خپلو ځانو په دوستی او موالات سره د کافرانو او ظالمانو پر مؤمنانو په موالات سره د دښمنانو د مسلمانانو.

**پوه سه**: چي "یاایها الذین آه" عام خطاب دی ټولو مسلمانانو ته شامل دی مخلصان وي او که غير مخلصان که څه هم سبب د نزول يې خاص دی يعني عبد الله بن ابي او عبادة الصامت.

**فائده**: حکم د "انهم منهم" په هغه صورت کي دی چي تولی او دوستي له جهته د دين وي او که تولی له جهته د بيع او شراء وي او يا عمل يعني يو کار مزدوري ددوی کوي مع المخالفة في الاعتقاد والامور الدينية فليس فيه هذا الوعيد يعني فانه منهم لکن سره د هغه المولی ابو سعود رحمه الله وايي وفيه زجر شديد للمؤمنين عن اظهار صورة الموالاة لهم وان لم يكن موالاة في الحقيقة لهم انتهی، يعني د يهودانو او نصاری وغيرهم من الکفرة که څه هم حقيقت موالات نه دي چي سړی په کافر سي لکن صورت د موالات که امکان وي مؤمن لره نه ده په کار چي ددوی سره يې وکړي.

فَتَرَى الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ يُسَارِعُونَ فِيهِمْ

ته وينې اي محمد ﷺ هغه کسان چي په زړو کي يې مرض وي يعني کفر لکه عبد الله بن أبي واصحابه من المنافقين دوی مبادرت کوي په موالات او دوستی کي د يهودانو.

**فائده**: که له رؤيت څخه مراد رؤيت بصري وي، نو جمله "يسارعون" حال ده له فاعل څخه د "تری" چي الذين دی، او که رؤيت علمي مراد وي نو يسارعون په ځای کي د مفعول ثاني د "تری" دی.

## يَقُولُونَ نَخْشَىٰ أَن تُصِيبَنَا دَائِرَةٌ

او دوی یعني ابن أبی و اصحابه وایي په عذر کې د موالاتو د يهودانو چې موږ بېرېږو چې موږ ته ورسېږي يوه دائره يعني حادثه من حوادث الزمان چې دولت او غلبه به بيرته د يهودانو سي، او دين د محمد ﷺ سريع الزوال دی، نو دغه يهودان موږ ته شی نه راکوي او مرسته به نه راسره کوي او وايي به چې تاسي خو اتباع د محمد واست، قاله ابن عباس رضي الله عنه، او بعض مفسرين وايي چې ددوی مراد دادی چې زمانه سره وګرځي او پر موږ قحط او لوږه راسي نو موږ به د يهودانو و کومک ته محتاج سو او دوی به له کومک څخه منع وکړي، نو له دې سببه موږ ددوی موالات نه قطع کوو، او خوراکي مواد چې عموماً د يهودانو په قبضه کې دي موږ ته به يې نه راکوي الی غیر ذالک من موجبات موالات اليهود.

## فَعَسَى اللَّهُ أَن يَأْتِيَ بِالْفَتْحِ

نو خدای پاک د ابن أبی او اصحاب دده د غدر په موالات کې د يهودانو په دې آيت سره رد وکړی چې شايد خدای پاک به راتګ وکړي په فتح سره، قتاده او مقاتل وايي چې مراد له فتح څخه فيصله د خدای ده چې د عليه الصلوة والسلام ته به غلبه ورکړي پر يهودانو او پر ټولو مخالفينو باندې او دين د محمد ﷺ دې غالب وګرځوي، سدي او کلبي وايي چې مراد له فتح څخه فتح د مکې ده، او ضحاک وايي چې مراد له فتح څخه فتح د قريه وو د يهودانو ده چې خيبر، فدک، وادي القری وغيرها دي، نو بيا به تاسي اصحاب د ابن أبی څه کوئ او له کومک څخه د يهودانو به مو څه لاس ته درسي.

## أَوْ أَمْرٍ مِّنْ عِندِهِ

او يا به يو کار رونما سي له کارو څخه د خدای ﷻ، چې د منافقانو اسرار او اغراض به خدای ﷻ رسوا کړي، او يا قتل د بني قريضه و دی چې يو قوم د يهودنو و، او اجلا د بني نضيرو ده يعني فرار کول ددوی د خپلو اوطانو چې دابل قوم د يهودانو و او له بېخه ورکېدل د يهودانو له جزيرة العرب څخه.

**درويش وايي:** چي څه هم خداى پاک لفظ د عسى ووايه چي لپاره د اطماع دى لكن دا تول كارونه خداى پاک وكړه ولي چي اطماع د قادر مطلق ﷻ لكه د بىل چا وعد محتوم ده.

# فَيُصْبِحُوا عَلَىٰ مَا أَسَرُّوا فِي أَنفُسِهِمْ نَادِمِينَ

نو به وګرځي داغه منافقان پر هغه شي چي دوى يې په زړو كي پټ ساتي پښيمانه هغه پټ شى ددوى په زړو كي كفر او شک وو په دې كي چي دين د عليه الصلوة والسلام به بقا ولري او كه بدله منځه ولاړسي.

**يوه سه:** چي "يصبحوا" منصوب دى په "ان" مقدر سره وروسته تر فا او علامه د نصب يې اسقاط د نون ده او وجه د تقدير د ان دا ده چي نحات وايي چي وروسته تر فاى سببيه چي واقع سي وروسته تر "عسى" ان مقدر وي.

# وَيَقُولُ الَّذِينَ آمَنُوا أَهَٰؤُلَاءِ الَّذِينَ أَقْسَمُوا بِاللَّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ ۙ إِنَّهُمْ لَمَعَكُمْ ۚ

او وايي به هغه كسان چي ايمان يې راوړى و يعني په وخت كي د ظهور د ندامت د منافقانو مؤمنانو دا خبره كوي نو دا كلام مستانف دى يعني عطف پر شي نه دى نو داسي واو استينافي وايي وهو كثير في الهداية كما لا يخفى على من طالع الهداية.

**يوه سه:** چي مراد له "الذين آمنوا" يهودان دي.

**يوه سه:** چي "هؤلاء" اشاره و منافقانو ته ده والمعنى آيا دغه منافقان وه چي دوى به قسمونه اخستل.

**فائده:** جهد الايمان و اغلظ قسم ته وايي او د اعراب له لاري جهد ايمانهم صدر دى قائم مقام د جملي دى چي هغه جمله حال ده له ضمير څخه د اقسموا والتقدير اقسموا بالله يجتهدون جهد ايمانهم "انهم لمعكم" يعني منافقانو به يهودانو ته ويل چي موږ ستاسي ملګري يو په جنګ كي د مسلمانانو كما حكى الله تعالى عنهم "ان اخرجتم لنخرجن معكم ان قوتلتم لننصرنكم.

حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فَأَصْبَحُوا خَاسِرِينَ ﴿٥٣﴾

لغوه او بې فائدې سوه عملونه د منافقانو چې لپاره د جلب د زړو د يهودانو به يې كول من اظهار الموالات لهم كمامر تفصيلاً نو وګرځېدل دوی يعني منافقان تاوانيان يعني في الدنيا والآخرة ددې دنيا فائدې چې دوی په موالاتو كې د يهودانو طمع درلوده هغه يې هم په لاس ورنه غله، ولې چې يهودان پخپله د مسلمانانو له خوا ياوو ژل سوه او يا له وطنو څخه وشړل سوه او خسران د اخرت يې ابدي دوږخ دی په سبب د پټ كفر.

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا مَنْ يَرْتَدَّ مِنْكُمْ عَنْ دِينِهِ

اې هغه كسانو چې ايمان يې راوړی دی كه څوک مرتد سي له تاسي له خپله دينه څخه او خپل دين پرېږدي نو كه د يهودانو په دين سي او كه د نصارى وو په دين وهكذا المجوس والمشركين وغيرهم.

**پوه سه**: چې دا اخبار قرآني قبل الوقوع له ارتداد د بعضو مسلمانانو له دين څخه نازل سوی دی وقد كان كذالک، تفصيل يې دادی چې يوولس فرقې مرتدې سولې درې په زمانه كې د حيوة د عليه الصلوة والسلام چې په هغو كې يو قوم بنو مدلج وه چې رئيس يې ذو الخمار اسود عنسي وچې كاهن و او دعوه د نبوت يې په يمين كې كړې وه، او تيوله د يمن ښارونه، قريې او مځكې يې قبضه كړې او معاذ بن جبل ﷺ چې د عليه الصلوة والسلام له خوا پر يمن والي و او نور سادات د يمن چې مؤمنان وه هم يې وشړل يعني له يمن څخه يې ويستل، نو عليه الصلوة والسلام و معاذ بن جبل او دده همراه مسلمانانو ﷺ ته نوشته كړه چې خپل اسلامي مبارک دين له لاسه ورنه كړئ او معاذ ﷺ ته يې نوشته كړه چې مسلمانان وهڅوه چې د اسود مذكور سره جنګ او جهاد وكړي، نو فيروز ديلمي اسود پر خپل ځای پروت قتل كړی. ابن عمر ﷺ وايي چې په هغه شپه كې اسماني خبري د اسود د قتل په لاس د فيروز ديلمي و عليه الصلوة والسلام ته ورسېدې، نو سهار عليه الصلوة والسلام خبر د اسود د قتل و مسلمانانو ته وركړی او داسې يې وويل قتل الاسود

البارحة قتله رجل مبارك قيل ومن هو قال فيروز، او عليه الصلوة والسلام په سبا ورځ کي وفات سو "انا لله وانا اليه راجعون"

**پوه سه:** چي عليه الصلوة والسلام وروسته تر اخبار د اسود د قتل و مسلمانانو ته په وحي اسماني پر دوولسم تاريخ د ربيع الاول وفات سو او د مجاهدينو لښکري د اسود له جنګه په اخير کي د شهر ربيع الاول چي ابوبکر صديق ﷺ خليفه و راورسېدې او دا اول خبر و د فتح چي ابوبکر ﷺ راورسېدی.

دوهمه ډله د مرتدانو چي په زمانه کي د حيوٰة نبوي پيدا سوې وه بنو خيفه وه دا يو قوم و چي رئيس يې مسيلمة كذاب و چي د نبوت دعوه يې کړې وه او بنو حنيفه ټولو ايمان پر راوړی و، او دده د نبوت دعوه په سنه لس کي د هجرت وه، او ده به ويل چي زه خدای پاک د محمد ﷺ سره په نبوت کي شريک کړی يم، او عليه الصلوة والسلام ته يې دا خط نوشته کړی و من مسيلمه رسول الله الى محمد رسول الله، اما بعد فان الارض نصفهالي ونصفها لک او دا خط مسيلمه دوو کسانو ته د خپلو اتباعو ورکړی و، خط چي عليه الصلوة والسلام ته راورسېدی نو عليه الصلوة والسلام و هغو دوو کسانو ته وويل لو لا ان الرسل لاتقتل لضربت عنقكما، نو په ځواب کي عليه الصلوة والسلام ورته وويل يعني په خط کي من محمد رسول الله الى مسيلمة الكذاب اما بعد فان الارض لله يورث من يشاء من عباده والعاقبة للمتقين، نو عليه الصلوة والسلام وفات سو بيا ابوبکر صديق ﷺ د خالد بن وليد ﷺ په مشری مسيلمه كذاب ته ډېر لوی فوج ورواستوی نو وحشي نامی چي مریی و د مطعم بن عدي چي سيد الشهداء حمزه بن عبد المطلب يې شهيد کړی و هغه مسيلمة الكذاب مردار کړی، نو دغه وحشي به ويل چي قتلت خير الناس في الجاهلية يعني بذالک حمزه ﷺ وقتلت شر الناس بعد الاسلام يعني ما د خپل جاهليت په وخت کي غوره د انسانانو يعني حمزه ﷺ قتل کړی او د خپل اسلام په وخت کي مي ترټلی د خلګو قتل کړی يعني مسلمة الكذاب.

او دريمه ډله چي مرتده سوې وه بنو اسد وه چي مشري يې د طليحه بن خويلد

پر غاړه وه او ده هم د نبوت دعوه کړې وه په ژوند کې د علیه الصلوة والسلام او دغه طلیحه اول سړی و چي په جنگ کي يې شکست وخوړی وروسته تر وفات د علیه الصلوة والسلام من اهل الردة. نو ابوبکر صدیق ﷺ د خالد بن ولید ﷺ په مشری ډېر درند فوج ورواستاوه چي وروسته تر ډېر سخت جنگ د طلیحه فوج شکست وخوړ او طلیحه پخله وتښتېدی او شام ته ولاړی ثم بعد مدة اسلم وحسن اسلامه والله اعلم.

تاریخ اسلامي وايي چي وروسته تر وفات د علیه الصلوة والسلام اکثره عرب مرتد سوه په انکار د فرضیت د زکوة الا اهل مکة والمدینة واهل بحرین من قبیلة عبد القیس. او دوی و ابوبکر ﷺ ته وویل چي لمونځونه خو کوو واما الزکوة فلا تغصب اموالنا. نو ابوبکر ﷺ دوی ته وویل والله لا افرق بین ماجمع الله تعالی في قوله "اقیموا الصلوة واتوا الزکوة" یعني في کثیر من آیات القرآن العزیز. او ابوبکر ﷺ وویل چي قسم په خدای دی که دوی زما څخه یو سېرلی منع کړي چي علیه الصلوة والسلام ته یې ورکاوه یعني پر وجه د انکار یې منع کړي زه به د هغو سره جنگ کوم. نو خدای پاک اقوام را وپاڅول چي د ابوبکر ﷺ سره ودرېدل او د مانعینو سره د زکوة یې په جنگ شروع وکړه حتی چي منکرین د زکوة یې تول د زکوة په فرضیت اقرار کړه. حضرت انس ﷺ وايي چي صحابه کرامو ﷺ جنگ کول د مانعینو سره د زکوة نه وه خوښ دوی به ویل چي منکران د زکوة خو اهل قبله دي نو څرنگه به جنگ کول ورسره روا وي. نو ابوبکر ﷺ خپل توره غاړي ته واچول او یوازي جنگ ته رهي سو. نو صحابه کرامو ﷺ بله چاره ونه لیدل بېله متابعته د خلیفة المسلمین ابوبکر ﷺ نو نور صحابه کرام ﷺ پسي ووتل و جنگ ته. عبدالله بن مسعود ﷺ وايي چي موږ دا جنگ په ابتداء کي بد باله او په وروسته کي مو دا جنگ خوښ سو چي منکرین د زکوة اخیر الامر په فرضیت د زکوة قانع سوه او امر الهي "اقیموا الصلوة وآتوا الزکوة" دواړي مفروضه خبري تولو منکرانو ومنلې او تفرقه په امت محمدي کي نه سوه پیدا.

**درویش وايي:** چي د ابوبکر ﷺ ددې فعل پر موږ تولو مسلمانانو حمد لازم

دی الحمد لله الذي نجا امة محمد ﷺ من التفرقة، وقيل ماولد بعد النبيين مولود افضل من ابی بکر ﷺ لقد قام مقام النبي ﷺ في قتال اهل الردة.

**درویش وایي**: چي شیخ عطار رحمه الله په مدح کي د ابوبکر ﷺ داسي دوه خواږه شعرونه ویلي دي

| | |
|---|---|
| هرچه بود از بارگاه کبریا | ریخت در صدر شریف مصطفی |
| آن همه در سینه صدیق ریخت | لاجرم تابود ازو تحقیق ریخت |

حسن بصري رحمه الله وایي که کارنامه د ابوبکر ﷺ نه وای، نو جاري به وای الحاد د زکوة په باره کي الی یوم القیامة.

**پوښتنه**: که یو څوک د زکوة له فرضیت څخه منکر نه وي لکن زکوة نه ورکوي نو د مسلمانانو امیر به د هغه سره څه چار چلند کوي آیا جبراً به یې څني اخلي او که څرنګه؟

**ځواب**: په اشباه والنظائر کي وایي چي معتمد مذهب دادی چي په زوره دي نه څني اخلي. او په محیط کي وایي که یو چا منع وکړه له ورکړي څخه د زکوة نو عامل د حکومت اسلامي دي زکوة جبراً نه څني اخلي، او که یې فرضاً په جبر والاکراه سره څني واخستی د هغه سړي د زکوة غاړي نه په خلاصیږي، ولي چي زکوة خو عبادت دی او په عبادت کي اختیار شرط دی لکن یجبره بالحبس لیوّیه بنفسه انتهی.

فَسَوْفَ يَأْتِي اللَّهُ بِقَوْمٍ يُحِبُّهُمْ وَيُحِبُّونَهُ

نو ژر دی چي خدای ﷻ به راتګ وکړي په داسي قوم سره چي د خدای به دوی خوښ وي او ددوی به د خدای سره محبت وي یعني په ځای کي د هغو مرتدینو بعد اهلاکهم.

**یوه سه**: چي محبت د خدای ﷻ د یو چاسره اراده ده د خیر د دنیا او آخرت وهغه ته. او محبت د بندګانو د خدای سره اراده د طاعت د خدای ﷻ دی او پرهیز له معاصیو څخه.

**درویش وایي**: چي په مراد کي ددې قوم څخه یعني چي دا قوم څوک دي

اختلاف دی علی بن ابي طالب، حسن بصري، ضحاک او قتاده رحمهم الله وايي چې دا قوم ابوبکر او اصحاب دده دي رضي الله عنهم چې دوی د اهل ردت او د منکرینو سره د فرضیت د زکوة غزاء وکړه وقد مر تمام تفصیله عن قریب.

**درویش وايي**: چي دا قول انسب د اقوالو دی د ماقبل آیاتو سره چې د مرتدينو په باره کې وه او بعض مفسرين وايي چې مراد له دې قوم څخه انصار دي وهذا القول مرجوع. او بعض وايي اهل فارس دي، په صحيح حديث کې راغلي دي "لوكان الايمان معلقاً بالثريا لناله اهل فارس"

**درویش وايي**: چي بعض اهل تحقيق وايي چې دا اشاره و ابو حنيفه واصحابه ته ده، ولي چې د فارس په قبيله کې د دين نبوي حاميان او د شريعت غراء بيانونکي او د امت تشريح کونکي په مثل د ابو حنيفه واصحابه رحمهم الله بل څوک نسته او نه به پيدا سي، او بعض وايي چې دا قوم اهل الحجاز دي اي الحرمين الشريفين ومن حولهما او بعض وايي اهل يمن يعني د هغې زمانې لقوله عليه الصلوة والسلام الايمان يمان ای اهل د ايمان کامل اهل د يمن دي، والحكمة يمانية او علم الشريعة د يمنيانو دی انتهی.

## اَذِلَّةٍ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ اَعِزَّةٍ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ يُجَاهِدُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَلَا يَخَافُوْنَ لَوْمَةَ لَآئِمٍ

چې دوی به اذله وي او متواضعين به وي يعني زړه سوی به لري او نرمي د زړه به لري او تواضع به لري د مؤمنانو په مقابل کې.

**يوه سه**: چي "اذلة" جمع د ذليل ده هغه عرفي معنا نه ده ځني مراد بلکې په معنا د ارقاء او رحماء دی.

**سوال**: صله د "ذلة" خو "على" نه راځي بلکې لام راځي او دلته "على" راغلی دی؟

**ځواب**: د ذلت په معنی کې يې عطف معتبر کړی دی، او د عطف لفظ په على سره متعدي کېږي چې داسي قول ته په عربي کې تضمين وايي يعني يو لفظ د بل لفظ په ضمن کې راوړل او اعزة جمع د عزيز ده چې معنی يې شدت او سختي

او غلبه ده يعني دا قوم به په مقابل کې د کافرانو شدت پسنده عليه جويان وي يعني زړه سوی پر کافر نه لري په جنګ او په هر قيمت چې وي ځانونه پر غالب ګرځوي، او دوی جهاد کونکي في سبيل الله يعني لپاره د طلب د رضي د الله تعالی او لپاره د اعلاء د کلمة الله لا للغنيمة ولا لاظهار شجاعته ولا للعصبية وغير ذالک او نه په بېرېږي له ملامت ويلو څخه د يو ملامت ويونکي.

**پوه سه**: چې دا جمله عطف ده پر "يجاهدون" باندې، په دې بيانولو کې د صفاتو د قوم اخرين تعريض دی پر منافقانو، ولې دوی چې به په يو لښکر کې د مسلمانانو ووتل دوی به بېرېدل له حلفاؤ څخه چې يهودان وه چې هغه به پر موږ ملامتيا وواېي چې په لښکر کې د مسلمانانو شامل سوي ياست، نو دوی به شدت او تصلب درلودی پر کافرانو، او نه يې زړه سوی درلودی پر مسلمانانو بلکې معامله د منافقانو بالعکس وه او نه يې وتل و جنګ ته في سبيل الله وه بلکې رواجول د خپل خبث باطل چې کفر و پر مسلمانانو باندې الی غير ذالک من اغراضهم الخبيثة.

ذٰلِكَ فَضْلُ اللّٰهِ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَآءُ ۚ وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ ﴿۵۴﴾

**پوه سه**: چې "ذالک" په تاويل د مذکور اشاره ده د هغه قوم آخر و صفاتو ته چې دمخه تېر سوه من المحبة والذلة للمؤمنين والعزة د کفارو په مقابل کې د الجهاد في سبيل الله وعدم خوف اللوم من احد فضل د خدای دی يعني لطف او احسان د خدای دی چې دده په زړه کې پيدا کړی دی يعني دا اوصاف جميله دده په طاقت بشري نه دي پيدا سوي په دوی کې، او خدای پاک ورکوي خپل فضل وچاته چې اراده يې ورته وسي، او د خدای ﷻ عطايا او احسانونه فراخه دي، او خدای ﷻ د هر چا په حال ښه خبر دی ففيه وعد ووعيد.

**درويش وايي**: چې رسېدل و قرب الهي ته بعض سالکانو ته په اوويا کاله کې حاصل سي او بعضو ته په شل کاله کې، او بعضو ته په يوه کال کې حتی چې بعضو ته په يوه ګړي او لحظه کې حاصل سي، آيا ستاسي نه ده په ياد قصه د ساحرانو د فرعون چې په دا ښځې لږ وخت کې چې دوی معجزه د موسی عليه السلام

ولیډل قالوا امنا برب العالمین حتی چي د کاملانو عارفانو څخه وګرځېدل حتی چي فرعون دوی ته پېش رو وکړی چي "لاقطعن ایدیکم وارجلکم من خلاف ولاصلبنکم في جزوع النخل، دوی په مقابل کي څرنګه عارفانه ځواب ورکړی "لاضیر انا الی ربنا لمنقلبون" آیا تاسي نه ده اورېدلي قصه د رابعه بصریه چي دا یو کلان ساله مینځه وه د یو چا چي په بازار کي د بصرې یې ګرځول او د هیڅ چا یې و رانیولو ته زړه نه کېدی یو تاجر ترحماً علیها رانیول او في الحاله یې ازاده کړه، او دې د یو غره په یو غار کي په ډېر صدق او اخلاص سره د خدای پاک عبادت پیل کړی یو کال نه و پوره سوی چي، عالمان، قاریان، تاجران وغیرهم به ددې زیارت او ملاقات ته ورتله.

## إِنَّمَا وَلِيُّكُمُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَالَّذِينَ آمَنُوا

نه دی ولي ستاسي ایها المؤمنون مګر خدای ﷻ او رسول دده یعني حضرت محمد ﷺ او ټوله مؤمنان، نو تاسي یهود او نصاری اولیاء خپل مه بولئ بلکي هغه پخپل منځ کي یو له بله اولیاء دي ستاسي مؤمنانو په مقابل کي که څه هم یهود او نصاری خپل په منځ کي شدید اختلافات سره لري حتی چي یو بل ته کافران سره وایي.

## الَّذِينَ يُقِيمُونَ الصَّلَاةَ وَيُؤْتُونَ الزَّكَاةَ وَهُمْ رَاكِعُونَ ﴿۵۵﴾

دا موصول بدل دی د مخه موصول څخه یعني هغه مؤمنان چي دوی اقامت د لمانځه کوي او ورکوي زکواتونه د خپلو مالو او دوی راکعون یعني دوی سره ددې چي اقامة الصلوة کوي او تیاء الزکوة کوي بیاهم خاشعون او متذللین و خدای ته دي یعني خپل په عبادت فخر او کبر نه کوي. نو جمله د وهم راکعون حال ده له فاعل څخه د دوارو یعني یقیمون ویؤتون.

**فائده:** پوه سه! چي یو اقامت د لمانځه دی او یو هیئت د لمانځه دی، نو ټوله قرآن د مؤمنانو له لمانځه څخه تعبیر په اقامت الصلوة خدای کوي نو د اقامت الصلوة معنا داده چي لمونځ سره د فرائضو او واجباتو لکه قیامه، رکوع، سجده اخیر او د تحریمې تکبیر او جماعت او تعدیل الارکان وغیر ذالک وکړي او هیئت الصلوة هغه

دی چې د لمانځه سره په هیئت مشابه وي نو ځکه خدای پاک د منافقانو د لمونځو په باره کې داسې فرمایلي دي "فویل للمصلین آه" او له دې سببه علماء وایي چې مقیمین د لمانځه لږ دي او مصلین ډېر دي.

**وَمَنْ يَتَوَلَّ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا فَاِنَّ حِزْبَ اللّٰهِ هُمُ الْغٰلِبُوْنَ ﴿۵۶﴾**

او څوک چې دوستي مختاره کړي د خدای او د هغه د رسول او د مؤمنانو، نو په تحقیق ډله د خدای ﷻ غالبه ده پر مخالفانو کافرانو او منافقانو.

**بوه سه:** چې ابن عباس ﷺ وایي چې له "الذین آمنوا" څخه مهاجرین او انصار مراد دي ﷺ.

**فائده:** څوک به پوښتنه کوي چې من خو مبتداء وه او موصول د یتولی یې صله ده او د یتولی ضمیر راجع دی ومن ته په اعتبار د لفظ او لفظ الله مفعول دی د یتولی و ورسوله والذین آمنوا پر عطف دی، نو دا کافي نه وه فان هم الغالبون یعني د حزب الله لفظ یې ولې زیات کړی؟

**ځواب:** ددې په زیاتولو کې اشاره و یو دلیل ته ده د شکل اول، والتقدیر من تولی لهؤلاء المذکورین فهو حزب الله و حزب الله هم الغالبون فهؤلاء هم الغالبون.

**بوه سه:** چې اضافت د حزب الله د استغراق لپاره ده ای کل حزب الله هم الغالبون ولې چې د شکل د انتاج شرط ایجاب د صغری دی او کلیه کبری دی کما تقرر في المنطق، په حدیث شریف کې راغلي دي چې رفاعه بن زید او سوید بن الحارث ایمان راوړی وروسته یې نفاق شروع کړی. او بعضي مخلصو مؤمنانو ددوی سره موالات او محبت کاوه فانزل الله هذه الآية.

**يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوا الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا دِيْنَكُمْ هُزُوًا وَّ لَعِبًا**

اې هغه کسانو چې ایمان یې راوړی دی تاسې مه گرځوئ هغه کسان چې ستاسې دین یې د مسخرو او د ساتېرې محور گرځولی دی.

**بوه سه:** چې "الذین اتخذوا" مفعول اول دی لقوله "لاتتخذوا" او مفعول ثاني یې اولیاء دی، هز، سخریه، استهزاء او لعب متحد المعنی دي بالفارسية بازي

مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ وَالْكُفَّارَ أَوْلِيَآءَ

له هغو کسانو څخه چې دوی ته کتاب ورکړی سوی دی تر تاسي د مخه چې يهود او نصاری دي، نو دا بيان دی د "مستهزئين" او من قبلکم متعلق دی په "اوتوا" پوري، منصوب دی معطوف دی پر موصول اول ای الذين اتخذوا او مراد له کفارو څخه مشرکين دي "اولياء" دوستان بلکې له دوی تولو څخه دوري او قطع المواصلة لار غوره کړئ.

وَاتَّقُوا اللّٰهَ إِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِينَ ﴿۵۷﴾

او له خدايه وبېرېږئ په موالاتو کي د دغو کسانو که تاسي په حق سره مؤمنان ياست، ولې چې مؤمن بالحق خو د خدای دوست وي او داغه مذکوره کسان خو د خدای دښمنان دي نو مؤمن بالحق يې هم خپل دښمنان وګڼل لان عدو المحبوب عدو للمحب.

وَإِذَا نَادَيْتُمْ إِلَى الصَّلٰوةِ اتَّخَذُوهَا هُزُوًا وَّلَعِبًا

او چې تاسي ناره وکړئ ولمانځه ته يعني الآذان دوی وګرځوي دا نداء په تاويل د منادات يا د صلوة مسخره "هزوا ولعبا" وقد مر تفسيرهما آنفاً.

**پوه سه:** چې څه وخت چې به مؤذن د مسجد نبوي او يا د نورو مسجدو چې په مدينه منوره کي د مسلمانانو وه اذان شروع کړه سو، نو يهودانو به سره خندل او يو وبل ته به يې سترګي سره وهلې لپاره د استهزاء په اذان او لمانځه سره لپاره د سپکاوي او لپاره د نفرت د خپلو هم مذهبانو د لمانځه او له اهل څخه د لمانځه او له دعوت څخه د مؤذنانو.

ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْقِلُونَ ﴿۵۸﴾

دا پسخند د دوی په دې سبب دی چې دوی داسي قوم دی چې عقل نه لري.

**فائده:** پوه سه! چې علماء په اتفاق وايي چې د اذان ثبوت يوازي په خوب د عبدالله بن زيد نه دی لکه قصه چې مشهوره ده بلکې اذان په قرآن مبارک کي په دغه مذکوره آيت سره يعني "واذا ناديتم آه" هم ثابت دی لان معنی الآية المذكورة

داده چي تاسي بلنه ورکړئ خلګو ته د لمانځه لپاره د اذان په ذريعه. ولي چي د اندا، معنا ده د يو چا بلنه په لوړ آواز سره.

حکمة الآذان: (١) اظهار دی د شرائع د اسلام (٢) کلمة التوحيد التي هي افضل واطيب الاذکار (٣) خبرول دي د مسلمانانو په دخول د وخت د لمانځه (٥) د لمانځه د ځای ښوونه ده (٥) بلنه ده د خلګو د جماعت و لمانځه ته الی غير ذالک کطرد الشيطان اذا سمع الاذان کما في البخاري وغيره.

**مسئله**: که يو مؤذن داسي وچي حسن الصوت يې ولکن پر آذان کولو يې مزدوري غوښتل او بل مؤذن قبيح الصوت وچي آذان يې مفت کاوه، نو کوم مؤذن اولی دی؟

**ځواب**: په دې مسئله کې خو قديماً وحديثاً اختلاف سته لکن صحيح مذهب دادی چي حسن الصوت ته دې اجرت ورکوي لان لحسن الصوت تاثيراً وترغيباً للناس کما ان لقبيح الصوت تنفيراً.

فضائل الاذان. في الحديث الصحيح اول الناس دخولاً الجنة الانبياء ثم الشهداء وروسته بلال حبشي مؤذن المسجد النبوي سره د مؤمنانو د کعبي مبارکي وروسته بيا مؤذنان دي د بيت المقدس وروسته بيا نور مؤذنان د مسجد نبوي ﷺ وروسته بيا نور مؤذنان دي بقدر اعمالهم. وفي حديث صحيح آخر چي دري قسمه خلګ يعني مسلمانان پاک نه کوي له حساب څخه د ورځي د قيامت او دوی لوبه بيره د قيامت د ورځي په بيره کي نه اچوي. يو حافظ د قرآن مجيد چي عمل يې هم په کړی وي يقدم على الله يعني يوم القيامة سيداً شريفاً. او بل هغه مؤذن چي اووه کاله آذان وکړي بيله اجرته او بيله د طمع د اجرت. او دريم هغه مريی چي حقوق د خدای پر ځای کوي او د بادار حق هم پر ځای کوي.

**مسئله**: که يو سړی چي هم قابل د آذان وي په سبب د حسن صوت او هم قابل د امامت وي په سبب د حسن قرائت او د علم د احکامو د لمانځه نو دې سړي ته کومه وظيفه اجراء کول اولی او افضل دي؟

**ځواب**: امامت افضل دی ولي چي رسول الله ﷺ پر امامت همېشه توب کړی دی

**پوښتنه**: علیه الصلوة والسلام ولې یو وخت هم اذان نه دی کړی سبب یې څه دی؟

**ځواب**: اولاً که علیه الصلوة والسلام اذان کړی وای نو که چا دده له جماعته تخلف کړی وای هغه به کافر وای، وثانیاً که دی مؤذن وای نو د ځان لپاره شاهدي په رسالت سره نازیبا معلومېده، وثالثاً آذان خو اولاً بل چا په خوب لیدلی و، نو علیه الصلوة والسلام د ابد لپاره اذان وغیر ته وسپاری، او بل سبب دادی چي علیه الصلوة والسلام که اذان وکړي نو یا به د اذان کلمات بدلوي یعني داسي به وایي اشهد اني رسول الله او یا به هغه کلمات وایي لکه نور مؤمنان چي یې وایي یعني اشهد ان محمد رسول الله، له دې څخه بیا دا توهم کېږي چي محمد نامی یو بل سړی دی د هغه لپاره شاهدي د رسول والي ورکوي لکه نور مؤذنان چي اشهد ان محمد رسول الله وایي د علیه الصلوة والسلام لپاره شاهدي د رسالت ورکوي، او بل سبب دادی چي عمل د رسول اللهﷺ دیمه و یعني دوام داره کما ورد في الحدیث ان رسول اللهﷺ اذا عمل عملاً اثبته یعني همېشه به یې کاوه او دوام ته د اذان علیه الصلوة والسلام خلاص نه وځکه چي د علیه الصلوة والسلام لوی مصروفیت په تبلیغ د رسالت و لکه امیر المؤمنین عمرﷺ چي ویل لولا الخلیفي لاذنت" که نه وای اشتغال زما په امورو سره د خلافت ما به اذان کولای.

**مسئله**: لحن یعني لپاره د خوش آوازۍ یا د اوږد والي د اذان کلماتو ته تغیر ورکوي تغیر ورکول ناجائز دی. مثلاً الله اکبر په مد د الف وای، ولي دا خو د خدای ﷻ د خدای والي استفهام او شک دی په کبریا کي د خدای ﷻ حقیقت شک کفر دی لکن چونکه مؤذن خو شکي نه دی نو ادنی مرتبه یې داده چي داسي ویل ناجائز دی، او ان یقول اکبار بمد الباء لانه آسم الشیطان وغیر ذالک من التغیرات کما هو المتعارف في بعض مؤذني العصر الحاضر، په یوه روایت کي راغلي دي چي ابن عمرﷺ ته یو سړی راغلی او ورته وه یې ویل اني احبک زه ستا سره محبت لرم ابن عمر ورته وویل اني ابغضک زما ستا څخه بد راځي، هغه ورته وویل ولي؟ ابن عمرﷺ ورته وویل چي زه خبر سوی یم چي ته په اذان کي لحن کوې، قیل ان اجابة الاذان واجبة که څه هم سړی جنب وي یا ښځه حائضه وي، یو په بیت الخلاء

کي اجابت نسته او بل په وخت کي د جماع اجابت نسته. او تاج الشريعة وايي ان اجابة المؤذن سنة، وهذا هو المذهب الاعدل او امام نووي رحمه الله وايي چي اجابت د اذان مستحب دی وهذا هو المذهب الاسهل على السامعين الآذان.

**فائده:** مسافر که په سفر رهي وو او بل سړي اذان پسې وکړي خدای ﷻ به يې له سفره په خيرت او عافيت راولي. که د مولود په رسته غوږ کي اذان وکړه سي او په چپه غوږ کي يې اقامت وکړه سي د ام الصبيان چي کومه ناجوړي ده د اطفالو نو خدای ﷻ به يې په امن او امان کي وساتي.

**فائده:** که يو ځای اور واخلي آذان وکړه سي هغه اور به خدای ﷻ ساکن کړي او هغه ځای به له ضرره د اور خلاص کړي.

**فائده:** که هولناکه سېل راسي او څوک اذان وکړي د سيل له ضرره به يې خدای وساتي. که يو سخت يخ او يا خوف پيدا سي څوک اذان وکړي د يخ او د خوف له ضرره به په امن کي سي كذا في الانوار والاسرار المحمدية.

## قُلْ يٰۤاَهْلَ الْكِتٰبِ

ته ووايه اې محمد ﷺ اې اهل کتابو يعني اليهود والنصارى.

**شان نزول:** ځني نفر د يهودانو و عليه الصلوة والسلام ته راغله او ورته وه يې ويل موږ ته خبر راکړه ستا د دين. عليه الصلوة والسلام ورته وويل "آمن بالله وما انزل الينا وما انزل الى ابراهيم و اسماعيل واسحٰق ويعقوب والاسباط وما اوتي موسى وعيسى وما اوتي النبيون لانفرق بين احد منهم ونحن مسلمون" نو يهودانو چي د عيسى نوم واورېدی چي ددوی په عقيده عيسى نبي نه و بلکي بد نسبت يې ورته کوی يعني ولد الزنى نعوذ بالله من ذالک، نو دوی ورته وويل چي موږ سپک دين نه وينو په دنيا کي ستا تر دين فانزل الله تعالى هذه الآية.

## هَلْ تَنْقِمُوْنَ مِنَّاۤ اِلَّاۤ اَنْ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ

آيا تاسي معيوب او مکروه نه بولئ زموږ دين لعلة من العلل، مگر دا چي موږ ايمان راوړی پر خدای ﷻ په توحيد سره فهو مفعول له لتنقمون و مفعول به لتنقمون محذوف ای ديناً.

وَمَآ أُنۡزِلَ إِلَيۡنَا وَمَآ أُنۡزِلَ مِن قَبۡلُ وَأَنَّ أَكۡثَرَكُمۡ فَٰسِقُونَ ۝٥٩

او زموږ ایمان دی پر هغه کتاب چي نازل سوی دی موږ ته یعني القرآن العزیز، او پر هغو کتابو مو ایمان دی چي تر قرآن کریم مخکي نازل سوي دي من التوراة والانجیل او نور کتب الهیه، او په تحقیق اکثره ستاسي فاسقان دي.

**یوه سه:** چي "وان اکثرکم آه" عطف دی پر "ان امنا" باندي یعني زموږ پر دې هم ایمان دی چي اکثره ستاسي فاسقان دي یعني سرکښه خارج له حدود څخه د ایمان دي.

**یوه سه:** چي اسناد د فسق یې و اکثر ته وکړی، ولي چي عبدالله بن سلام او نور دده ملګري خو فاسقان نه وه "فسق" په آیت کي په معنی د فرد کامل دی د فسق وهو الکفر.

قُلۡ هَلۡ أُنَبِّئُكُم بِشَرّٖ مِّن ذَٰلِكَ مَثُوبَةً عِندَ ٱللَّهِۚ

ته ورته ووایه یا محمد ﷺ ویهودانو ته آیا زه خبر درکړم وتاسي ته په شر او بد سره من ذالک. اشاره په "ذالک" کي هغه ته ده چي منقوم او بد یې باله یعني الایمان والاسلام او منقوم علیهم ستاسي وه یعني مؤمنان، والمعنی چي زه به خبر درکړم پر بد سره تر هغه چي تاسي بد باله او هغه دین په واقع کي خیر محض و او مؤمنان اخیار الناس وه از روی جزاء.

**پوښتنه:** "مثوبة" خو په اصطلاح کي د شریعت خاص په خبر پوري دی لکه عقوبت چي خاص په شر سره دی، نو څرنګه یهودانو ته "مثوبة" لفظ مستعمل سو؟

**ځواب:** "مثوبة" یې ددې لپاره په ځای کي د عقوبت راوړی استهزاء بهم کما في قوله تعالی "بشرهم بعذاب الیم"

**یوه سه:** چي لفظ د "مثوبة" منصوب دی علی التمیز، او "عندالله" په "شر" پوري متعلق دی.

مَن لَّعَنَهُ ٱللَّهُ وَغَضِبَ عَلَيۡهِ

**یوه سه:** چي "من لعنه الله" بدل دی له "شر" څخه په حذف د مضاف تقدیره بشر

من ذالک دين من لعنه الله چي خدای پاک له خپل رحمت څخه لیري کړي دي او پر هغو یې خپل غضب نازل کړی دی وهم اليهود والنصارى لانهما في الكفر واصرارهم على الكفر والمعاصي بعد وضوح دلائل حقيقة دين الاسلام کلک ولاړ دي.

**وَجَعَلَ مِنْهُمُ الْقِرَدَةَ وَالْخَنَازِيرَ وَعَبَدَ الطَّاغُوتَ**

او په دوی کي يې بيزوګان او سرکوزان پيدا کړي دي وهم اليهود ايضا، يعني خدای ﷻ مسخ کړه بعض له دوی څخه په زمانه کي د داؤد ؑ چي دوی د شنبې د ورځي د ماهيانو ښکار نه پرېښو چي دوی ته ئې منع وه، نو داؤد ؑ ښېرا ورته وکړه.

**پوه سه**: چي "عبد" فعل ماضي ده پر قرائت د جمهورو او ضمير مستکن يې راجع دی و من ای اطاع الطاغوت وهو الشيطان في اختيار الكفر.

**درويش وايي**: چي دا قصه په تفصيل سره تېره سوې ده. او خنزيران هغه وخت وګرځېدل چي دوی د عيسى ؑ معجزات ظاهرات وليدل او له اسمانه څخه سترخان هم ورته راکښته سو چي مائده يې باله په طلب د يهودانو له عيسى ؑ څخه او پر هغه مائده يې خوراک هم وکړی بيا يې هم ايمان نه راوړی، نو په بد دعاء د عيسى ؑ دوی سرکوزان سول.

**أُولَٰئِكَ شَرٌّ مَكَانًا وَأَضَلُّ عَنْ سَوَاءِ السَّبِيلِ**

دغه کسان شر دي از روی مکان، او هم دوی ډېر ګمراهان دي تر هر ګمراه له لاري حقي څخه.

**پوه سه**: چي ځای يې د دوی بد او شر وباله ليدل على شرارتهم على ابلغ وجه لان شرارة المكان بشرارة المكين، د "سواء السبيل" اضافت دی د صفت و موصوف ته ای السبيل السوى ای المستوي وهو دين الاسلام.

**وَإِذَا جَاءُوكُمْ قَالُوا آمَنَّا**

او چي راسي يعني منافقان وتاسي ته دوی وايي ظاهراً چي موږ ايمان راوړی و پر تا اې محمد ﷺ او خپل کفر پټ درڅخه ساتي.

**درویش وايي:** چي دا اظهار د ایمان او پټ والی د کفر دوی ددي لپاره کاوه چي خپل ځانونه او عیالونه او مالونه له مسلمانانو څخه وساتي.

وَقَدْ دَّخَلُوا بِالْكُفْرِ وَهُمْ قَدْ خَرَجُوا بِهِ ۚ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا كَانُوا يَكْتُمُونَ ﴿٦١﴾

او په تحقیق سره داخل سوه دوی یعني منافقان متلبسین بالکفر او دوی ووتل په هغه کفر سره یعني ستا وعظ او تبلیغ په دوی کي تاثیر نه وکړی.

**پوه سه:** چي دا دواړي جملې حال دی له فاعل څخه د "قالوا" او لفظ د "به" او د "بالکفر" دواړه حال دي یو له فاعل څخه د "دخلوا" او بل له فاعل څخه د "خرجوا" یعني قالوا امنا بک والحال انهم کاذبون في هذا القول او دوی حاضر سوه په نیز ستا چي متلبسین په کفر سره وه یعني الکفر المبطن او دوی ووتل ستا څخه په هغه کفر مبطن سره متلبسین وه. او خدای ﷻ ښه خبر دی په هغه شي چي دوی پټ ساتی یعني کفر قلبي. په دې جمله کي وعید دی دوی ته په رسوایي سره په دنیا او اخرت کي.

وَتَرَىٰ كَثِيرًا مِّنْهُمْ يُسَارِعُونَ فِي الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ

او ته وینې یعني علم لرې ډېر ددوی یعني من الیهود او المنافقین چي دوی تلوار کوي په ګناه او په ظلم کي، او بعض مفسرین وايي چي ګناه ددوی یعني د یهودو دا وه چي دوی پټ کړی و له توراته نعوت د علیه الصلوٰة والسلام او آیت الرجم، او له "عدوان" څخه مراد زیادت دی ددوی په تورات کي.

وَأَكْلِهِمُ السُّحْتَ ۚ لَبِئْسَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿٦٢﴾

چي دوی خوري حرام (دا عطف دی پر "اثم" باندي) حرام هغه بدې چي دوی به یې رشوت کي اخستې چي خلګ به یې منع کول له ایمان څخه د علیه الصلوٰة والسلام او دوی به تحریف کي د تورات لکه آیت الرجم هم رشوت اخستی کمامر او پر خدای ﷻ به یې دروغ ویل، هر آئینه بد دی هغه شی چي دوی عمل کاوه کالامور المذکورة من قبائحهم، اللهم احفظ علماء الاسلام عن نحو مافعلوا ای علماء الیهود.

**درویش وايي:** چي د بني اسرائیلو کار د دین او د تورات چي خراب سو ددوی د

ملا یانو له لاسه. لکن په اوسني زمانه کي په اسلام کي هم بعض ورته ملا یان ته چي په بدو، حرامو، رشوتو او ورته حرامو زکاتو په سبب د غني ددوی اخته سوي دي لهذا د حق ویلو څخه عاجزه پاته دي الله صبرا. زمونږ د اسلام پخواني علماء رحمهم الله ډېر د زړه ډکه او په حق ویلو کي بې خوفه وه.

**حکایت**: د تابعینو د زماني یو زاهد عالم چي په هغه وخت کي مروان بن الحکم خلیفة المسلمین و. نو دې زاهد عالم دده ملاهي ورمات کړه یعني رباب او باجه وغیره. مروان چي خبر سو امر یې وکړی چي دا عالم زاهد د زمریانو چي مروان ساتلي وه تعذیباً د مسلمانانو لپاره په خونه ور ننباسئ چي زمریان یې وخوري. زاهد چي یې ور دننه کړی زاهد پر لمانځه ودرېدی. زمریان راغلله د زاهد پر پښو په یې ژبي تېرولې زاهد خپل لمونځ کاوه په زمریانو یې باک نه کاوه. سبا چي سو مروان خپلو عسکروته وویل چي تاسي وګورئ چي هغه ملا زمریانو خوړلی دی که نه. عکسر چي ورغله زمریان په ډېر الفت وزاهد ته ناست وه نو دوی تعجب ورته وکړی، او مروان ته یې صورت حال ورساوه مروان ورته وویل چي زاهد راوباسئ. زاهد چي یې مروان ته راوستی مروان ورته وویل چي ته ددې زمریانو څخه نه بېرېدلې؟ زاهد ورته وویل یا نه بېرېدم زه مشغول او متفکر وم ټوله شپه، ددوی وبېري ته نه وم فارغه. مروان ورته وویل په څه شي کي دي فکر واهه؟ زاهد ورته وویل چي په دې کي مي فکر واهه چي دې زمریانو چي زما پښې راڅټلې نو ددوی ناړي به پاکي وې که مرادري. نو مروان وده ته په تعجب کي غرق سو او زاهد یې رخصت کړی ومن یتوکل علی الله فهو حسبه" آیة کریمه.

لَوْلَا يَنْهٰهُمُ الرَّبّٰنِيُّوْنَ وَالْاَحْبَارُ عَنْ قَوْلِهِمُ الْاِثْمَ وَاَكْلِهِمُ السُّحْتَ ۗ لَبِئْسَ مَا كَانُوْا يَصْنَعُوْنَ ﴿٦٣﴾

**پوه سه**: چي "لولا" حرف تحضیض دی یعني ولي نه نهي کوله دغو علماؤ ددوی.

**پوه سه**: چي بعض ربانیون او احبار دواړه په علماء سره تفسیر کوي لکن

ربانيون يې صوفيان دي او احبار يې علم د ظاهر ملا يانو دی، او بعض مفسرين وايي چي "ربانيون" د نصارى وو ملا يان دي او احبار د يهودانو ملا يان دي. له څه شي څخه يې نه نهي کول له قول څخه د گناه يعني الكذب پر خدای ﷻ او رسول باندي، او له خوراک څخه د حرام مال لکه وړاندي چي تېره سوه او ډېر بد دی هغه شی چي دوی صنع کول يعني ملا يانو ددوی چي دوی يې نه نهي کول. مظهري وايي چي "يصنعون" ابلغ دی تر "يعلمون" ولي چي صنع هغه فعل ته وايي چي انسان پکښي ماهر او تجربه کار وي. او عمل مطلق فعل ته وايي. نو ځکه يې ذم د خواصو د يهودانو چي ملا يان ددوی وه په "يصنعون" سره وکړی او د عوامو دا يې په "يعملون" سره وکړی. په تفسير مدارک کي وايي له ابن عباس رضي الله عنه څخه چي دا آيت تر ټولو سخت آيت دی په باره کي د علماؤ چي نهي عن المنكر نه کوي ولي چي تارک د نهي عن المنكر يې لکه فاعل د منکر وباله سره د مبالغې په شان د تارک د نهي عن المنكر چي "يصنعون" يې ذکر کړی او د مرتکبين د منكر په باره کي يې يعملون ووايه.

**درويش وايي:** چي په اوسنی زمانه کي چي د يو امام په مسجد کي يو پېډال مقتدی وي چي هغه زکوة وغيره ورکوي، نو هغه امام فضائل د اعمالو لکه اودس وغيره مماجاء في الاحاديث النبوية بيانوي. او چي پېډال يې د هر څه کبائرو گنهو مرتکب وي په هغو کبائرو کي بيان نه کوي؛ ولي بېرېږي چي له امامته به مي وباسي، او بعض داسي ملا يان هم سته چي حج پر فرض وي لکن حج نه کوي، ولي بېرېږي چي مقتديان به مي له امامته وباسي. ولي چي وايي به چي ته خو غني وې حج ته ولاړې. فيا اسفى على حال هؤلاء.

ع ........ چو کفر از کعبه برخيزد کجاماند مسلمانی

**وَقَالَتِ الْيَهُودُ يَدُ اللّٰهِ مَغْلُولَةٌ**

او وويل يهودو چي لاسونه د خدای ﷻ موټ سوه. يعني عن الرزق، ابن عباس رضي الله عنه او عکرمه. قتاده او ضحاک رحمهم الله وايي چي خدای پر يهودانو ډېره فراخي جوړه کړې وه حتى چي دوی د زماني د خلگو اکثره وه د اموالو

گوناګون، او مخکې يې ډېرې حاصل شوي وې. نو چونکه دوی د علیه الصلوٰة والسلام عصیان مختاره کړی او دوی د علیه الصلوٰة والسلام تکذیب وکړی، نو خدای ﷻ له دوی څخه د رزق فراخي بنده کړه فعند ذالک سبوه بالبخل لان قبض الید کنایة عن البخل. او فحاص بن عازورا چې د بني قینقاع د قوم رئیس و ویل به يې ید الله مغلولة ی مقبوضة محبوسة عن الرزق. او طبراني له ابن عباس ﷺ څخه روایت راوړی دی چې یو سړی له یهودانو څخه چې نوم يې نباش بن قیس و، و ابن عباس ﷺ ته يې وویل ان ربک لبخیل نعوذ بالله.

**پوښتنه**: دا خبره خو یا د فحاص بن عازورا وه او یا د نباش وه. نو تولو یهودو ته يې نسبت څرنګه وسو؟

**ځواب**: لکه څنګه چې یهودو او نورو ملا یانو د دوی دغه دوه کسان له دې خبري نه منع کول او د دوی په دغه وینا راضي وه، نو ځکه يې ټولو ته نسبت وکړی نحو "بنو فلان قتلوا" او قتل یوه کړی وي او نور زامن د فلان په راضي وي.

**فائده**: بسط الید مجاز عن الجود وغل الید مجاز عن البخل.

## غُلَّتْ أَيْدِيهِمْ وَلُعِنُوا بِمَا قَالُوا

موټ دي لاسونه د دوی او دوی مستحق د لعنت الهي وګرځېدل په سبب د دې خبري چې نسبت د بخل يې و خدای ﷻ ته وکړی.

**پوه سه**: چې "غلت ایدیهم" ودوی ته ښېرا ده یا په بخل او یا په فقر او مسکنت. او یا ښېرا ده بغل ایدیهم بالاسر في الدنیا وبالسلاسل في نار جهنم.

**سوال**: خدای ﷻ څرنګه ښېرا وچاته کولای سي او ښېرا کول خو د عاجزو خلګو کار دی؟

**ځواب**: دا ښېرا تعلیم دی د خدای ﷻ له خوا و مسلمانانو ته یعني تاسي دوی ته دغه ښېرا وي کوئ زه به يې قبلوم په حق کې د دوی.

## بَلْ يَدَاهُ مَبْسُوطَتَانِ

**پوه سه**: چې "بل" لپاره د اضراب د دوی له قول څخه چې ید الله مغلولة یعني دغسې نه ده لکه تاسي چې وایاست بلکې خدای ﷻ موصوف دی په غایت جود

او نهایت فضل او احسان سره چي دا معنا له تثنیه راوړلو څخه د یداه فهمېږي. ولي چي په انسانانو کي نهایت سخي او غایت جواد هغه سړی شمېرل کېږي چي په دواړو لاسو نقود وغیرها وخلګو ته ورکوي.

**فائده:** ید الله له متشابهاتو څخه د قرآن دی لکه سمیع، بصیر یا "کل شئ هالک الا وجهه" وغیر ذالک. د اهل قرآن د قدماؤ یعني مفسرانو مذهب دادی چي د متشابهاتو علم وخدای ﷻ ته موکول دی بناءً علی الوقف اللازم في قوله تعالی "ولایعلم تاویله الا الله" ای المتشابه. نو پر "الله" باندي قدماء وقف لازم وایي او وروسته عبارت "والراسخون في العلم" پر لفظ الله باندي عطف نه بولي بلکي جلا مبتداء یې بولي او "یقولون" یې خبر بولي. نو پر موږ مسلمانانو یې تسلیم او انقیاد لازم دی بان نقول ما اراد الله به حق وهو مذهب السلف من اهل السنة والجماعة وهذا المذهب اسلم من الخطاء فیما اراد الله. او متاخرین یې تاویل کوي مثلاً وایي چي له یدا څخه صفات جلالیه او جمالیه مراد دي، او ید چي مفرد راسي په معنی د قدرت دی او سمع په معنا د علم بالمسموعات دی او بصر په معنی د علم بالمبصرات دی الی غیره من التاویلات وهذا المذهب ادفع لشغب یعني اعتراض اعداء الدین چي دوی وایي چي علم د متشابهاتو چي مختص په خدای ﷻ پوري و. نو فائده د انزال یې په قرآن کریم کي څه ده لان القرآن نزل لهدایة ونفع العباد والهدایة والنفع موقوفان العلم بمعناه.

## يُنفِقُ كَيۡفَ يَشَآءُۚ

یعني انفاق کوي خدای ﷻ څرنګه چي یې اراده وي، حاصل دا چي فاعل مختار دی ګاهي پر چا توسیع کوي د رزق امتحاناً لشکره لکه چي پر یهودانو یې قبل بعثت النبي ﷺ ډېره فراخي د رزق او د مال جوړه کړې وه امتحاناً لشکرهم بالایمان بالنبي ﷺ، او ګاهي پر مسلمانانو تنګي د رزق راولي امتحاناً لصبرهم او ګاهي پر عاصي تنګي د رزق راولي جزاءً لعصیانه کما ضیق الرزق علی الیهود حین کفروا وانکروا نبوت علیه الصلوة والسلام، ولهذا قالوا "یدل الله مغلولة" نو خدای ﷻ پر مقتضی د حکمت خپل توسیع او تضییق کوي "لایسئل عما یفعل

وهم يسئلون" آية كريمه. قال المولوي المعنوي في مثنويه

چونکه بد کردی بترس ایمن مباش زانکه تخم بد برویاند خداش
چند گاهی او بپوشاند که تا آیدت زان بد پشیمان وحیا
بارها پوشد پی اظهار فضل بازگیر دار پی اظهار عدل
تاکه این هر دو صفت ظاهر شود آن مبشر گردد واین منذر بود

**درويش وايي:** لله دره ما ادق قطره دا رشتيا ده چي جلال الرومي مولوي معنوي دی.

**وَلَيَزِيدَنَّ كَثِيرًا مِّنْهُم مَّا أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ طُغْيَانًا وَكُفْرًا**

او هر آئينه زياتوي به ډېرو ته ددوی يعني يهودانو ته هغه كتاب چي نازل سوی دی وتاته له جانبه څخه د رب ستا سركشي او كفر، يعني هر وخت چي تاته يو آيت يا سورت نازل سي دوی په هغه سره كفر كوي، فلهذا فازدادوا كفراً وطغياناً، او بعض مفسران وايي چي قرآن مبارك لكه صحيح غذا. داسي دی چي څوک په صورت او باطن كي مرض نه لري هغه ته قوت وركوي، او چي په باطن كي مرض لري هغه ته نور مرض ورزياتوي، دغه قرآن چي د يهودانو په زړو كي مرض د كفر و، نو قرآن ودوی ته زيات كړی طغيان او كفر.

**وَأَلْقَيْنَا بَيْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاءَ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ**

او موږ اچولی دی په منځ كي ددوی يعني د يهود او نصارى وو عداوت او بغض تر ورځي پوري د قيامت، حسن بصري او مجاهد وايي چي ضمير د "بينهم" راجع دی و ډلو ته د يهودانو چي دوی يو له بل سره اختلاف لري په دين كي. نو ددوی زړونه سره موافق كېږي تر ورځي د قيامت، په صحيح حديث كي راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام وفرمايل چي د موسى عليه السلام امت يو اوويا ډلي سوی دی چي تول له به يې په اور كي وي، مگر نه يوه ډله به يې په جنت كي وي، او د عيسى عليه السلام امت دوه اوويا ډلي سوی دی چي تول له به په دوزخ كي وي مگر نه يوه ډله چي هغه به په جنت كي وي، او زړ دی چي زما امت به دري اوويا ډلي وگرځي چي كلهم في النار الا الناجية، اصحابو رضي الله عنهم ورته وويل چي ناجيه كومه ډله ده؟ عليه الصلوة والسلام ورته

وويل چي ناجيه هغه ډله ده چي د دين پر هغه لار روان وي چي زه او زما اصحاب پر هغه روان يو . اللهم اجعلنا منهم . قالوا هم اهل السنة والجماعة.

**كُلَّمَآ أَوۡقَدُواْ نَارٗا لِّلۡحَرۡبِ أَطۡفَأَهَا ٱللَّهُۚ**

هر وخت چي يهودان بل كړي اور د جنګ لپاره د عليه الصلوة والسلام او مسلمانانو ، خداى ﷻ به هغه اور مړ كړي، نو "للحرب" يا صفت دى د "ناراً" نو ظرف مستقر دى اى كائنة للحرب. او يا ظرف لغوه دى متعلق په "اوقدوا" سره دى.

**بوه سه:** چي حسن بصري رحمة الله عليه وايي چي ددې معنا داده چي هر وخت به يهودانو د جنګ اراده وكړه د عليه الصلوة والسلام سره، نو خداى ﷻ به دوى په خپل منځ كي په جنګ سره اخته كړه او عليه الصلوة والسلام او مسلمانان به يې ددوى له شره وساتل او په عين حال كي به يې عليه الصلوة والسلام پر دوى غالبه كړى او دوى ته به يې ماته وركړه . او قتاده رحمة الله عليه وايي چي دا مغلوبيت د يهودانو په جنګ كي عام دى چي يهودانو به يې طلب كوى دښمن به خداى پر غالبه كړى او دوى به يې دربه دره كړه ، حتى چي څه وخت چي يهودانو د دين او د تورات مخالفت كړى دى خداى ﷻ لوى دښمن پر مسلط كړى دى په اول وار كي يې طيطانوس رومي پر مسلط كړى چي ددوى ځوانان او ښځي يې په غلامى ځني بوتلې، بيا دوى توبه وكښله، خداى ﷻ كومك وسره وكړى ښنديان يې ور ايله كړه، څه وخت او كلونه وروسته بيا دوى فساد او مخالفت د تورات شروع كړى خداى پاک مجوسيان پر مسلط كړه او دوى يې سره دربه دره كړه، څو كلونه وروسته يې بيا فساد في الارض او مخالفت د تورات د حكم اختيار كړى، خداى پاک مسلمانان پر مسلط كړه چي څوک يې ووژل او څوک يې له خپلو وطنو څخه فرار كړل.

**وَيَسۡعَوۡنَ فِي ٱلۡأَرۡضِ فَسَادٗاۚ وَٱللَّهُ لَا يُحِبُّ ٱلۡمُفۡسِدِينَ ۝٦٤**

**بوه سه:** چي مضارع لپاره د استمرار تجددي ده يعني يهودان همېشه په ځمكه كي نوى نوى فساد لټوي او د خداى ﷻ محبت نسته د مفسدينو سره يعني يبغضهم "فساداً" مفعول به دى "يسعون" يعني دوى همېشه د فساد لپاره كوشش

کوي، او یا "فساداً" مفعول به دی، نو "یسعون" په معنی د یطلبون دی.

**پوه سه:** چي فساد الیهود دا و چي د خلګو تر منځ جنګو او فتنو ته به يې لمن وهله.

## وَلَوْ اَنَّ اَهْلَ الْكِتٰبِ اٰمَنُوْا وَاتَّقَوْا لَكَفَّرْنَا عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ

او که چیري اهل کتابو ایمان راوړی وای پر علیه الصلوة والسلام باندي، او له معاصیو څخه یې توبه کښلي وای هم په قول او هم په فعل، خدای ﷻ عفوه کړي وای او بخښلي به یې وای ودوی ته هغه سیئات ماضیه ددوی که څه هم لوی لوی سیئات وي لان الاسلام یجب ماقبله. عمرو بن العاص ﷺ وایي چي زه علیه الصلوة والسلام ته ورغلم ماورته وول چي رسته لاس دي خلاص کړه چي زه بیعت درسره کوم، علیه الصلوة والسلام چي لاس خلاص کړی ما لاس تول کړی علیه الصلوة والسلام راته وویل مالک یاعمرو یعني لاس دي ولي تول کړی، ما ورته وویل چي یو شرط لرم. علیه الصلوة والسلام راته وویل څه شرط لګوې؟ ما ورته وویل چي زه دا شرط لګوم چي خدای ﷻ زما ګناهونه رابخښي په سبب د اسلام؟ علیه الصلوة والسلام وویل اما علمت یاعمرو ان الاسلام یهدم ماکان قبله وان الهجرة تهدم ماکان قبلها وان الحج یهدم ماکان قبله رواه مسلم، یعني بشرط التوبة في الحج والله اعلم.

## وَلَاَدْخَلْنٰهُمْ جَنّٰتِ النَّعِيْمِ ۝

او هرآئینه زه دوی داخلوم وجنتو ته د نعمتو. یعني مالاعین رئت ولا اذن سمعت ولاخطر علی قلب بشر.

**پوه سه:** چي دخول وروسته تر بعثت د علیه الصلوة والسلام الی یوم القیامة مشروط دی په ایمان سره پر علیه الصلوة والسلام.

## وَلَوْ اَنَّهُمْ اَقَامُوا التَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْهِمْ مِّنْ رَّبِّهِمْ

او که چیري اهل کتابو یعني یهود او نصاری وو اقامت وکړی د تورات او انجیل یعني تولـه احکام یې پر ځای کړي وای او عمل یې پـه کړی وای او تغییر د کتاب الله یې نه وای کړی او ددغو دوو کتابو آیات یې نه وای پټ کړي چي یو لـه اقامت

څخه د تورات ايمان دی پر عليه الصلوة والسلام او بيان د اوصافو د عليه الصلوة والسلام يې کړی وای چې په تورات کې خدای پاک نازل کړي وه، او داغه رنګه دوی اقامت کړی وای: د هغه کتاب چې دوی ته نازل سوی دی له جانبه څخه د رب ددوی چې قرآن پاک دی، او زبور د داؤد عليه السلام بلکې ايمان پر ټولو اسماني کتابو راوړی وای. ولې چې دوی لکه مورږ چې په قرآن کې مکلف يو په تورات کې مکلف وه په ايمان د ټولو کتب الهيه وو.

## لَأَكَلُوا مِنْ فَوْقِهِمْ وَمِنْ تَحْتِ أَرْجُلِهِمْ ۚ

دوی به خوراک کولای له لوړې خوا څخه ددوی او له لاندې خوا څخه د پښو ددوی.

**پوه سه**: چې فراء نحوي وايي چې مراد په آيت کې فراخي د رزق ده په کامله فراخي سره لکه په دې محاوره کې چې فلانی په خير کې دی سر تر نوکه پورې.

او ابن عباس رضي الله عنه يې داسې تفسير کوي چې له لوړې خوا به باران نه پر کېدای او نباتات په شمول د ارتزاقي شيان وو لکه غنم، ورجې او د درختو مېوې تر پښو لاندې ددوی، يعني پر مخکه ددې مثال داسې دی لکه بل ځای چې خدای پاک په قرآن عزيز کې وايي "ولو ان اهل القرى امنوا واتقوا لفتحنا عليهم برکات من السماء والارض، مطلب دا چې رزق چې پر دوی کم سوی دی په سبب د دوی د کفر او ګنهو لا لبخل به تعالى الله عن ذالک علوا کبيراً.

## مِنْهُمْ أُمَّةٌ مُقْتَصِدَةٌ ۖ وَكَثِيرٌ مِنْهُمْ سَاءَ مَا يَعْمَلُونَ ﴿٦٦﴾

بعض له اهل کتابو يا بعض له يهودانو څخه يوه ډله ميانه رو ده نه غلو په دين کې کوي يعني تر حد تجاوز، او نه کوتاهي په دين کې کوي لکه عبدالله بن سلام واشباهه رضي الله عنهم من مؤمني اهل الکتاب، او ډېر ددوی بد دي هغه چې دوی يې عمل کوي، نو "ما" موصوله دی يا "ساء عملهم" نو "ما" مصدريه دی، هغه عمل ددوی معانده ده د رسول الله ﷺ سره او تحريف دی د کتاب الله التورات وامثال ذالک.

## يَاَيُّهَا الرَّسُوْلُ بَلِّغْ مَآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ

اې رسوله رسوه هغه احکام دینیه والشرعیه که له قسمه څخه د عقائدو وي او که له قسمه څخه د عملي شیانو.

**بوه سه**: چي مراد له "ماانزل الیک" څخه هغه احکام دي چي په مصالحو د عبادو تعلق لري، نو دا سوال نه واردېږي چي بعض اسرار الهیه دي چي افشا، یې في الناس عموماً نه ده روا، تحقیق دادی چي هغه شیان چي تعلق په شریعت پوري لري د هغه افشاء عامه ده او چي په حقیقت پورې تعلق لري لکه بعض اسرار تصوفیه هغه خاص ده مثال یې د امانت دی، امانت هغه چاته څوک ورکوي چي حفاظت یې کولای سي.

## وَاِنْ لَّمْ تَفْعَلْ فَمَا بَلَّغْتَ رِسٰلَتَهٗ

او که تېوله هغه شیان چي نازل سوي دي وتاته ونه رسوې یعني له سببه د خوف د یو مکروه، نو تا نه دي رسولي رسالت د خدای ﷻ لان کتمان البعض ککتمان الکل في الوعید.

**بوه سه**: رسول د رسالت د ژبي سره تعلق لري، نو خدای ﷻ و علیه الصلوة والسلام ته رخصت ور نه کړی په ترک کي د تبلیغ که څه هم له مکروه څخه بېرېږي.

## وَاللّٰهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ

او خدای پاک تا ساتي د خلګو له ضرره یعني بالقتل، په حدیث صحیح کي راغلي دي چي علیه الصلوة والسلام چي مدیني منورې ته راغلی یهودانو ورته وویل یامحمد ﷺ موږ د نفوسو په اعتبار نهایته ډېر یو او د جنګ په لحاظ ډېر ښتلي یو فان لم ترجع عن دینک قتلناک، او که له خپل دینه رجوع وکړې اکرمناک وزودناک، نو علیه الصلوة والسلام پر خان پهېره کوله سلو کسو د انصارو او مهاجرینو د شپي به هم دا سل نفره پهېره وه او د ورځي به دا سل کسه ورسره وه خوفاً من الیهود، نو چي دا آیت نازل سو "والله یعصمک من الناس" علیه الصلوة والسلام به دې پوه سو چي د یهودانو له قید او قتل څخه ما خدای ﷻ ساتي، نو علیه

الصلوة والسلام د شپې راووتی او انصارو او مهاجرينو پهره دارانو ته یې وویل "انصرفوا الی رحالکم" ولاړ سئ و خپلو کورو ته "فان الله قد عصني من اليهود" وروسته ددې آیت تر نزول به علیه الصلوة والسلام یوازې ګرځېدی هم د شپې په اول کې هم د تهجد په وخت کې حتی بعض شپلو ته د مدینې منورې په یوازې روان و مع کثرة اعدائه وقلة اعوانه اعتماداً علی عصمة الله تعالی.

له سیدتنا عائشة رضي الله عنها څخه روایت دی چې که تاته چا وویل ان محمداً کتم شیئاً چې علیه الصلوة والسلام یو شی پټ کړی دی مما انزل الله فقد کذب هغه درواغ وایي، ولې خدای ﷻ ده ته ویلې دي "یاایها الرسول بلغ ما انزل الیک الی خیر الآیة"

**پوه سه:** امام مظهري رحمه الله په شان نزول کې ددې آیت "یاایها الرسول آه" دومره مختلف رطب او یابس راوړې دي چې له سرې څخه دا ورکه سي چې دا آیت به خدای خبر په څه شي کې نازل سوی وي.

## إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكَافِرِينَ ﴿٦٧﴾

**پوه سه:** چې دا آیت دلیل دی د "والله آه" یعنې خدای پاک ودوی ته ستا د اضرار لار نه ورښیي او نه تا قتل کولای سي نه ستا دین محوه کولای سي.

**پوه سه:** چې سنت الهي په دې سره جاري دی چې خپل انبیاء علیهم السلام بلکې نور دوستان له دښمنانو څخه ساتي لکه چې خدای ﷻ وساتله علیه الصلوة والسلام او ابوبکر رضي الله عنه د جبل ثور په غار کې سره ددې چې د مکې کافران قریش په ډلیېزه توګه د غاري تر خولې ورغله لکن خدای پاک دوی ځني وساتل حتی چې ابوبکر رضي الله عنه کرار و علیه الصلوة والسلام ته وویل که دغه کافران کښېنستل او د غاري خولې ته یې وکتل ما او تا به ووینې علیه الصلوة والسلام ورته وویل ماظنک باثنين الله ثالثهما. خو کافران ومکې ته بېرته ناکامه ولاړه، داغه رنګه په حدیث کې د جابر رضي الله عنه چې روایت یې بخاري کړی دی راغلې دي چې علیه الصلوة والسلام په بعض غزواتو کې سره د اصحابو کرامو رضي الله عنهم یوه ورځ د ډېرې سختې ګرمی له سببه غرمه یوې شېلې ته ورسېدل چې په هغې کې د عضاه درختې وې او هورې یې د استراحت لپاره واړول او خلګ سره متفرق سوه هر سړي د یوې

درختې تر سایې لاندې پرېوتی او علیه الصلوة والسلام هم د یوې درختې تر سایې لاندې پرېوتی او توره یې د درختې په یو ښاخ پورې وځړول یو کړی چې وسو علیه الصلوة والسلام موږ ته ناري وهلې موږ چې ورغلو یو صحرائي سړی د علیه الصلوة والسلام ته ناست و، نو علیه الصلوة والسلام وویل چې دغه سړی چې زه بیده وم زما توره یې را اخستې وه او له تېکې څخه یې کښلې وه زه راویښ سوم توره دده په لاس کې له تېکې کښلې ورڅخه وه او ماته یې وویل من یمنعک مني یعني تا به څوک له ما څخه خلاص کړي؟ ما ورته وویل "الله" نو د ډېرې وارخطایې څخه یې په اورېدلو سره د لفظ الله توره له لاسه ولوېده ما راواخستل او ده ته مې وویل من یمنعک مني؟ ده راته وویل کن خیر آخذ" یعني ته ښه اخیستونکی سه غرض یې دا و چې ما مه په وهه لګه ما چې ستا د وژلو قصد کړی و. راوي وایې چې علیه الصلوة والسلام و هغه سړي ته وویل اتشهد ان لا اله الا الله واني رسول الله؟ هغه سړي ورته وویل یا، لکن دومره وعده درسره کوم چې نه زه ستا سره جنګ کوم او نه د هغه ملګری کېږم چې ستا سره جنګ کوي، نو علیه الصلوة والسلام یې لاره ایله کړه یعني هیڅ یې نه ورته وویل.

سعدي رحمه الله په بوستان کې وایي

| | |
|---|---|
| یکی دیدم از عرصه رودبار | که پیش آمدم بر پلنګی سوار |
| چنان هول ازان حال برمن نشست | که ترسیدنم پای رفتن ببست |
| تبسم کنان دست بر لب ګرفت | که سعدی مدار آنچه دیدی شګفت |
| توهم ګردن از حکم داور مپیچ | که ګردن نپیچد ز حکم تو هیچ |
| محالست چون دوست دارد ترا | که در دست دشمن ګذارد ترا |

**يوه سه:** چې ابن جریر رحمه الله له ابن عباس رضي الله عنه څخه داسې روایت کړی دی چې رافع او سلام بن مشکم او مالک بن صیف یعني چې یهودان وه علیه الصلوة والسلام ته راغله او داسې یې ورته وویل "یامحمد الست تزعم انک علی ملة ابراهیم ودینه" آیا ته دا نه وایې چې زه پر ملت د ابراهیم او پر دین د ابراهیم علیه السلام یم، علیه الصلوة والسلام ورته وویل "بلی" هو ا زه داغه وایم، ددوی غرض دا و

چې د ابراهیم دین خو موافق د تورات سره و، نو ځکه علیه الصلوة والسلام وویل "لکن احدثتم وجحدتم بما فیها وکتمتم ما امرتم ان تبینوه للناس" قالوا فانا ناخذ بما في ایدینا فانا علی الهدی والحق. فانزل الله تعالی" ترجمه: لکن تاسي داسي نوي شان په تورات ګډ کړي دي او تاسي منکر یاست د مافي التوراة څخه او تاسي پټ کړي دي هغه شیان چې تاسي امر سوي واست یعني په تورات کې چې خلګو ته به یې بیانوئ دوی ورته وویل چې موږ عمل کوو په هغه تورات چې زموږ په لاس کې دی، نو موږ پر هدایت یو او پر حق یو.

قُلْ يَٰٓأَهْلَ ٱلْكِتَٰبِ لَسْتُمْ عَلَىٰ شَىْءٍ

ته ورته ووایه اې محمد ﷺ چې اې اهل کتابو یعني یهوداٸو تاسي نه یاست پر هیڅ شي د دین،

**سوال**: باطل خو هم شی دی، نو نفي د شي ددوی له دین څخه څرنګه صحیح کېږي؟

**ځواب**: مراد له شي څخه شی معتد به عندالله دی، والباطل لیس بمعتدبه عندالله. او یا نفي د شي مبالغه ده په بطلان کې د دین ددوی چې دوی په تورات کې نور محدثات ګډ کړي دي او یا یې کم کړي دي.

حَتَّىٰ تُقِيمُوا۟ ٱلتَّوْرَىٰةَ وَٱلْإِنجِيلَ وَمَآ أُنزِلَ إِلَيْكُم مِّن رَّبِّكُمْ

تر هغه وخته تاسي پر شي معتدبه عندالله نه یاست چې تاسي به پوره او سم عمل ونه کړئ په تورات او په انجیل سره او په هغه کتاب چې نازل سوی وتاسي ته یعني القرآن العزیز له جانبه څخه د رب ستاسي، او یو له اقامت څخه ددغو درو کتابو ایمان درلودل دي بمافیها من اصول الدین کالایمان بالتوحید، او ایمان پر بعث بعد الموت والجنة والنار وغیرها من العقائد الدینیة المشترکة بین الکتب الثلاثة بل بین جمیع الکتب المنزلة. ولې چې اصول د ادیانو سره یو دی. ولې چې اصول الدین خو نسخ نه قبلوي، او بل د اصول مشترکه وو څخه د دغو درو کتابو ایمان دی بمحمد ﷺ او پر قرآن او عمل به کوي په مقتضی سره د دغو

کتابو چي یو یې نعت د علیه الصلوة والسلام دی په تورات او انجیل کي هغه به خلګو ته بیانوي، او په هغه فروعو د تورات به هم عمل کوو چي نسخ یې نه وي ثابت سوی لکه رجم المحصن والمحصنة کمامر. او که نسخ د یو حکم ثابته سي بیا به عمل په ناسخ کوي لکه لمونځونه. زکوٰة او روژه چي په تورات کي یې یو ډول حکم وو او په قرآن کي غیر د هغه، و عمل موافق د قرآن لازم دی لانه ناسخ.

**پوه سه**: چي ددې آیت څخه عمل کول په شرائعو متقدمه وو سره چي نسخ یې نه وي ثابت واجب دی لکن نه ددې جهته مثلاً چي دا حکم د تورات دی. بلکي ددې جهته چي حکم د قرآن عزیز دی.

**فائده**: د قرآن په باره کي خدای پاک داسي وویل "وما انزل الیکم" ددې لپاره چي رد پر یهودانو وسي، ولي چي دوی به ویل چي قرآن زموږ لپاره نه دی نازل بلکي د عربو لپاره او علیه الصلوة والسلام یې هم خپل نبي نه باله بلکي د عربو نبي یې باله.

وَلَيَزِيدَنَّ كَثِيرًا مِّنْهُم مَّا أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ طُغْيَانًا وَكُفْرًا

**درویش وایي**: چي دا آیت دمخه هم راغلی و او ترجمه او بیان یې هوري تېر سو، نو هغه ځای ته رجوع وکړي.

فَلَا تَأْسَ عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ

نو ته غم مه کوه د کفارو پر قوم په سبب د ډېر طغیان ددوی او ددوی له شره څخه هم مه بېرېږه لما وعدک الله تعالی والله یعصمک من الناس ولا خلف لوعده تعالی.

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا

تحقیق هغه کسان چي ایمان یې راوړی دی یعني په لسانه سره فقط وهو المنافقون لیس الا.

وَالَّذِينَ هَادُوا وَالصَّابِئُونَ وَالنَّصَارَىٰ

ای دخلوا في دین الیهودیة، او هغه چي میل یې کړی زړو ددوی وجهل ته، او دا یو صنف له نصاری وو څخه چي ستاسو ستاسو ...

**درویش وایي:** چي ددې آیت توله تفصیل او اختلاف په "صائبون" کي په سورت بقره کي تېر سوی دی فلیراجع.

**پوښتنه:** صائبون "خو عطف دی پر "الذین هادوا" باندي نو حق د اعراب خو یې دا و چي "صائبین" ویل سوي وای لانه اسم ان وهو منصوب نو مرفوع ولي وویل سو؟

**ځواب:** د کوفیینو په نیز عطف پر اسم د ان په رفع سره روا دی نظراً الی محله ولي اسم د ان محلاً مرفوع مبتدا. ده. او په نېز د مبرد عطف د مرفوع پر اسم ده ان چي مبني وي روا دی لظهور عدم عمل ان نافیه فکانها لم تعمل فیه. او په نېز د بصریون صائبون مرفوع دی مبتدا. ده او خبر یې محذوف دی، ای والصائبون کذالک. وهذا لا یخلو عن تکلف کمالا یخفی. ددوی په نېز جمله د والصائبون کذالک معطوف ده پر ان الذین آه. لا علی اسم ان حتی یکون منصوباً وهو تکلف علی تکلف.

مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَعَمِلَ صَالِحًا فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿٦٩﴾

**پوه سه:** چي کلمه د "من" مبتدا. ده او جمله د فلا خوف آه یې خبر دی، نو چونکه کلمه د من متضمن ده معنی لره د شرط نو ځکه یې په خبر کي فا راوړه او دا توله جمله خبر ده "ان" ده.

**ترجمه:** په تحقیق هغه کسان چي ځوک ایمان راوړي که منافقان دي که یهودان او که صائبون او که نصاری دي ځوک چي ایمان راوړي له دوی څخه یعني منافق په زړه سره هم لکه په خوله ایمان او یهودان او صائبون او نصاری ایمان راوړي په ژبه او په زړه سره پر خدای ﷻ باندي یعني پر توحید د خدای پاک او په نورو ما یلیق بشانه تعالی من عدم الولد وغیر ذالک. او ایمان پر یوم آخر یعني وما یتعلق بذالک الیوم من الحساب والجنة والنار وغیر ذالک او عمل صالح هم وکړي یعني ما یوافق الشریعة الغراء. نو هیڅ بېره نسته پر دوی باندي او نه به دوی غمجن وي یعني په ورځ د قیامت. د خوف او حزن فرق دمخه تېر سوی دی.

لَقَدْ اَخَذْنَا مِيْثَاقَ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ وَاَرْسَلْنَآ اِلَيْهِمْ رُسُلًا

یعني قسم په خدای دی چي موږ اخستی دی ټینګ، عهد او وعده د بني اسرائیلو څخه یعني په تورات بالتوحید والعمل بما فیها او په ایمان پر تولو انبیاؤ او پر

محمد ﷺ، او مورِ استولي دي دوی ته نور رسولان تاچي دوی ته هغه میثاق وربه یاد کي او دوی ته بیان کړي کارونه د دین ددوی.

**درویش وایي:** چي په یوه روایت کي راغلي دي چي خدای ﷻ وروسته تر موسی څلور زره انبیاء وبني اسرائیلو ته رالېږلي دي چي ټوله پر دین د موسی وه او کتاب یې هم تورات و.

**كُلَّمَا جَآءَهُمْ رَسُولٌۢ بِمَا لَا تَهْوَىٰٓ أَنفُسُهُمْ فَرِيقًا كَذَّبُوا۟ وَفَرِيقًا يَقْتُلُونَ ۝٧٠**

**پوه سه:** چي له دې آیت څخه دا معلومه سوه چي دوی متابعت پرېښو د تورات. او خپل د خواهشاتو نفسانیه و یې متابعت کاوه، ولي چي انبیاء خو ټولو اوامر او نواهي د تورات ودوی ته بیانول، نو ولي دوی د بعض تکذیب کاوه او بعض یې وژله.

نو دوی د یوې ډلي د نبیانو تکذیب کاوه او مړه یې نه کړه او یوه ډله د نبیانو یې وژله یعني وروسته تر تکذیب به یې قتل هم کړه.

**پوه سه:** چي د "کلما" څخه تر دې ځایه پوري جمله شرطیه ده او دا جمله شرطیه صفت د "رسلاً" ده او عائد یې محذوف دی یعني "منهم" او مقتولین د یهودانو یحی او زکریاء علیهما السلام وه.

**پوښتنه:** په "یقتلون" کي یې ولي مضارع لفظ راوړی او سره ددې چي دا قتل خو هم ماضي و، نو ځای خو د "قتلوا" و؟

**ځواب:** په نحو کي وایي چي په ماضي کي چي یو امر هائل خوفناکه پېښ سوی وي، نو اهل عربیت ای لسان العرب یې په مضارع سره راوړي لپاره د حاضرېولو د هغه حالت هائله وسامعانو د عصر حاضر لکه دلته قتل د نبیانو چي امر هائل له یهودانو څخه په ماضي کي کړه سوی و، او بل ځواب دادی چي دا مستقبل لفظ پر دې تنبیه ده چي دا قتل د نبي ددوی عادت و ماضیاً ومستقبلاً حتی چي دوی په قصد کي د قتل د عیسی علیه السلام وه خو خدای ﷻ اسمانو ته ځني بوتلی او په صدد کي قتل د علیه الصلوة والسلام هم وه په څو واره سره حتی عصمه الله منهم او بل ځواب دادی چي لپاره د موافقت د رؤس الآیات یعني د اخیر د آیتو یعني

قوله تعالی ولا یخرجون وفریقاً یقتلون" یې مستقبل عبارت ووایه یعني "وفریقا کذبتم" لکه سائل چي وویل، نو رؤس الآیات نه سره برابر بدل وتلک الموافقة امرمهم في القرآن المجید والفرقان العزیز کما لایخفی علی من طالع القرآن.

وَحَسِبُوٓا۟ أَلَّا تَكُونَ فِتْنَةٌ فَعَمُوا۟ وَصَمُّوا۟

او د بني اسرائیلو دا گمان و چي نه به سي موجوده عذاب او بلاء په وژلو سره د انبیاء، نو دوی ړانده وه د خپل دین او د دلائلو د قدرت د خدای ﷻ، او دوی کانه وه له اورېدلو څخه د نصیحت د ناصحانو یعني وروسته تر موسی علیه السلام.

**پوه سه:** چي کلمه د "ان" مصدریه ده او "کان" تامه دی او فاعل یې "فتنة" دی.

ثُمَّ تَابَ ٱللَّهُ عَلَيْهِمْ ثُمَّ عَمُوا۟ وَصَمُّوا۟ كَثِيرٌ مِّنْهُمْ ۚ وَٱللَّهُ بَصِيرٌۢ بِمَا يَعْمَلُونَ ﴿٧١﴾

نو بیا چي دوی وکښل خدای یې توبه قبوله کړه بیا دوی ړانده او کانه سوه ډېر له دوی څخه وروسته تر عیسی علیه السلام یعني په کفر سره د محمد ﷺ، او خدای خبر دی په عمل ددوی یعني فیجازي هم علی حسب اعمالهم "کثیر منهم" دا بدل دی له ضمیر څخه د "عموا" او یا "کثیر" فاعل دی د "عموا" والواو فیه علامة الجمع فقط.

لَقَدْ كَفَرَ ٱلَّذِينَ قَالُوٓا۟ إِنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلْمَسِيحُ ٱبْنُ مَرْيَمَ ۖ

لام موطئه د قسم محذوف دی ای والله کافران گرځېدلي دي هغه کسان یعني له نصاری وو څخه چي وایي په تحقیق سره خدای دی مسیح بن مریم، مسیح د عیسی علیه السلام لقب دی.

**پوه سه:** چي دا آیت په نصاری وو کي د نجران نازل سوی دی، چي یو د سید په نامه و او بل د عاقب په نامه و او نور ډېر گڼ شمېر نصاری ورسره چي مدینې منورې د بحث لپاره د علیه الصلوة والسلام سره په باره کي د عیسی ورغلي وه بعض مفسرین وایي چي دا ډله د یعقوبیه په نامه یادېدل، بعض وایي چي الملکانیه یې بلل، ددوی مذهب دا و چي خدای پاک داخل سوی دی په بدن کي د عیسی او خدای او عیسی سره یو شی سوله تعالی الله عن ذالک علواً کبیراً، نو خدای ﷻ رد الزامي وکړی په خپله په قول د عیسی علیه السلام بقوله.

وَقَالَ الْمَسِيحُ يَٰبَنِيٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ٱعْبُدُوا۟ ٱللَّهَ رَبِّى وَرَبَّكُمْ

يعني دوی خو د عيسى د خدايي دعوه کوي او حال دادی چي مسيح عليه السلام په خپله په خطاب کي وبني اسرائيلو ته داسي وويل ای بني اسرائيلو عبادت د خدای کوئ چي هم زما رب دی او هم ستاسي رب دی. يعني په خپله يې ځان بنده وباله د خدای جل جلاله لکه بني اسرائيل او خدای يې خالق د خپل ځان او بني اسرائيلو وباله. يعني تاسي نصاری د نجران څرنگه عيسى خدای بولئ او هغه په خپله د بندگی دعوه کوي.

إِنَّهُۥ مَن يُشْرِكْ بِٱللَّهِ فَقَدْ حَرَّمَ ٱللَّهُ عَلَيْهِ ٱلْجَنَّةَ وَمَأْوَىٰهُ ٱلنَّارُ ۖ وَمَا لِلظَّٰلِمِينَ مِنْ أَنصَارٍ ﴿٧٢﴾

دا هم د عيسى مقوله ده وبني اسرائيلو ته، په تحقيق شان دادی چي هغه څوک چي شرک وکړي په خدای يعني خدای جل جلاله ته شريک ووايي يا په ذات کي يا په صفاتو کي او يا په افعالو کي چي مختص په خدای جل جلاله پوري وي کالخلق والايجاد والترزيق والاحياء والاماتة وغير ذالک، نو په تحقيق حرام گرځولی پر هغه باندي جنت، ولي چي جنت خو ځای د مؤمنانو دی او دا سړی خو مشرک دی او ځای د ورتگ دده به اور وي يعني په ورځ د قيامت، ولي چي دوږخ ځای د قرار دی د مشرکانو او د نورو کافرانو، او نشته ظالمانو لره يعني کافرانو لره کومکيان يعني چي له خدايه دی په زوره خلاص کړي.

**يوه سه**: چي کلمه د من لپاره د استغراق د نفي ده.

**فائده**: عيسى عليه السلام چي اقرار وکړی چي خدای شريک نه قبولوي او نه يې لري، نو اتحاد د مخلوقه سره چي عيسى دی څرنگه به متصور او ممکن وي لکه يعقوبيه چي وايي کمامر.

**درويش وايي**: چي اوس خدای پاک حال د نسطوريه وو او د ملکانيه وو د نصاری بيانوي.

لَقَدْ كَفَرَ الَّذِينَ قَالُوا إِنَّ اللَّهَ ثَالِثُ ثَلَاثَةٍ ۘ وَمَا مِنْ إِلَٰهٍ إِلَّا إِلَٰهٌ وَاحِدٌ

په تحقیق کافران دي هغه کسان چي وايي چي خدای يو له دوو خدايانو څخه دی، یعني خدايي د دغو درو کسانو سره شريکه ده يعني الله و عیسی و مریم، او حال دادی چي نشته مستحق د الوهيت او د وجوب الوجود مگر نه يو خدای چي الله ﷻ دی.

**پوهنه**: چي کلمه د "من" زائده ده لپاره د استغراق د نفي کما تقرر في كتب النحو، او "اله" مرفوع محلاً دی چي اسم د "ما" دی او خبر يې محذوف دی ای في الوجود والامكان يعني نشته مستحق د عبادت، او خالق د ټولو مخلوقاتو مگر يو الله ﷻ.

وَإِن لَّمْ يَنتَهُوا عَمَّا يَقُولُونَ لَيَمَسَّنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٧٣﴾

او كه چيري منع سي دوی له هغو څخه چي دوی يې کوي من کلمات الشرک هر آئینه به ورسیږي هغه کسانو ته چي کافران دي په دوی کي عذاب يعني د اور چي دردناکه دی.

**پوهنه**: چي کلمه د "من" په منهم کي يا لپاره د بيان ده، او بعض مفسران وايي چي لپاره د تبعيض ده، دوی وايي چي دائمين پر کفر بعض د دوی وه.

أَفَلَا يَتُوبُونَ إِلَى اللَّهِ وَيَسْتَغْفِرُونَهُ ۚ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٧٤﴾

آيا دوی توبه نه کاږي له شرکه څخه.

**پوهنه**: چي هر ځای چي په قرآن مبارک کي وروسته تر همزه د استفهام حرف عطف راسي كه واو وي او كه فا وي پر ماقبل د همزه خو نه سي عطف كېدای لفوات صدارة الكلام في همزة الاستفهام فيقدر بين الهمزة وحرف العطف ما يناسب المقام مثلاً يقدر في هذا المقام ای ايدمون على الكفر فلايتوبون، او همزه د استفهام لپاره د انکار ده واقع دی او استبعاد نه د هغه لا لانكار الوقوع، ولي چي وقوع خو متحقق وه په دې عبارت د لولا د دوی باعشه کول دي پر توبه، والمعنى آيا دوی همیشه توب کوي پر کفر او پر عدم د توبې و خدای ته د کفر او د

دغو اقاویل باطله وو څخه خپل او طلب د بخښنې نه کوي د خدای ﷻ او خدای غفور او رحیم دی، نو که دوی طلب د بخښنې وروسته تر توبې وکړي خدای پاک به یې توبه قبوله او بخښنې به ورته وکړي او زائد رحم به هم پر وکړي.

**مَا الْمَسِيحُ ابْنُ مَرْيَمَ إِلَّا رَسُولٌ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ**

نه دی مسیح بن مریم مګر نه رسول، نه د ته الوهیة بالاستقلال سته لکه چې د نصارو یعقوبیه وایي او نه په الوهیت کې د خدای سره شراکت لکه نسطوریه او ملکانیه چې وایي چې خدای ثالث ثلاثه دی خذلهم الله انی یؤفکون. او تر مسیح دمخه نور رسلان هم راغلي دي یعنې لکه نور رسلان چې خپل وظیفه د رسالت یې وړای ته ورسول، نو د عدم څپه پر راغله له دنیا څخه ولاړل، دا عیسی ﷺ هم رسول دی د مرګ څپه به پر راځي. البته خدای ﷻ ده ته لوی لوی معجزې ورکړي دي د یهودانو د مقابلې لپاره لکه مړي ژوندي کول دده په دعاء سره او مور زاده ړوند دده په دعاء بینا ګرځیدی او مور زاده کوڼ دده په دعاء سره اورېدونکی ګرځیدی الی غیر ذالک دغه کارونه چې خدای ﷻ به کولای چونکه په عیسی کې موجود سوه نو عیسایان یعنې نصاری په دغه خطاوتل وقالوا ماقالوا او دوی دا فکر نه کاوه چې دا معجزاتې له طرفه د خدای وده ته ورکړه سوي وې، داغسې معجزې نورو انبیاؤ ته هم ورکړه سوي لکه د وچې لکړه ژوندی مار کېدل داخو تر احیاء الموتی اعجب معجزه وه، او دغه رنګه شق القمر چې د علیه الصلوة والسلام معجزه اغرب وه وهکذا، غرض دادی چې د معجزاتو عجیبه وو په سبب خو څوک نه سي خدای کېدای.

**وَأُمُّهُ صِدِّيقَةٌ**

او مور د مسیح لکه نوري ښځې وه که څه هم تر نورو ښځو په سبب د غایت صدق ددې او تصدیق د انبیاء علیهم السلام یې کاوه کما ینبغي.

**كَانَا يَأْكُلَانِ الطَّعَامَ**

او عیسی و مور دواړو ډوډی وغیره من الماکولات خوړله، نو دوی هم وغذا او

خوراک ته محتاجه وه. والمحتاج في شئ لايكون الهاً خصوصاً الى الماكولات لتغذية الجسم لان الآكل لايكون جسم. والدلائل العقلية في هذا الباب كثيرة.

**اُنْظُرْ كَيْفَ نُبَيِّنُ لَهُمُ الْاٰيٰتِ ثُمَّ انْظُرْ اَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ﴿۷۵﴾**

وګوره يا محمد څرنګه موږ بيانه و دوی ته دلائل د حقيت د توحيد او د حقيت د دين د اسلام او بيا وګوره چي سره بيان د آياتو پر کومه خوا دوی مصروف د استماعت څخه د حق وشرک ته چي عيسی او مور دده د خدای شريکان دي.

**قُلْ اَتَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا وَّلَا نَفْعًا ؕ**

ته ورته ووايه يعني نصاری وو ته چي آيا تاسي عبادت کوئ د هغه چا يعني عيسی دی چي هغه نه دی مالک د ضرر چي تاسي ته دي ورسوي عند عدم العبادة له، او نه د نفع رسولو چي تاسي يې عبادت وکړئ، ولي چي افعال د عيسی عليه السلام تول له مخلوق د خدای لکه د نورو بندګانو، نو په حقيقت کي عيسی د هيڅ شي مالک نه دی.

**وَاللّٰهُ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ﴿۷۶﴾**

او خدای جل جلاله عالم دی په اقوالو د هر چا او پر اعمالو د هرچا.

**يوه سه:** چي "هو" ضمير فصل دی لپاره د فصل او حصر د تولو شيانو د علم په خدای پاک کي.

**پوښتنه:** مشهوره خو داده چي "من" په ذوی العقول کي مستعمليږي او "ما" په غير ذوی العقول کي استعماليږي. نو څرنګه يې د عيسی عليه السلام په باره کي "ما" ذکر سو؟

**ځواب:** د نحوي محققين لکه جامي رحمه الله وايي چي کلمه د "ما" عامه ده لذوی العقول وغيرهم کما في قوله تعالی "والسماء وما بناها الآية" على تقدير انيكون المراد بما بناها هو الله. دوهم ځواب دادی چي عيسی عليه السلام په وخت کي د حمل په هيڅ شي سره علم نه درلودی.

قُلْ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ لَا تَغْلُوْا فِيْ دِيْنِكُمْ غَيْرَ الْحَقِّ

ته ورته ووايه اې محمد چې اې اهل كتابو تاسي غلو يعني تجاوز تر حد مه كوئ په خپل دين كي غير الحق ته.

**بوه سه:** چي بعض مفسران وايي چي په دې آيت كي مخاطب يهود او نصارى دواړه دي، نو د غلو معنى داده چي په باره كي د عيسى افراط او تفريط بلكي توسط بين الافراط غوره كړې والتوسط في حقه هو انه عبد الله ورسوله. لكن يهودانو په حق كي د عيسى عليه السلام تفريط مختاره كړى چي دده له رسالت څخه منكره سوه او دى يې ولد الزنى وباله او دده مور مريم يې په زنى متهمه كړه، او نصارى وو لاره د افراط په حق كي د عيسى مختاره كړه چي دى يې اله وباله، كما مذهب اليعقوبية او يا يې خداى ثالث ثلاثه وباله. يعني خداى او عيسى او دده مور دري سره خدايان دي كما هو مذهب النسطورية والملكانية من النصارى وقد مربيانه. او بعض مفسران وايي چي خطاب و نصارى وو ته دى بقرينة السياق او غلو د هغه وه چي آنفاً ذكر سوه.

**فائده:** غير الحق منصوب دى چي مفعول مطلق د تغلوا دى والتقدير غلوا باطلاً غير الحق.

**فائده:** غير الحق صرف لپاره د تاكيد دى والا فالغلوا لا يكون الا غير الحق كما هو ظاهر.

وَلَا تَتَّبِعُوْٓا اَهْوَآءَ قَوْمٍ قَدْ ضَلُّوْا مِنْ قَبْلُ وَ اَضَلُّوْا كَثِيْرًا وَّضَلُّوْا عَنْ سَوَآءِ السَّبِيْلِ ﴿۷۷﴾

او تاسي متابعت مه كوئ د خواهشاتو باطله وو د هغه قوم چي گمراهان سوي وه په دمخه وخت كي چي ددوى اسلاف وه دمخه تر بعثة النبي ﷺ او ډېر خلگ يې نور هم گمراهان كړه. يعني تابعان ددوى په كفر او ضلال كي او دوى گمراهان سوه وروسته تر بعثت د عليه الصلوة والسلام له لارې حقي مستوي څخه چي دين د اسلام دى، او د عليه الصلوة والسلام تكذيب يې وكړى او سره ددې چي

حقيت د دين اسلام اظهر دی من الشمس في السماء الرابعة بالمعجزات الباهرة المتواترة الباقية کر الازمان ومر الدهور کالقرآن العظيم الشان.

**لُعِنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ عَلٰى لِسَانِ دَاوٗدَ**

ملعون کړه سوه يعني لېري کړه سوه له رحمت عامه څخه د خدای هغه کسان چي کافران دي حال کونهم من اسرائيل، پر ژبه د داوٗد عليه السلام، چي هغه د ايله اوسېدونکي وه چي ښکار د ماهيانو يې په حيله کاوه په ورځ کي د شنبې چي دوی ځني منع وه د عبادت لپاره. نو داوٗد عليه السلام وويل اللهم العنهم واجعلهم آية" ومثلاً لخلقک نو دوی مسخ سوه او بيزوگان ځني جوړ سوه، او درې ورځي وروسته ټول مړه سوه لان الممسوخ لايتناسل.

**وَعِيْسَى ابْنِ مَرْيَمَ**

او پر ژبه د عيسی عليه السلام بحذف المضاف ای لفظ لسان چي مراد ځني اصحاب د مائده اسماني وه چي پر مائده اسماني يې ايمان نه راوړی، نو عيسی عليه السلام وويل اللهم العن عم واجعلهم آية" نو هغه مسخ او سرکوزان ځني جوړ سوه.

**درويش وابي:** چي دا دواړي قصې وړاندي په دې تفسير کي تېري سوي دي.

**ذٰلِكَ بِمَا عَصَوْا وَّكَانُوْا يَعْتَدُوْنَ ۝ كَانُوْا لَا يَتَنَاهَوْنَ عَنْ مُّنْكَرٍ فَعَلُوْهُ**

دغه لعن په سبب د عصيان ددوی و او ددوی عادت دا و چي تر حدود د خدای يې تجاوز کاوه. دوی داسي وه چي يو بل به يې نه منع کاوه له منکر شرعي څخه چي هغو به کاوه، ولي چي جرم د هغو کسانو چي منکر فعل کوي او د هغو کسانو چي منکر خو نه کوي لکن بل نه ځني منع کوي سره برابر دی يعني که عذاب الهي مسلط سي دواړې دلې به هلاکېږي، په حديث شريف کي چي روايت يې اصحاب د سنن اربعه وو کړی دی له ابو بکر صديق رضي الله عنه څخه ده وويل چي ما له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه واورېدل چي ويل يې "ان الناس اذا رؤا الظالم فلم ياخذوا على يديه اوشک ان يعمهم الله بعقاب" يعني خلگ وويني ظالم يا متعارف ظالم او يا هر صاحب کبيره، دوهمه توجيه اولی ده په سبب د عموم نو دوی ونه نيوی ظالم تر لاسو.

**یوه سه:** چي مراد له لاسو نیولو څخه نهي عن المنکر دی که په خوله وي او که په لاس، والله اعلم بمراد رسوله ﷺ، نو قرینه ده چي دوی عام کړي په عقاب سره.

لَبِئْسَ مَا كَانُوا يَفْعَلُونَ ﴿٧٩﴾

هر آئینه بد دی دغه کار چي دوی یې فعل کاوه یعني عدم النهي عن المنکر، روی عن عبد الرحمن بن مسعود رضي الله عنه ده وویل چي علیه الصلوة والسلام وویل چي تر تاسي دمخه په بني اسرائیلو کي دا عادت و چي یو سړي به گناه وکړه یو نهي کونکي به منع کړی لپاره د تعذیر یعن منت به یې وکړی "فاذا کانوا من الغد" چي بله ورځ چي به سوه بیا به منع کونکي کسان او گناه کونکي خلگ پر یوه خوړو او اوبو سره ناست وه "حتی کان لم یره علی الخطیئة بالامس" حتی چي دوی گویا نه ولیدلی پر گناه پرونډ "فلماء رایٔ الله تبارک وتعالی ذالک منهم ضرب قلوب بعضهم علی بعض وجعل منهم القردة والخنازیر ولعنهم علی لسان داؤد وعیسی بن مریم ذالک بما عصوا وکانوا یعتدون انتهی الحدیث باختصار رواه البغوي والترمذي وابو داؤد من حدیث عبدالله بن مسعود رضي الله عنه مرفوعاً.

تَرَىٰ كَثِيرًا مِّنْهُمْ يَتَوَلَّوْنَ الَّذِينَ كَفَرُوا

ته وینې اې محمد علیه السلام ډېر کسان له یهودانو څخه یعني کعب بن الاشرف واصحابه. چي دوی موالات دوستي محبت کوي د هغو کسانو سره چي کافران دي یعني د مکې مشرکین، ولې چي کعب بن الاشرف سره د اوویا کسانو مکې ته تللی و او د ابو سفیان څخه یې فوج کشي پر علیه الصلوة والسلام طلب کړې وه او خپل د کومک وعده یې هم ورسره کړې وه.

لَبِئْسَ مَا قَدَّمَتْ لَهُمْ أَنفُسُهُمْ أَن سَخِطَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ وَفِي الْعَذَابِ هُمْ خَالِدُونَ ﴿٨٠﴾

ای بد دی شیئاً چي دوی لره خپلو نفسو دمخه واستاوه یعني قیامت ته یعني په قیامت به دغه شی پر دوی رد سي او عذاب به یې ووینې او په عذاب کي به دوی همېشه پاته وي.

**پوه سه**: چي "ان سخط الله" مخصوص بالذم دی بتقدیر المضاف ای موجب سخط الله والخلود في العذاب.

**فائده**: د مضاف د تقدیر سبب دا دی چي نفس سخط چي مضاف سي و خدای پاک ته هغه ته خو مخصوص بالذم نه ویل کېږي، بلکې مخصوص بالذم خو هغه اسباب دي چي موجب د سخط الله وي.

وَلَوْ كَانُوا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالنَّبِيِّ وَمَا أُنزِلَ إِلَيْهِ مَا اتَّخَذُوهُمْ أَوْلِيَاءَ وَلَٰكِنَّ كَثِيرًا مِّنْهُمْ فَاسِقُونَ ﴿٨١﴾

که وای دغه یهودان ایمان یې درلودلای پر خدای او پر نبي یعني نبي ددوی چي موسی علیه السلام و، او پر هغه کتاب چي ددوی نبي ته نازل سوی و یعني التورات، یعني نه به وای گرځولي یهودانو کفار د مکې خپل دوستان او پر جنګ د علیه الصلوة والسلام به یې نه وای باعثه کړي ولي چي تپوله کتب سماویه له موالاتو څخه د مؤمنانو د مشرکینو سره منع کوي، لکن ډېر له یهودانو وتلي دي له امتثال څخه د اوامر الهیه وو.

لَتَجِدَنَّ أَشَدَّ النَّاسِ عَدَاوَةً لِّلَّذِينَ آمَنُوا الْيَهُودَ وَالَّذِينَ أَشْرَكُوا

اې محمده ﷺ ته به پیدا کوې سخت ترین د خلګو از روی عداوت د هغه کسانو سره چي ایمان یې راوړی دی او هغه کسان چي مشرکان دي یعني مشرکوا العرب.

**پوه سه**: چي د "لتجدن" فاعل خو علیه الصلوة والسلام دی او "اشد الناس" مفعول اول دی د "لتجدن" او "عداوة" تمییز دی او "للذین آمنوا" متعلق دی په "عداوة" پوري او "الیهود" مفعول ثاني دی د "لتجدن" او "والذین اشرکوا" پر عطف دی.

وَلَتَجِدَنَّ أَقْرَبَهُم مَّوَدَّةً لِّلَّذِينَ آمَنُوا الَّذِينَ قَالُوا إِنَّا نَصَارَىٰ

او ته به پیدا کوې نږدې د خلګو په محبت کې د هغو کسانو چي ایمان یې راوړی وو، یعني الامة المحمدیة هغه کسان چي وایي موږ نصاری یو.

**درویش وایي**: چي اعراب ددې آیت داسي لکه د آیت اولی چي عنقریب تېر سو

**فائده:** هرچه عداوت د یهودانو او مشرکانو دی هغه له دې سببه دی چې دوارې ډلې ډېرې حریصې دي پر دنیا او جاه وجلال او ریاست، او حرص پر دغو شیانو معدن د افعال ذمیمه وو دی، او هر څوک چې پر دغو شیانو حرص لري هغه دین په طلب کې ددغو شیانو تر شا غورځوي، او په طلب کې ددغو شیانو د هیڅ ناجائز او منکر کار څخه ځان نه ژغوري، نو له دې کبله دوس سخت دښمنان دي د هغه کسانو چې هغه یا مال پیدا کړي او یا جاه لکه مسلمانان په عصر نبوي کې وروسته تر هجرت چې په جهاد سره مامور سوه.

ذٰلِكَ بِأَنَّ مِنْهُمْ قِسِّيسِينَ وَرُهْبَانًا

"ذالک" ای قرب مودة النصاری للذین آمنوا، په سبب ددې دی چې بعض له نصاری وو څخه.

"قسیسین ورهباناً" بغوي رحمه الله وایي چې قس او قسیس عالم متبحر ته وایي په لغت کې د رومیانو، او صاحب صحاح وایي چې قسیس عالم عابد ته وایي له رئیسانو څخه د نصاری وو، او صاحب قاموس وایي هو رئیس النصاری في العلم او اصل معنی د قس مثلثة الفاء تلاش ته د شي وایي په شپه کې کانهم سموا بذالک لان العلماء والعباد یطلبون العلم والتوجه الی الله تعالی باللیل ای في ظلمات اللیالي.

**پوه سه:** چې "رهباناً" جمع د راهب ده لکه رکبان جمع د راکب، دا هغه عابدان دي چې په گرجا (چرچ) کې چې صوامع یې بولي ناست وي لپاره د عبادت لکه زموږ په دین کې زاهدان چې په خلوت خانو کې ناست وي.

وَأَنَّهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ ﴿٨٢﴾

او بل دلیل د قرب محبت دادی چې دوی کبر نه لري له قبول څخه د حق چې دوی ته دعوت ورکړه سي او تواضع لري او کبر نه لري لکه یهودان.

**پوه سه:** چې اهل تفاسیر وایي چې قریشو د مکې پر دې مشوره وکړه چې د هرې قبیلې سرې چې مسلمان وي، خپل قبیلې والا دې ازاروي او عذابونه دې ورکوي تر

خو چي دين د محمد ﷺ پر پرېږدي، خير قريشو په دې كار لاس پورې كړى هري قبيلې به خپل مسلمان واهه او تكاوه گاهي به يې سر ورمات كړى، او ذات اكرم د رسول الله ﷺ له دې فتنې څخه خلاص و په سبب د ابو طالب چي د بني هاشم د قوم مشر و، نو عليه الصلوة والسلام چي خپل د اصحاب، حال وليدى او په منع د كفارو هم نه و قادر او د جهاد امر هم نه و ورته سوى، نو خپل اصحاب يې امر كړه په هجرت الى ارض الحبشة، او دا يې وويل چي په حبشه كي يو ملك يعني پادشاه سته صالح چي نه پر چا ظلم كوي او دده په ملك كي هيڅ څوك پر هيڅ چا ظلم نه سي كولاى، او دين د هر ملت پكښې ازاد دى او دى په خپله نصارى دى، فاخرجوا اليه حتى يجعل الله للمسلمين فرجاً او د عليه الصلوة والسلام مالك صالح سره د حبشه نجاشي مراد وچي اصلي نوم يې اصحمة و چي د صحمة معنى ددوى په ژبه عطية الله وه او نجاشي دوى هر پاچا ته ويل لكه روميان چي هر پاچا قيصر بولي او پارسيان هر پاچا كسرى او تركان هر پاچا خاقان بولي، نو په پټه يوولس كسه نر او څلور ښځي چي تو له پټخلس كېږي ودې هجرت ته اماده سوه چي نومان يې دادي عثمان بن عفان او دده كور والا رقيه بنت رسول الله ﷺ، زبير بن العوام، عبد الله بن مسعود، عبد الرحمن بن عوف، ابو حذيفه وزوجته سهله بنت سهل، مصعب بن عمير، ابو سلمة بن عبد الاسد وزوجته ام سلمه بنت اميه، عثمان بن مظعون، عامر بن ربيعه وزوجته ليلى بنت ابي حشمه وحاطب بن عمرو، سهيل بن بيضا رضي الله تعالى عنهم وعنهن اجمعين، نو ورغله درياب ته او كښتى يې كرايه كړه په نيم دينار في نفر تر حبشه پورې، د رجب مياشت وه پنځم كال د نبوت د عليه الصلوة والسلام و، وهذه الهجرة الاولى، وروسته جعفر بن ابي طالب هم پسې ولاړى، نورو مسلمانانو دې هجرت ته دوام وركړى حتى چي په حبشه كي دوه اتيا كسه له نرانو څخه د مسلمانانو جمع سوه بېله ښځو او كوچنيانو، قريش چي په دې موضوع خبر سوه نو عمرو بن العاص او يو بل ملگرى د هغه سره هدايا د نجاشي او دده د ملايانو په نامه واستول لكن نجاشي دا هدايانه كړې قبولي، ولي دوى ورته ويل چي دا تو له مسلمانان لاس بسته موږ ته په لاس راكړه، او نجاشي د داسي ظلم سره عادت نه درلودى،

**درویش وايي:** چې ددې موضوع پوره قصه په تفسير کې د سورة آل عمران تېره سوه في تفسير قوله تعالی "ان اولی الناس بابراهيم الذين اتبعوه وهذا النبيﷺ" نو مسلمانانو په حبشه کې ډېر ښه ژوند تېراوه او خپل دين يې ازادانه کاوه.

**يوه سه:** چې د حبشې د هجرت پر وخت بعض مسلمانانو چې په مکه مکرمه کې ژوند پر سخت و په اجازه د عليه الصلوة والسلام يې هجرت مدينې منورې ته وکړی چې هورې انصار موجود وه چې په هغه وخت کې چې عليه الصلوة والسلام په مکه کې و، نو دوی به انفراداً او اجتماعاً راتله مکې ته او پر عليه الصلوة والسلام به يې ايمان راوړی، نو هغو انصارو د مدينې د مهاجرينو سره ډېري په زړه پوري مرستي کولې، اخيراً عليه الصلوة والسلام د ابوبکر رضي الله عنه سره مدينې ته هجرت وکړی، او اسلام ډېر لوړ سو او د جهاد اجازت هم حاصل سو، نو عليه الصلوة والسلام ونجاشي ته مکتوب نوشته کړی چې ام حبيبه چې د ابو سفيان لور وه چې هغې د مېړه سره حبشې ته هجرت کړی و او مېړه يې وفات سوی و په حبشه کې ماته يې په نکاح راوغواړه زما د خوا ته د نکاح وکيل يې، او دا خط يې د عمرو بن اميه په لاس ورکړی په سنه ٦ هـ کې د هجرت، نو نجاشي ته چې مکتوب د عليه الصلوة والسلام ورسېدی، نو نجاشي خپله مينځه چې ابرهه يې نوم و ام حبيبه ته واستول چې ستا د تزوج مرکه عليه الصلوة والسلام ماته مکتوب را استولی دی ته څه وايې، او نجاشي د خپلې مينځې په لاس څه زيورات وغيره ورکړه چې دا په خوشحاله سې او دې نکاح ته غاړه کښېږدې، نو ام حبيبې رضي الله عنها خالد بن سعيد رضي الله عنه وکيل کړی چې زما نکاح په څلور سوه ديناره د عليه الصلوة والسلام سره راوتړه، نو نکاح د عليه الصلوة والسلام چې وکيل يې نجاشي و او د ام حبيبه له خوا خالد بن سعيد رضي الله عنه و تر منځ منعقده سوه، نو نجاشي بالفور څلور سوه ديناره د خپلې مينځې ابرهه په لاس ورکړه، ام حبيبه ته يې ورسول، ابرهه چې هغه څلور سوه دينار ام حبيبې رضي الله عنها ته ورکړه، نو ام حبيبې پنځوس ديناره د انعام په ډول ابرهه ته ورکړه ابرهه بيرته ور رد کړه او وه يې ويل چې زمونږ ملک نجاشي امر کړی يم چې فهم کوه چې شی څني وانه خلې، او ابرهه وويل چې پر ما پېسې لږ نه دي، ولې چې جوړونکې د روغنو د سر غوړېدلو د

ملک یم، او ابرهه ورته وویل چې زما تصدیق دی چې محمد ﷺ د خدای ﷻ رسول دی او ما ایمان هم پر راوړی دی او زما تاته دا وصیت دی چې ته هر وخت د علیه الصلوة والسلام سره یو ځای سوې زما سلام به ورته ووایه، ام حبیبې ﷺ ورته وویل نعم. او نجاشي ځېلو ښځو ته وویل چې څه مشک او عنبر او نور څه تحفې چې ددوی سره وي ام حبیبې ﷺ زوجة النبي ته یې ورواستوئ، او راوي وایي چې زیورات او مشک وعنبر به په وخت کي د اجتماع د ام حبیبې ﷺ او د علیه الصلوة والسلام ده مبارک لیدله لکن انکار یې نه پر کاوه، ام حبیبه ﷺ وایي چې موږ له حبشې څخه د مدینې پر خوا حرکت وکړی په دریاب کي او علیه الصلوة والسلام ته چې موږ ورسېدلو په جنګ کي د خیبر و. نو موږ چې په یوه کېښتی کي و ناریه تولـه خیبر ته ولاړه او زه پخپله مدینې ته ولاړم حتی چې علیه الصلوة والسلام مدینې ته راستون سو او زه ورغلم او د ابرهه مینځي سلام مي ور ورساوه، نو علیه الصلوة والسلام یې په وعلیک سره جواب ورکړی. نو دا آیت هم نازل سو "عسی الله ان یجعل بینکم وبین من عادیتم منهم" یعني ابو سفیان مودة یعني په سبب د تزویج د ام حبیبه. لکن ابو سفیان چې د خپل لور په نکاح خبر سو، یوه ډېره ناوړه خبره یې وکړه چې نقل یې نازیبا دی. راوي وایي چې په وخت کي د قدوم د جعفر بن ابي طالب یعني د علیه الصلوة والسلام وخواته چې راهي کېدی نجاشي دا خط و علیه الصلوة والسلام ته نوشته کړی او دجعفر په لاس یې ورکړی. یا رسول الله اشهد انک رسول الله صادقاً مصدقاً وقد بایعتک. یعني غیابا وبایعت ابن عمک یعني جعفر واسلمت لله رب العالمین وقد بعثت بابني ارها وانت ان شئت ان آتیک بنفسي فعلت. والسلام علیک یا رسول الله، نو د نجاشي زوی په کېښتی کي سپور سو، وروسته تر جعفر واصحابه ﷺ حتی چې د نجاشي د زوی کېښتی د دریاب منځ ته ورسېدل غرقه سوه، هر څو کسان چې پکښې وه شهیدان سوه، او جعفر و اصحابه ﷺ و علیه الصلوة والسلام ته ورسېدل. اوویا کسه چې ګردو د وریو کالي اغوستي وه دوه شپېته کسان د حبشې وه او اته کسان د شام وه. نو علیه الصلوة والسلام پر دوی سورة یٰس تلاوت کړی فبکوا حین سمعوا القرآن او دوی وویل چې څه عجب مشابه دی

دا قرآن د ما انزل الله علی عیسی علیه السلام، وآمنوا فانزل هذه الآیة "ولتجدن اقربهم مودة" نو مراد په دې آیت کې وفد د نجاشي دی چې د جعفر رضي الله عنه سره راغلي وه او یا کسه چې اصحاب الصوامع وه.

**درویش وایي**: چې دا سوال په عوامو او خواصو کې همیشه مطرح دی چې نصارې په عداوت کې تر یهودانو کم نه دي، بلکې درویش وایي چې په اوسنۍ زمانه کې تر یهودانو بالا دي، ولې چې مسلمانان عموماً په بمباریو وژني او بندیان کوي یې مساجد یې خرابوي په بمباریو نر اوښځې او کوچنیان حتی شیر خواره کوچنیان په بمباریو کې ددوی په اسلامي مملکتو کې او قرآن شریفان سوځل کېږي او د مسلمانانو باغونه او کورونه په بمباریو ور اوا روي، چې قوي حکومت د مسلمانانو چې عراق و په بهانه ددې چې په دې کې مواد جوهري دي او ایتم بم لري اول خو یې بار بار تلاشي وکړه شی یې نه کړی پیدا اخیر یې په ډېره بې رحمۍ سره حمله پر وکړه او ښځې، کوچنیان، مسجدونه او مدرسې یې په بمباریو ویراني کړې، او پښه کاله کېږي چې د امریکایانو او انګریزانو چې ټوله نصارې دي ظلم روان دی، او د ټېلو چیني او څاهان یې ټوله تر قبضه لاندې راوستل، سنیان، شیعه ګان او کردان یې ټوله په جنګ سره واچول، او په نامه بین الملل کمېټۍ له بېرې څخه څه نه سي ورت ویلای، او کوفي عنان هم ږغ نه سي ورته کولای، نو دا نصارې څرنګه اقرب مودةً دي.

او دا اوس امریکایانو چې نصارې دي په افغانستان کې چې خپل یو دست نشین په نامه د یو رئیس جمهور مقرر کړی دی او په حقیقت کې ریاست د افغانستان د امریکایانو په قبضه کې دی او د رئیس جمهور هیڅ په وسه نه ده صرف دادی چې پر چوکۍ د ریاست جمهوریه په خپله امریکایي په افغانستان کې نه سي کېنې نستلای چې دنیا وال ټوله دی محکوموي، دوی په خوله وایي چې موږ په افغانستان کې صلح راولو، د ېر لوی دروغ وایي په افغانستان کې کرار کرار انګریزي قوانین پیاده کول غواړي په افغانستان کې دې خلګ ددوی د پاشمول او پنجوایي حالات ملاحظه کړي چې خلګو د امریکایانو د بمباری له کبله خپل کورونه پرې ایښي دي ددوی باغونه یې ټوله د مځکې سره هموار کړه، دنیا وال که نه دي په خبر موږ خو ورنژدې یو په ټولو

حالاتو یې خبر یو آیا دا ددوی صلح را وستل دي!؟

حاصل دا دی چې ډېره زمانه دمخه د لندن نصاری وو عالمگیر سلطنت پر تو له دنیا کاوه حتی پر افغانستان په نامه د یو سامبولي بادشاه یې سلطنت کاوه، هغه سلطنت خو خدای ﷻ په خپل قدرت پای ته ورساوه چې ډېرو زیر دستو حکومتو د استقلال دعوې وکړې او ځانونه یې استقلال ته ورسول، اوس بیا امریکایانو چې هم نصاری دي هغه پلان په نړۍ کې پلی کول غواړي. نو داسي نصاری اوس څه رنګه اقرب مودة کېدای سي!؟

**ځواب**: امام بغوي رحمه الله چې لوی مفسر د قرآن عزیز دی وایي چې دا آیت په باره کې د تولو نصاری وو نه دی. بلکې د هغو نصاری وو په باره کې دی چې اسلام یې قبول کړی وي لکه نجاشي و اصحابه کما مر بیانه عنقریب، او یا مراد ځنې هغه نصاری دي چې دوی پر دین حقه د عیسی علیه السلام وه قبل مبعث النبي ﷺ او وصیت د عیسی علیه السلام یې په عمل سره ورساوه او انجیل یې په غوږ کې وا و منتظر وه ومصداق ته د هغه آیت د انجیل "ونبشرک بنبي یأتي من بعدي اسمه احمد" او دوی به همېشه مشغوله وه په علم او عمل سره او په انتظار د نبي مبشر به في الانجیل به وه کما سیأتي في تفسیر قوله تعالی واذا سمعوا ما انزل الآیة.

**درویش وایي**: چې بحمدالله تعالی وحسن توفیقه ایاى تفسیر د جزء قرآني لایحب الله الجهر آه د چهار شنبې د مازدیگر له راتلو سره پای ته ورسېدی د میاشتې د ذی القعدة الحرام شلمه نېټه وه او سنه ۱۴۲۷ هـ وه یعني په تخمیناً دوې میاشتې او دوې ورځو او دوې شپو کې.

**درویش وایي**: چې تبرکاً به ددې جزء تفسیر په یو مناجات سره د سیدنا زین العابدین بن علي بن حسین بن علي بن ابي طالب رضي الله عنه ختم کړم، دا مناجات غالباً مقبول عند قاضي الحاجات دي، زه به زور او زیر او پېښ ورکړم تاچې امیان یې هم ویلای سي، دا مناجات لپاره د مغفرت د ګنهو او د شفاعت د سید المرسلین لپاره د درویش په ظن تیر بهدف دي لان کلام السادات سادات الکلام.

چونکه دا مناجات په طور د وظیفې ویل کېږي او درویش په پښتو کې دومره بلیغ الفاظ چې د امام رحمه الله تو له مطلب دي پکښې اداء کړي په پښتو ژبه کې نه

درلوده، نو عربي عبارت مې را نقل کړی، نو که یې ملا یانو وظیفه کول هغه به یې غالباً په معنی هم پوهیږي او که امیان وظیفه کوي هغو ته د الفاظو ویل کافي دي، چونکه امام زین العابدین دا مناجات د شپې په وخت کې کړي دي، نو زمونږ لپاره یې هم بنه وخت شپه ده، امام اصمعي لغوي رحمه الله وایي چې ما په یو شپه کې چې سپوږمۍ پکښې ځلېدله طواف د بیت الله شریفې کاوه چې یو ځوان دی په رنګ ډېر ښائسته او په علم پوره په پردو پوري د کعبې مبارکې یې لاسونه نیولي دي او ده داسې ویل.

نَامَتِ الْعُیُوْنُ وَغَارَتِ النُّجُوْمُ وَاَنْتَ الْمَلِكُ الْحَيُّ الْقَیُّوْمُ
قَدْ غَلَّقَتِ الْمُلُوْكُ اَبْوَابَهَا وَاَقَامَتْ عَلَیْهَا حَرَسَهَا وَحُجَّابَهَا
وَ بَابُكَ مَفْتُوْحٌ لِلسَّائِلِیْنَ فَهَا اَ نَا مَا نَلُكَ بِبَابِكَ
مُذْنِبًا فَقِیْرًا مِسْکِیْنًا اَسِیْرًا جِئْتُ اَنْتَظِرُ رَحْمَتَكَ یَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِیْنَ

بیا یې دا څو خواږه له تاثیره ډک بیتونه وویل

یَا مَنْ یُجِیْبُ دُعَاءَ الْمُضْطَرِّ فِي الظُّلَمِ یَا کَاشِفَ الضُّرِّ وَالْبَلْوٰی مَعَ الْقَسَمِ
قَدْ نَامَ وَ فْدِيْ وَ انْتَبِهُوْا وَاَنْتَ یَا قَیُّوْمُ یَا حَيُّ لَمْ تَنَمْ
اَ دْعُوْكَ رَبِّيْ وَمَوْلَایَ وَمُسْتَنَدِيْ فَارْحَمْ بُکَائِيْ بِحَقِّ الْبَیْتِ وَالْحَرَمِ
اَنْتَ الْغَفُوْرُ فَجُدْلِيْ مِنْكَ بِمَغْفِرَةٍ اَوِ اعْفُ عَنِّيْ یَاذَا الْجُوْدِ وَالْکَرَمِ
اِنْ کَانَ عَفْوُكَ لَایَرْجُوْهُ ذُوْ جُرُمٍ فَمَنْ یَّجُوْدُ عَلَی الْعَاصِیْنَ بِالْکَرَمِ

وروسته امام زین العابدین رضي الله عنه د اسمان وخوا ته سر پورته کړی او داسې یې وویل

یَاالٰهِيْ وَسَیِّدِيْ مَوْلَایَ اِنْ اَطَعْتُكَ فَلَكَ الْمِنَّةُ عَلَيَّ، وَاِنْ عَصَیْتُكَ فَبِجَهْلِيْ فَلَكَ الْحُجَّةُ عَلَيَّ، اَللّٰهُمَّ فَبِاظْهَارِ مِنَّتِكَ عَلَيَّ وَاثْبَاتِ حُجَّتِكَ لَدَيَّ اِرْحَمْنِيْ وَاغْفِرْ ذُنُوْبِيْ وَلَاتَحْرِمْنِيْ رُؤْیَةَ جَدِّيْ قُرَّةُ عَیْنِيْ وَحَبِیْبِكَ وَصَفْوَتِكَ مُحَمَّدًا صلی الله علیه وسلم.

**پوه سه:** چې مراد له جد څخه علیه الصلوة والسلام و، او بیا زین العابدین رضي الله عنه دا بیتونه وویل

الاَ اَيُّهَا الْمَامُوْلُ فِيْ كُلِّ شِدَّةٍ اِلَيْكَ شَكَوْتُ الضُّرَّ فَارْحَمْ شِكَايَتِيْ

اَلاَيَارَجَائِيْ اَنْتَ كَاشِفُ كُرْبَتِيْ فَهَبْ لِيْ ذُنُوْبِيْ كُلَّهَا وَاقْضِ حَاجَتِيْ

فَزَادِيْ قَلِيْلٌ مَا اَرَاهُ مُبَلِّغِيْ عَلَى الزَّادِ اَبْكِىْ اَمْ لِبُعْدِيْ مَسَافَتِيْ

اَتَيْتُ بِاَعْمَالٍ قِبَاحٍ رَدِيَّةٍ وَمَالِيْ فِيْ الْوَرٰى خَلْقٌ جَنٰى كَجِنَايَتِيْ

اصمعي رحمه الله وايي چي دا ابيات يې څو وراه مكرر وويل باره پر مځكه غوځار سو او بې هوشه سو . اصمعي رحمه الله وايي زه ور نژدې سوم نو ومې پېژندی چې دا څو امام زين العابدين بن علي بن الحسين بن علي بن ابي طالب دی، نو ما دده سر په خپل غېږ كې ونيوی اصمعي رحمه الله وايي چې ما وژړل په سبب د ژړا دده بكاءً شديداً شفقةً عليه، نو زما څ اوښكې دده پر مبارک مخ ولګېدلې. نو دی په هوش كې راغلی او سترګې يې خلاصي كړې او وه يې ويل چې څوک يې چې زه دې له ذكر څخه د خپل باداره ايستلم، ما ورته وويل چې زه اصمعي يم ياسيدي ماهذا البكاء اى اې زما باداره دا ستا دومره ژړا پر څه وه او دا دومره فرياد و، او ته خو له اهل بيت څخه د نبوت يې او له معدنه څخه د رسالت يې. آيا ستاسې اهل بيت الرسول په باره كې خدای پاک داسې نه دي ويلي "اِنَّمَا يُرِيْدُ اللهُ لِيُذْهِبَ عَنْكُمُ الرِّجْسَ اَهْلَ الْبَيْتِ وَيُطَهِّرَكُمْ تَطْهِيْراً" باره زين العابدين رحمه الله راكښېنستی او ماته يې وويل يَااَصْمَعِيْ هَيْهَاتَ اِنَّ اللهَ خَلَقَ الْجَنَّةَ لِمَنْ اَطَاعَهُ وَاِنْ كَانَ عَبْداً حَبْشِيًّا وَخَلَقَ النَّارَ لِمَنْ عَصَاهُ وَاِنْ كَانَ مَلِكاً قُرَيْشِيًّا" اصعمي تا دا قول د خدای جل جلاله نه دی اورېدلی "اِذَا نُفِخَ فِيْ الصُّوْرِ فَلاَ اَنْسَابَ بَيْنَهُمْ وَلاَيَتَسَائَلُوْنَ.

**درويش وايي:** چې دا وه چې تفسير د "لايحب الله" من القرآن په دې حيرت انګېزه قصه او موعظت اميزه بيان پای ته ورسېدی.

اَللّٰهُمَّ اَسْئَلُكَ بِاَمْسَالِكَ هٰؤُلاَءِ السَّادَاتِ الْكِرَامِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلاَمُ عَلٰى رَسُوْلِ اللهِ ﷺ.

## فهرست تفسیر ایوبي حنفي جلد شپږم

# فهرست تفسير ايوبي حنفي جلد شپږم





Scanned by CamScanner

تفسير ایوبي حنفي۶ ټوک
د نصیراحمد احمدي لـخوا
سکین او pdf سـو.
تاریخ. ۳-۱-۱۳۹۹
واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹
د دعـا محـتـاج احـمـدي!